وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

تفسیر

# احسن الکلام

بلغة البشتو

الجزء السابع

اووم ټوک

از سورۂ روم تا سورۂ جاثیه


الناشر:

جامعة عربية لاشاعة التوحيد والسنة

پنج پیر - پشاور

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ

تفسير

# احسن الكلام

بلغة البشتو

للشيخ أبي زكريا عبد السلام الرستمي

الجزء السابع

(اُوم جزء)

از سورة روم تا سورة جاثيه

الناشر

جامعة عربية لاشاعة التوحيد والسنة

بډه بير - پشاور



## فهرس مضامین تفسیر احسن الکلام جلد دوم[۷]

| سُورَةُ الرُّومِ ۳۰ مَكِّيَّةٌ ۸۴ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | اٰيَاتُهَا ۶۰ رُكُوۡعَاتُهَا ۶ |
|---|---|---|

الٓمّٓ ۞ ① غُلِبَتِ الرُّوۡمُ ② فِيۡۤ اَدۡنَى الۡاَرۡضِ

الله تعالیٰ پوهیږي د دې په مراد باندې . کمزوري کړې شول رومیان په نزدې زمکه کښې

# بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## سورة روم

**ربط** دَ دې سورت دَ مخکښ سورت سره په یوځو وجو سره دې.
اوله وجه داده چه مخکښ سورت کښې دَ صحیح جهاد ذکر اوشو نو په دې کښې دَ هغې نتیجه ذکر کوی چه هغه انقلاب دې. دویمه وجه داده چه تیرشوی سورت کښې ترغیب وو جهاد ته نو په دې سورت کښې بشارت دې په نصرت دَ الله تعالیٰ سره. دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښې مسئله دَ جهاد وه دَ پاره دَ توحید نو په دې سورت کښې اثبات دَ توحید دې په ډیرو عقلی دلیلونو سره.

**دعویٰ دَ دې سورت** وعده ده دَ امداد دَ الله تعالیٰ دَ توحید والو سره په انقلاب راوستلو سره. او اثبات دَ دې دَ دعوې په مثال دَ رومیانو سره دې او په دلیلونو دَ قدرت دَ الله تعالیٰ په انقلاب دَ حالاتو باندې. او دارنګ اثبات دَ توحید دې په عقلی دلیلونو سره او په ذکر دَ یو مثال سره او په رد دَ اقسامو دَ شرک سره، شرک په تصرف کښې او په دعاء کښې او رد په شفاعت قهریه باندې.

**خلاصه دَ سورت** دا سورت تقسیم دې درې بابونو ته. اول باب تر ۱۹ پورې دې په دې کښې اول مثال ذکر کوی په غلبه دَ رومیانو په فارس والو باندې روستو دَ مغلوب کیدلو نه بیا دعویٰ دَ سورت ده تر ۵ پورې بیا خلور زجرونه دی اول په بې علمۍ دَ دوی په ۶ کښې دویم په غفلت سره دَ اٰخرت نه په ۷ کښې دریم په انکار دَ بعث بعد الموت سره په ۸ کښې سره دَ دلیل عقلی نه خلورم په ظلم سره په خپلو ځانونو باندې په ۹ کښې سره دَ تخویف دنیوی نه، او تخویف اخروی دې په ۱۰ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۶ کښې او دلیل عقلی په ۱۱ کښې او بشارت اخرویه دې په ۱۵ کښې بیا ذکر دَ تسبیح او دَ حمد دې (چه دا توحید دې) دَ پاره دَ حاصلولو دَ نصرت دَ الله تعالیٰ چه دعویٰ دَ سورت ده په ۱۷ ۱۸ کښې

وَهُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ غَلَبِهِمۡ سَيَغۡلِبُوۡنَ ۝ فِيۡ

او دوی به روستو دَ کمزورے کیدلو دَ دوی نه زر ده چه غالب شی په

## تفسیر

سلے:- دا دَ مقطعاتو نه دے دلیل دے په اعجاز دَ قران باندے.
سلے سلے:- دا مثال دے دَپاره دَ دعوے دَ سورت دَپاره دَ تسلّیٔ دَ مؤمنانو، اودَ فارس اودَ روم جنگ ته اشاره ده. تفصیل ئے دا دے چه په زمانه دَ نزولِ قران کښ په دنیا کښ دا دوه بادشاهئ وے چه ډیر لوے مملکتونه وو. یو فارس وؤ دَ هغوی بادشاه ته به کسریٰ ویلے کیدلو او هغه وخت ایران، افغانستان او اکثر مشرقی ملکونو باندے دَ دوی بادشاهی وه او دوی مجوسیان وو، او مجوسیان کتابیان نه دی بلکه دَ اور او رنړا او دَ نمر، سپوږمئ، ستورو وغیرو عبادتونه کوی او امیین دی دوی پشان دَ مشرکینِ عرب وو. دوېم روم وؤ چه دَ هغوی بادشاه ته به هرقل ویلے کیدلو اکثر مغربی ملکونه تر شام پورے دَ دوی دَ بادشاهئ دَ لاندے وو او دوی نصاریٰ اهلِ کتاب وو دَ دے دواړو په مینځ کښ به اکثر وخت جنګونه وو لیکن یو وخت دَ فارس بادشاه چه نوم ئے ساپور وؤ دَ جنګ دَ رومیانو دَپاره لوے لښکر اولیږلو او لوے جنګ اوکړے شو چه په هغے کښ رومیان کمزوری شول او فارس والو دَ هغوی نه دَ شام علاقه اذرعات بصریٰ او بلاد جزیره باندے غلبه اوکړله رومیان صرف روم او قسطنطنیه علاقے ته غونډ شول. دا خبر چه مشرکانِ مکّه واؤریدلو نو هغوی ډیر خوشحاله شول او دَ مکّے دَ مؤمنانو خلاف ئے پراپیګنډے شورو کړے، او ویل ئے چه زمونږ رونړه ستاسو په رونړو باندے غالب شول نو نزدے ده چه مونږ به هم په تاسو باندے غالب شو او ستاسو دین به ختم کړو او مؤمنان پدے باندے ډیر خفه شول نو دَ دوی دَ تسلّیٔ دَپاره دا ایاتونه نازل شول. حاصل دا وَ چه رومیان اګرچه اوس مغلوب شول لیکن لږ وخت روستو به غالب شی او دغسے اوشوه څکه اووه کاله روستو بیا لوے جنګ اوکړے شو او رومیان غالب شول په فارس والو باندے او دَ دوی دَ غلبے ورځ هغه وه چه مؤمنان په غزوه دَ بدر کښ په مشرکینِ مکّه باندے غالب شول نو په مشرکانو باندے دوه خفګانونه راغلل او په مؤمنانو باندے دوه خوشحالئ راغلے.

**فائده ۱:** دا ښکاره دلیل دے چه قران رښتنے کتاب دَ الله تعالیٰ دے څکه دا دَ غیبو خبر ئے ورکړے وؤ. او هغه رښتیا واقع شو.

بِضۡعِ سِنِيۡنَ ۬ؕ لِلّٰهِ الۡاَمۡرُ مِنۡ قَبۡلُ

یو څو کلونو کښې خاص الله تعالیٰ لره پوره اختیار دے مخکښې

وَمِنۡۢ بَعۡدُ ؕ وَيَوۡمَئِذٍ يَّفۡرَحُ

او روستو او په دغه ورځ به خوشحاله شي

الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ۙ﴿۴﴾ بِنَصۡرِ اللّٰهِ ؕ يَنۡصُرُ

مؤمنان په امداد د الله تعالیٰ سره امداد کوي

**فائده ع۲** دا رنګ دا دلیل شو په صداقت د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے. **ع۳** معلومه شوه چه الله تعالیٰ په دنیا کښې د کافرانو سره امداد کوي د پاره د امتحان **ع۴** او الله تعالیٰ د بادشاهو انقلابات راولي. **ع۵** او معلومه شوه چه تاریخ د قومونو او جغرافیا (چه هغې ته حاضر العالم ویلے کیږي) د علمونو د قران د فهم سره تعلق لري **ع۶** او معلومه شو چه نصراني کافر چه د الله تعالیٰ د وجود او د توحید اقرار کوي اګرچه نور وجوه د کفر په هغې کښې شته خو هغه په دشمنۍ کښې کم دے د هغه کافر نه چه غیر کتابي دے او د الله تعالیٰ د وجود نه منکروي یا د توحید د لفظ نه هم منکروي او سخت عنادي او متعصب وي لکه دهریان کمیونسټ او یهودیان وغیره.

**تشریح** روم بن عیص بن اسحاق بن ابراهیم علیه السلام سره مشهور دی نو معلومه شوه چه دوی د اولاد د یعقوب بن اسحاق علیهما السّلام (چه هغوی ته بني اسرائیل ویلے کیږي) تربوران دی. فِيۡۤ اَدۡنَى الۡاَرۡضِ یعنی د رومیانو هغه زمکه (ملک) چه عربو ته نزدے وه په نسبت د فارس چه هغه شام او بصری وغیره ده. غَلَبِهِمۡ دا مصدر مبني للمفعول دے یعنی مَغۡلُوۡبِيَّتِهِمۡ یا عبارت کښې تقدیر دے غلبته فارس علیهم.

ٮ :- بِضۡعَ د عربۍ په محاوره کښې د دریو نه تر نهه یا لسو پورے عدد ته ویلے کیږي. د دے وجې نه مفسرینو د ابوبکر رضی الله عنه د اُبي بن خلف الجمحي سره کومه واقعه چه ذکر کړے ده نو په هغې ابوبکر رضی الله عنه اول درے کاله پورے شرط لګولے وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل چه د بِضۡعَ اطلاق د دریو نه تر نهه پورے دے نو د اوو کالو شرط ئې اولګوۀ چنانچه غلبه د روم د دے ایت د نزول نه اووه کاله روستو حاصل شوه (پاتے په بل مخ).

مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝۵

مخه چا سره چه اوغواړی او خاص هغه زورا‌ور او رحم والا دے

وَعْدَ اللّٰهِ ۭ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ

وعده کړے ده الله تعالیٰ وعده خلاف نه کوی الله تعالیٰ دَ وعدے خپلے نه

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝۶

او لیکن ډیر خلق نه پوهیږی

**فائده:** یو شبه کړے شویده چه ابوبکرؓ چه په کومے طریقے شرط لګولے وؤ داخو قمار(جواری) وؤ. جواب داد ے چه دا په هغه وخت کښ جائز وؤ، بیا منسوخ شویدے دارنګ دَ قتاده نه روایت دے او چاچه ویلے دی چه داعقد په دارِ حرب کښ دَ کافرانو سره وؤ او داسے عقود فاسده او ربٰو وغیره دَ امام ابوحنیفه رحمة الله تعالیٰ په مذهب کښ په دارِ حرب کښ دَ کافرانو سره جائز دی دا قول صحیح نه دے. لِلّٰهِ الْاَمْرُ دلته مراد اختیار دَ غلبے او دَ مغلوبیت دے او دا کلمه دَ توحید ده چه اختیار مندا واکدار صرف یو الله تعالیٰ دے.
مِنْ قَبْلُ مخکښ دَ غلبے دَ رومیانو نه. وَمِنْ بَعْدُ روستو دَ غلبے دَ رومیانو نه. وَيَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ، دا بشارت دے مؤمنانو (صحابه کرامو) ته او په دیکښ بله معجزه ده چه الله تعالیٰ دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په واسطے سره اووه کاله وړاندے دَ بدر په ورځ دَ مؤمنانو دَ خوشحالئ خبر ورکړے وؤ او هغه صحیح ښکاره شو.
ف۵:- دایئ جدا ایت کښ ذکر کړو اشاره ده چه دلته اوله خوشحالی دَ رومیانو په غالب کیدلو سره ده اګرچه هغ ته مدد دَ الله تعالیٰ نه ویلے کیږی دَ دے وجے نه هغ دَپاره صرف لِلّٰهِ الْاَمْرُ ذکر کړے وؤ او بِنَصْرِ اللّٰهِ سره خوشحالی دَ ورځ دَ بدر مراد ده او هغهٔ په نصرت دَ الله تعالیٰ سره وؤ.
او په دے ایت کښ دعویٰ دَ سورت ده.
ف۶:- دا تاکید دَ مخکښ بشارت دے وَعْدَ اللّٰهِ نه وړاندے فعل پټ دے وعدا هم الله وعدا. لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ دا صفتِ سلبیه دَ الله تعالیٰ دے. لَا يَعْلَمُوْنَ مراد دَدے نه منکرین دَ مدد دَ الله تعالیٰ دی چه هغوی دا انقلابات الله تعالیٰ ته نسبت هم نه کوی. او په دے کښ زجر دے په عدم دَ عِلم سره.

يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ صلے

پوهیږی دوی ښکاره په ژوند دَ دُنیا

وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ۝

او دوی دَ آخرت نه دوی بے پرواه دی .

اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ۗ قف

آیا دوی سوچ نه کوی په خپلو ځانونو کښ ،

مَا خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

نه دی پیدا کړی الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه

وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَاَجَلٍ

او هغه چه په مینځ دَ دوی کښ دی مګر په حق سره او په نیټه

مُّسَمًّى ۭ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ

مقرر سره او یقینًا ډیر دَ خلقو نه

بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ لَكٰفِرُوْنَ ۝ اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا

دَ ملاقات دَ رب خپل نه ضرور منکران دی . آیا او دوی نه ګرځی

ک :- دا دویم زجر دے په علمونو او تجرباتو دَ دنیا سره یعنی دَ کسبونو او تجارتونو او دَ زمینداری او دَ آبادئ وغیره دَ دنیا په کاروتو کښ ډیره تجربه لری او دا رنګ دَ دنیا په غلط سیاستونو کښ ښهٔ پوهه دی . دَ حسن بصری نه تفسیر سراج المنیر کښ نقل کړے دی چه بعض انسان یو روپئ په لاس کښ او نیسی نو دَ هغے صحیح وزن معلوم کړی لیکن مونځ ورله نه ورځی . وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ دا دریم زجر دے په غفلت دَ آخرت نه .

ٹ :- دا څلورم زجر دے په انکار دَ توحید او دَ بعث بعد الموت نه په سبب دَ بے فکره کیدلو سره . فِیْٓ اَنْفُسِهِمْ دَ دے دوه معنے دی اوله معنیٰ دا چه انفس نه مراد زړونه دی او محل دَ فکر کولو زړه دے ، او متفکر فیه مَا خَلَقَ اللّٰهُ الخ دے . دویمه معنیٰ دا ده چه متفکر فیه اَنْفُسِهِمْ دے یعنی په احوالو دَ خپلو ځانونو کښ فکر نه کوی لکه چه سورة ذاریات ۲۱ کښ ذکر دی ( پاتے په بل مخ )

فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

په زمکه کښ نو چه اوګوري چه څه رنګ وُو انجام

الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ كَانُوا أَشَدَّ

د هغه کسانو چه د دوی نه مخکښ وو هغوی ډیر کلک

مِنْهُمْ قُوَّةً وَأَثَارُوا الْأَرْضَ وَعَمَرُوهَا

د دوی نه طاقت والا وو او زمکه ئې اړولے ده او اباده کړے وه زمکه

أَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوهَا وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ

زیاته د هغې نه چه دوی اباده کړے ده او راغلی وو دوی ته رسولان

بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ

په ښکاره دلیلونو سره نو نۀ وُ الله تعالیٰ چه په دوی باندے ظلم کړے وے

وَلَٰكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ⑨

او لیکن دوی په خپلو ځانونو باندے ظلم کوؤ .

نو مَاخَلَقَ اللّٰهُ اه دا نتیجه د فکر ده. اِلَّا بِالْحَقِّ یعنی د حق ښکاره کولو د پاره، او مراد ترینه توحید دے. وَاَجَلٍ مُّسَمًّى مراد د دے نه فنا د دے عالم ده چه په هغې پسے بعث بعد الموت دے او دا رنګ په احقاف ۳ کښ هم دی. وَاِنَّ كَثِيرًا اه په دیکښ پنځم زجر دے په انکار د قیامت سره.

**فائده:** په ۶ کښ ئې اَكْثَرَ النَّاسِ ذکر کړو او په دے ایت کښ ئې كَثِيرًا ذکر کړو، یو وجه دا ده چه بے علمه او دُنیا پرست ډیر زیات خلق دی لیکن د قیامت منکران د هغوی په نسبت سره لږ دی دویمه وجه دا ده چه رواندے د دلیل ذکر کولو نه اکثر خلق منکروی، او د دلیل ذکر کولو نه روستو بیا منکرین د مخکښ په نسبت سره لږ کم شی.

۹: دا شپږم زجر دے او تخویف دنیوی دے په ذکر د عذابونو د تیر شوؤ قومونو سره. او دا رنګ په حٰم مؤمن ۲۱ ۸۳ کښ هم دی. فَيَنْظُرُوا ته معلومه شوه چه سیل کول په ملکونو کښ د پاره د عبرت اخستلو عبادت دے. بیا د تیر شوؤ قومونو پنځه حالتونه ئې ذکر کړے دی اول كَانُوا أَشَدَّ مِنْهُمْ یعنی بدنونه او قد او قامت کښ مضبوط وؤ دویم وَأَثَارُوا الْأَرْضَ یعنی په فصلونو کرلو

ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِينَ أَسَاءُوا السُّوأَىٰ

بیا شو انجام دَ هغه چاچه بدے ئے کړے دے تاکاره

أَن كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ وَكَانُوا بِهَا يَسْتَهْزِئُونَ ﴿١٠﴾

(ځکه چه) دروغژن ئے ګڼړلے وو ایاتونه دَ الله تعالی او دوی وو چه په هغے پورے توقے کولے.

اللَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ثُمَّ إِلَيْهِ

الله تعالی اول پیدائش کوی بیا به دوباره هم کوی بیا به خاص هغه ته

تُرْجَعُونَ ﴿١١﴾ وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يُبْلِسُ

اوګرځولے شے تاسو. او په هغه ورځ چه قیامت به قائم شی نا امیده به شی

الْمُجْرِمُونَ ﴿١٢﴾ وَلَمْ يَكُن لَّهُم مِّن

مجرمان. او نه به وی دوی لره دَ

او دَ زمکے نه معدنیات راویستلو کښ ډیر مشغول وُو دریم وَعَمَرُوهَا په ابادولو کښ ډیر مصروف وو یعنی دنیا پرست وو او دُنیا وی کارونو کښ ترقی کول ئے کمال ګڼړلو. څلورم وَجَاءَتْهُمْ یعنی الله تعالی دَ دوی دَ خبر ورکولو دَپاره ډیر رسولان لیږلے وو دَپاره دَ دے چه دینِ الٰهی ته ئے توجه پیدا شی. پنځم وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ یعنی کفر او شرک او بدعات او نور ګناهونه ئے کول او دا په ځان باندے ظلم کول دی ځکه دَ دے په وجه باندے دَ دُنیا دغه نعمتونه ئے برباد شول او دوی هلاک شول.

سنا:- دا تخویف اخروی دے هر کله چه عَاقِبَةَ خبر دَ كَانَ شی او السُّوأَىٰ اسم دَ کان شی یعنی العقوبة التی اسوء السیئات، یا نوم دَ جهنّم دے. او أَن كَذَّبُوا، کښ باء پټه وی یعنی بان کذبوا. او که چرے السُّوأَىٰ مفعول مطلق شی دَ أَسَاءُوا دَپاره او أَن كَذَّبُوا اسم شی دَ كَانَ دَپاره یعنی تکذیب او استهزاء نتیجه شوه دَ نورو سیئاتو دَپاره نو بنا په دے احتمال سره دا ایت تفسیر دے دَ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ دَپاره.

سلا:- دا مختصر دلیل عقلی دے او دا متعلق دے دَ ک سره او اثبات دَ دوباره ژوندا دے.

سلا:- دا تخویف اخروی دے هر کله چه اعاده ذکر شوه نو اوس په دے ایاتونو کښ تفصیل دَ قیامت ذکر کوی او دَ سلا پورے دَ مجرمانو پنځه حالات ذکر کوی. ابلاس ویلے کیږی چپ کیدل او حیرانتیال رپاتے په یل مخ (

شُرَكَآبِهِمْ شُفَعٰٓؤُا وَكَانُوْا بِشُرَكَآبِهِمْ

شریکانو دَدوی نه سفارشیان او شی به دوی دَ شریکانو نه

كٰفِرِيْنَ ﴿١٣﴾ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ

منکران . او هغه ورځ چه قیامت قائم شی

يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ ﴿١٤﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ

په دغه ورځ به دوی جدا جدا شی . نو هغه کسان چه

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَهُمْ فِيْ

ایمان ئے راوړے دے او عمل ئے کړے په طریقه دَ نبی نو دوی به په

رَوْضَةٍ يُّحْبَرُوْنَ ﴿١٥﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

باغچو کښ وی خوشحالولے به شی . او هغه کسان چه کفر ئے کړے دے

دَ وجې دَ بے دلیل کیدلو نه او مراد دَ دے نه نا امید کیدل دی دَ هر خیر نه یا نا امید کیدل دَ خپلو شرکاؤ دَ مداد کولو نه۔

ف۱۳:۔ دا هم تخویف کښ داخل دے او رد دَ شفاعتِ قهریه شرکیه دے او جواب دَ سوال دے، که اُویلے شی چه دوی به چپ شی خو دَ دوی معبودان به دَ دوی دَ۔ بچ کولو دَپاره خبرے کوی او شفاعت به کوی نو دَ هغې رد ئے اوکړو۔ وَكَانُوْا دا نتیجه دَ انکار دَ معبودانو دَ دوی ده دَ شفاعت کولو نه یعنی هر کله چه هغوی دَ دوی دَ شفاعت نه عاجز شی نو دا مشرکان به دَ هغوی دَ معبودیت نه منکر شی. دویم معنیٰ دا ده چه وَكَانُوْا دَ دنیا حال دے یعنی دوی په دنیا کښ دَ شرکاؤ دَ عبادت په سبب سره کافر شویوو۔

ف۱۴:۔ دا هم داخل دے په تخویف کښ یعنی روستو دَ نا امیده کیدلو نه به تفرق دَ یو بل نه اوکړی۔

ف۱۵:۔ دا بیان دَ تفرق او دَ جدائی دے او په دے ایت کښ بشارت دے مؤمنانو ته۔ رَوْضَةٍ په عرف دَ عرب کښ هغه زمکه وه چه ډیره فراخه وی او ډیرے اوبه او تازه شنه بوټی پکښ وی يُحْبَرُوْنَ، درے معانی دی ۱: عزت به ورکیدے شی۔ ۲: نعمتونه به ورکیدے شی، ۳: خوشحالی به ورکیدے شی، په دے کښ دَ جنت ټول نعمتونه داخل دی۔

وَكَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ فَاُولٰٓئِكَ

او دروغژن گڼړی ایاتونه زمونږ او ملاقات دَ اٰخرت نو دغه کسان به

فِى الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ ﴿۱۶﴾ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ

په عذاب کښې حاضر کړے شی. نو پاکی وایئ دَ الله تعالیٰ

حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ﴿۱۷﴾ وَلَهُ الْحَمْدُ

کوم وخت چه بیګاه کوئ او کوم وخت چه صبا کوئ. او خاص هغه لره ستائینه دَ

فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ

(خدایئ ده) په اسمانونو او زمکه کښې او په مازیګری کښې او کوم وخت چه

س۱۶:- دا تخویف دَ منکرینو دے او په دے کښې دَ دوی درے جرمونه ئے ذکر کړیدی۔ ع۱ کفر تمام شرکیاتو ته شامل دے، ع۲ تکذیب انکار دَ ټولو دلیلونو شرعیو ته عام دے، ع۳ وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ انکار دَ اٰخرت مراد دے۔

س۱۷ س۱۸:- دا تفریع ده په دعویٰ دَ سورت باندے او دا دعویٰ دَ توحید ده یعنی هر کله چه الله تعالیٰ ستاسو نصرت کوی نو تسبیح وایئ لکه چه سورة نصر کښې هم ذکر دی یا دا بیان دَ سبب دے دَ پاره دَ حصول دَ دعوے دَ سورت یعنی په توحید دَ الله تعالیٰ سره نصرت او مددِ الٰهی حاصلیګی۔ په دے ایاتونو کښې تسبیح او حمد نه مراد سره دَ قول نه عمل دَ هغے دے په طریقه دَ مونځ کولو سره ځکه مونځ کښې تسبیح او حمد قولاً او عملاً دی او دَ ابن عباس رضی الله عنهما په روایت سره په دے ایاتونو کښې دَ پنځو وختونو دَ مونځ ذکر دے۔ تُمْسُوْنَ کښې ماښام او ماسخوتن داخل دے او تُصْبِحُوْنَ کښې مونځ دَ صبا داخل دے۔ عَشِيًّا کښې دَ مازیګر مونځ داخل دے او تُظْهِرُوْنَ کښې مونځ دَ ماسپخین داخل دے. فائده هر کله چه اذکار مسنونه کښې تسبیح مخکښې ده دَ حمد نه نو دلته ئے هم تسبیح مقدم کړیده په حمد باندے او هر کله چه توحید په لفظ دَ تسبیح سره نه کامل کیږی نو دَ دے وجے حمد ئے ورسره ذکر کړو۔

فائده ع۱:- هر کله چه بیګائی او صبائی وخت کښې تیاره وی او تیاره کښې نقصان وی نو دَ هغے سره تسبیح مناسب ده یعنی الله تعالیٰ دَ هر نقصان نه پاک دے او ماز یګر او ماسپخین کښې رڼړا وی او رڼړا کمال دے نو دَ هغے سره حمد مناسب دے۔

فائده ع۲:- هر کله چه بیګاه او صبا او ماسپخین کښې ښکاره راپاتے په یل مخ)

تُظْهِرُوْنَ ﴿۱۸﴾ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ

ماسپخین کوئ تاسو. را او باسی الله تعالی ژوندی لره دَ مړ نه

وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِ الْاَرْضَ

او را او باسی مړ لره دَ ژوندی نه او تازه کوی زمکه

بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ﴿۱۹﴾

روستو دَ اوچیدلو نه . او دغسے به را وبیستلے کیدلے شے تاسو.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ

او بعض دَ دلیلونو دَ توحید او قدرت دَ الله تعالی نه دا چه پیدا ئیش ئے شروکړے دے ستاسو دَ خاورے نه

ثُمَّ اِذَآ اَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُوْنَ ﴿۲۰﴾

بیا شوئ تاسو بشر ډیر خواره واره شوئ.

---

اختلاف دے دَ یو حال نه بل ته نقل کیدل دَ توے حالت پیدا کیږی دَ دے وجے نه تُمْسُوْنَ تُصْبِحُوْنَ، تُظْهِرُوْنَ ئے په صیغه دَ فعل سره ذکر کړو چه دَ پاره دَ تجدد (توے والی راځی) او دَ ظهر او دَ عشی (ماز یګر) په مینځ کښ زیات فرق نیشته دَ وخت په لحاظ سره نو دَ دے وجے نه هغه ئے عَشِيًّا سره اسم ذکر کړو (والله اعلم).

ف ۱۹:- دَ دے ایت نه دویم باب دے تر ف ۴۲ پورے په دے کښ یوولس عقلی دلیلو نه ذکر کوی دَ پاره دَ اثبات دَ توحید او دا شواهد دی دَ پاره دَ دعوے دَ سورت. او په دے کښ مثال دے دَ پاره دَ رد دَ شرک. بیا ئے اصول ذکر کړے دی دَ پاره دَ حصول دَ دعوے دَ سورت او په مینځ دَ اصولو کښ دَ مشرکانو او ووه قبائح ئے ذکر کړے دی او دَ هغوی تحذیر ذکر کوی او فرق ذکر کوی دَ ربوٰ او دَ زکوٰة. او تخویف دنیوی او دَ هغے اسباب ئے ذکر کړیدی.

دا ف ۱۹ دلیل عقلی دے دَ پاره دَ اثبات دَ توحید چه په تیر شوی ایاتونو کښ ذکر شو په دے کښ او دَ دے نه روستو دلیلونو کښ انقلاب دَ حالاتو ذکر کوی اشاره ده اثبات دَ دعوے دَ سورت ته. په دے ایت کښ ئے درے احوال انقلابیه ذکر کړیدی او څلورم انقلاب کښ ذکر دَ قیامت دے.

---

ف ۲۰:- دا یل دلیل عقلی دے دَ دواړو مقصدونو دَ پاره. مِنْ تُرَابٍ مراد دَ دے نه پیدائش دَ ادم علیه السلام دے دَ خاورو نه او معنیٰ دَ خَلَقَكُمْ، خلق اصلکم یا مراد دَ دے نه هر انسان دے ځکه چه هر انسان دَ نطفے نه پیدا دے او نطفه دَ خوراک نه

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ

او بعض د دلیلونو د توحید او قدرت د هغه نه دا چه پیدا کړیدی تاسو لره ستاسو د

اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوْٓا اِلَيْهَا

جنس نه بیبیانې د پاره د دے چه آرام حاصل کړئ هغوی ته

وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً ۭ اِنَّ

او پیدا کړے ده ستاسو په مینځ کښ مینه او ترس کول یقینًا

فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱﴾

په دے کښ ډیر دلیلونه دی د هغه قوم د پاره چه سوچ کوی۔

پیدا کیږی او خوراکونه د زمکے نه پیدا کیږی او دا سے په سورة حج ۵ کښ هم تیر شوی دی. ثُمَّ اِذَآ دا اِذَآ د مفاجات د پاره دے او دا اکثر د فاء سره مستعمليږی لیکن دلته ئے ثُمَّ راوړیدے ځکه چه د تراب نه روستو تورو احوالو او اطوارو ته اشاره ده چه هغه نطفه علقه مضغة وغیر دی لکه چه سورة حج ۵ او مومنون ۱۴ کښ تیر شویدی. بَشَرٌ په دے کښ معنیٰ د ظهور (ښکاره کیدلو ده) یعنی خاورو کښ پټ وئ نو الله تعالیٰ ښکاره کړئ۔

**فائده:-** په دے سورة کښ د اوؤ ایاتونو په اول کښ وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ ذکر کړیدے د دے یو وجه داده چه د غه دلیلونه په مدعا ثابتولو کښ ښه واضح دی. دویمه وجه داده چه هر یو د هغے نه په حقیقت کښ په ډیرو دلیلونو باندے مشتمل دے او هرکله چه اکثر په دغه ایاتونو کښ د سورت دواړه مقصدونه ښکاره وو نو د دے وجے نه په اول د ایت او په آخر د هغے کښ لفظ د اٰيٰتٍ ئے دوه کرته ذکر کړیدے۔

۲۱:- دا یل دلیل عقلی دے. هرکله چه تیر شوی ایت کښ ماده د پیدائش اصلی ذکر شوه نو په دے ایت کښ ماده د پیدائش ظاهری ذکر کوی او دا رنګ اول ایت دلیل د ایجاد د بشر دے نو دا ایت دلیل دے د بقاء یعنی سلسله د بشر د قیامت پورے ده) -او اَنْفُسِكُمْ په معنیٰ د هم جنس سره دے۔ لِتَسْكُنُوْٓا دا سے حکمت ئے په سورة اعراف کښ هم ذکر کړے او دا دلیل دے چه د بشر نکاح د جن سره نه کیږی. مَوَدَّةً د زړه میلان او محبت ته وائی وَرَحْمَةً د مینے د وجے نه د یو بل په مصیبت باندے خفه کیدل او خوشحالے باندے خوشحاله کیدل. دے ته شفقت هم وائی

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ
او بعض دَ دلیلونو دَ هغه نه پیدائش دَ اسمانونو او دَ زمکې دے

وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَاَلْوَانِكُمْ اِنَّ فِيْ
او جدا والے دَ ژبو ستاسو او دَ رنګونو ستاسو دے یقینًا په

ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْعٰلِمِيْنَ ﴿۲۲﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ
دے کښې ډیر دلیلونه دی پوهه لرونکو لره۔ او بعض دَ دلیلونو دَ هغه نه

مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَابْتِغَآؤُكُمْ
خوب کول ستاسو دی دَ شپې او دَ ورځې او لټول ستاسو دی

مِّنْ فَضْلِهٖ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ
دَ فضل دَ هغه نه، یقینًا په دے کښې ډیر دلیلونه دی

۲۲:۔ دا هم دلیل عقلی دے دَ پاره دَ دواړو مقصدونو۔ تیر شوی دلیلونه انفسی وو او دا آفاقی دلیل دے۔ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ نه مراد دَ هغے اوچت والے، مضبوط والے، بے ستنو او دریدل، نه چودل او نه راغورځیدل وغیره دی۔
وَالْاَرْضِ دَ دے نه مراد دَ هغې وسعت دے یعنی مختلف رنګونه مختلف صفتونه چه په هغې باندے غرونه، نهرونه، جنګلات وغیره دی۔
وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ، عربی او عجمی او په هغې کښې ډیر قسمونه او مختلف آوازونه لهجې، فصاحت بلاغت او په هغې کښې مختلف مرتبې، تر دے پورے چه دوه تنه په داسے او نه موندے چه په دے ټولو اوصافو کښې یو شان وی۔
وَاَلْوَانِكُمْ سپین، سور، تور وغیره او مختلف مخونه او سترګے پوزه وغیره هیڅ دوه کسان په داسے ملاؤ نشی چه په صورت کښې پوره پوره برابر وی۔
او دَ دے دواړو اختلافونو یو حکمت دا دے چه انسان په دے سره دَ اشخاصو تمیز او کړی دَ خپل پردی او دَ دوست دشمن نوچه لرے وی یا غائب وی نو جدائی کیدے شی په آواز سره او چه مخامخ شی نو جدائی کیدے شی په شکل او صورت سره۔

لِّقَوۡمٍ يَّسۡمَعُوۡنَ ﴿۲۳﴾ وَمِنۡ اٰيٰتِهٖ يُرِيۡكُمُ

هغه قوم لره چه غوږ ږدی۔ او بعض د دلیلونو د هغه دا چه ښائی تاسو ته

الۡبَرۡقَ خَوۡفًا وَّطَمَعًا وَّيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ

بریښنا د ویرے او طمع نه او وروی د طرف د اسمان نه

مَآءً فَيُحۡىٖ بِهِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَا ؕ

باران نو تازه کوی په هغے سره زمکه روستو د اوچیدلو د هغے نه۔

اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّعۡقِلُوۡنَ ﴿۲۴﴾

یقیناً په دے کښ ډیر دلیلونه دی د پاره د هغه قوم چه عقل لری۔

۲۳:- دا بل دلیل عقلی دے، انفسی دے چه متعلق دے د زمانیاتو سره چه شپه او ورځ ده او هرکله چه د شپے خوب زیات وی په خوب د ورځے باندے د دے وجے نه اللیل ئے مخکښ کړو په النهار باندے. او هرکله چه کسب اوطلب د فضل (د روزئ او د علم) په شپه او ورځ دواړو کښ کیږی نو هغه ئے عام ذکر کړے دے۔

۲۴:- دا بل دلیل عقلی دے هرکله چه مخکښ ئے عوارض انفسیه ذکر کړل نو په دے دلیل کښ عوارض آفاقیه ذکر کوی چه هغه برق او باران دے. هرکله چه لیدل د برق د باران نه اکثر رواندے وی د دے د پاره چه بعض خلق د باران نه د یخ کیدلو انتظام اوکړی د ویرے د وجے نه او دا سے خلق ډیر وی او بعض خلق (زمینداران) او بود باران نه زمکه او ورخونه برابر کړی د طمع د وجے نه. د دے وجے نه برق ئے په باران باندے او خوف ئے په طمع باندے مخکښ کړو۔

**فائده:-** د دے خلورو آیاتونو په حواصلو کښ تنزل دے د اعلیٰ صفت نه ادنیٰ ته ځکه اول درجه تفکر دے بیا لاندے د هغے نه علم دے بیا کوز د هغے نه د یل چانه اوریدل او قبول دی بیا خکته د هغے نه عقل لرل دی. متفکرین ډیر لږ وی بیا وروسے علم والا بیا وروسے غوږ کیخودونکی د پاره د قبولیت بیا عقل والا (ترتیب دا دے) هرکله چه اول آیت کښ نکاح او د هغے فائدے ذکر کړے چه دا امور پټ باطنی دی نو د هغے سره ئے فکر ذکر کړو بیا احوال د آسمانونو او د زمکے او مختلف لغات او ژبے او فرق د صورتونو، په ر پاتے په بل مخ)

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ تَقُوْمَ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ

اوبعضې دَ دليلونو دَ توحيد او قدرت دَ الله تعالىٰ نه داچه ولاړ دی آسمانونه او زمکه

بِاَمْرِهٖ ؕ ثُمَّ اِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً ۖ مِّنَ الْاَرْضِ ۖ

په حکم دَ هغه سره بيا چه کوم وخت آواز درکړی تاسو ته يو آواز دَ زمکې نه (دَ راوتلو دَ پاره)

اِذَآ اَنْتُمْ تَخْرُجُوْنَ ﴿٢٥﴾ وَلَهٗ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ

دغه وخت به تاسو ټول را او وځئ. او خاص په اختيار دَ الله تعالىٰ کښ دی هغه څوک چه په آسمانونو کښ دی

وَالْاَرْضِ ۖ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿٢٦﴾ وَهُوَ الَّذِىْ

او زمکه کښ دی ټول هغه لره تابع دی. او خاص الله تعالىٰ هغه ذات دے

علم سره معلوميږی نو دَ هغې سره ئې علم ذکر کړو بيا دَ خوب دَ حالت نه انسان په خپله نه خبريږی بلکه دَ بل چا نه په اوريدلو سره معلوميږی نو هغې سره ئې سمع ذکر کړه. بيا برق او بارانونه او بوټی دَ دے په حالت پوهه کيدو باندے هر عقل والا پوهيږی چه دَ عقل نه کار واخلی نو دَ هغې سره ئې عقل ذکر کړو.

۲۵ :- دا بل دليل عقلی دے دَ خلق دَ آسمان او زمکې نه روستو دَ هغې قيام (ټينګيدل) ذکر کوی. او دَ دے ټولو څيزونو فنا ته اشاره کوی په اثبات دَ خروج (روتل) دَ زمکې نه.

**فائده ۱ :** هر کله چه ليدل دَ برق لږ وخت وی او قيام دَ آسمان او زمکې هر وخت دے نو دَ اول سره ئې اَنْ نه دے ذکر کړے او دَ دويم سره ئې اَنْ ذکر کړو ځکه اَنْ دَ مَا بَعْدَ سره په تاويل دَ مصدر سره اسم جوړيږی او اسم دلالت کوی په استمرار باندے او بغير دَ اَن نه نفس فعل دے چه دلالت کوی په تجدد (نوے والی) باندے.

**فائده ۲ :** مِنَ الْاَرْضِ متعلق دے په اِذَا دَعَاكُمْ پورے نه په دَعْوَةً پورے ځکه چه فعل قوی وی په عمل کښ دَ مصدر نه او هر کله چه دَ شپيلئ وهلو سره راوتل دَ زمکې نه متصل او ناساپه دی دَ دے وجه نه اِذَآ اَنْتُمْ تَخْرُجُوْنَ ئې بغير دَ ثُمَّ نه ذکر کړے دے.

۲۶ :- دا بل دليل عقلی دے روستو دَ ذکر آسمان او دَ زمکې او دَ اهل دَ هغې نه. كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ دَ دے نه قنوت تسخيری مراد دے يعنی په ژوند او مرګ او صحت او مرض وغيره کښ دَ الله تعالىٰ دَ حکم لاندے دی يا مراد دَ دے نه قنوت اختياری دے او مراد دَ دے نه صالحين دی

يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ ؕ

چه اول پیدائش کوی بیا به دوباره هم کوی او دا (بیرته راوړل) هغه ته اسان دی

وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ

او خاص الله تعالیٰ لره صفت اوچت دے په اسمانونو کښې او زمکه کښې.

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۷﴾ ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا

او خاص هغه زوراور او حکمت والا دے. بیان کړیدے ستاسو دپاره مثال

مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ؕ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ

د جنس ستاسو نه ایا شته تاسو لره د هغه چانه چه مالکان دی

اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ فِىْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ

ښي لاسونه ستاسو د هغوی څوک حصه داران په هغه مال کښې چه موږ تاسو ته درکړیدے نو تاسو

فِيْهِ سَوَآءٌ تَخَافُوْنَهُمْ كَخِيْفَتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ ؕ

په هغے کښې برابر اختیار مند یئ چه ویریږئ د دوی نه پشان د ویرے ستاسو د رورنړو ستاسو نه

---

۲۷:۔ دا یل دلیل عقلی دے د توحید سره د اثبات د بعث بعد الموت نه وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ ضمیر د هُوَ راجع دے دوارو ذکر کړے شوے حالتونو ته په تاویل د مذکور سره نو هیڅ اشکال نیشته او که ضمیر د هُوَ اعادے ته راجع شی نو اَهْوَنُ کښې تفضیل په اعتبار د عقیدے د بشر دے یعنی د دوی په نیز بانده دوباره کار د اول ځل نه زیات اسان وی یا اَهْوَنُ په معنیٰ د هَیِّنٌ سره دے او تفضیلی معنیٰ پکښې مراد نه ده.

الْمَثَلُ الْاَعْلٰى یعنی عام قدرت او علم او حکمتونه. او قتاده وئیلی دی چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مراد ترینه وصف د توحید دے.

فائده:۔ په دے روستنو دوه ایاتونو کښې اخبار د تصرف د الله تعالیٰ عمومًا او په ابداء او اعاده کښې خصوصًا مقصد دے او استدلال مقصد نه دے د دے وجه نه په مِنْ اٰيٰتِهٖ سره ئې مصدّر نه کړو.

كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ (۲۸)

دغه شان جلاجلا بیانوو موتږ ایاتونه دپاره دهغه قوم چه عقل لري.

بَلِ اتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ

بلکه روان دي هغه څوک چه ظلم يې کړيدے په خواهشاتو خپلو پسے

بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ فَمَنْ يَّهْدِيْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ

بغير دَ دليل نه نو څوک به هدايت ورکړي هغه چاته چه الله تعالى بے لارے کړے وي

۲۸:۔ روستو دَ اثبات دَ توحید نه په دلیلونو سره اوس وضاحت کوي په مثال سره. مِنْ اَنْفُسِكُمْ ستاسو دَ جنس نه ځکه چه مریان هم انسانان دي. یا مراد دَ دے نه نزدے دَ څیزونو نه تاسو ته. فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ هرکله چه شرکت کښ برابر نه وي دَ دے وجے نه دلته يې مقید کړو په مساوات سره په اختیار او تصرف کښ بیا يې بیان دَ مساوات او کړو په دے قول سره چه تَخَافُوْنَهُمْ یعنی هر کله چه دوه تنه په شرکت او تصرف کښ برابر وي نو یو تن تصرف بغیر دَ اجازت دَ بل نه نشي کولے بلکه دَ هغهٔ دَ خفګان یا دَ غضب نه ویره کوي. حاصل دَ مثال دا دے چه الله تعالى مولى دے او ټول انسانان دَ هغهٔ مریان او وینځے دي (مملوک دي) نو هرکله چه تاسو خپلو مملوکانو لره خوراک څښاک وغیره ورکوئ لیکن په خپل مال کښ دا سے تصرف نه ورکوئ چه تاسو سره برابر شي بلکه په دا سے شرکت سره تاسو ډیر خفه کیږئ نو څه رنګه وایئ او عقیده لرئ چه الله تعالى بزرګانو اولیاؤ وغیره ته په خپل بعض مملوکانو او مخلوقاتو کښ دا سے تصرف ورکړے دے چه هغوی دَ الله تعالى پشان په قدرت مستقله سره په هغے کښ تصرف کوي چه کله او غواړي نو څوک مریض کړي تو چاله شفا ورکړي څوک غریب کړي څوک مالدار کړي نو هرکله چه په خپله په دا سے حالت باندے خفه کیږئ. نو الله تعالى خو راغنی الشرکاء عن الشرک دے) نو هغهٔ خو خامخا په دے سره خفه کیږي.

**فائده:** په دے کښ اول مِنْ ابتدائیه دے او دویم مِنْ تبعیضیه دے او دریم دَ تاکید دَ استفهام دَپاره دے او استفهام انکاري دے.

نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ هرکله چه په مثال سره وضاحت دَ ډیرو معانیو او حکمتونو کیږي نو ځکه يې دِے ته ایات اُویل.

وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۹﴾ فَاَقِمْ وَجْهَكَ

او نیشته دوی لره هیڅ مدد گاران - نو برابر کړه ځپل مخ

لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ۭ فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ

دین ته کلک په توحید باندے (لازم اونیسه) دین دَ الله تعالی هغه چه

فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۭ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ۭ

پیدا کړی دی خلقو لره په هغے باندے ، نیشته بدلیدل دَ پیداوخت دَ الله تعالی

ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ڎ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

دغه دے دین پوخ او لیکن ډیر خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۰﴾ مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ وَاتَّقُوْهُ

نه پوهیږی ورګرځیدونکے ئے هغه ته او یره کوئے دَ هغه نه

س۲۹ :- دا زجر دے چه سرهٔ دَ دے دلیلونو او مثالونو نه دَ دے منکریتو دَ انکار سبب اتباع دَ هوٰی ده او په داسے حال کښ چه دَ اتباع دَ خواهش دَ وجے دَ دلیلونو او مثالونو نه انکار کوی نو دوی ته هدایت نه نصیب کیږی . بِغَيْرِ عِلْمٍ قید دَپاره دَ تاکید دَ جهل دَ دوی دے یعنی که چرے دَ اتباع دَ هوٰی سره علم وی نو دَ دے علم په سبب سره کله کله واپس شی تابعدارئے دَ خواهش نه.

س۳۰ :- هر کله چه تیر شوی ایت زجر ذکر کړو په اتباع دَ خواهشاتو سره نو پیدا یکښ توجه ورکوی تابعدارئے دَ دینِ حق ته چه دین فطری دے یعنی توحید خالص او دَ دے ایت نه اصول ذکر کوی دَپاره دَ حصول دَ نصرتِ الٰهی چه دعویٰ دَ سورت ده او فاء سره ئے ذکر کړو ځکه چه دا تفریع ده په تیر شوؤ دلیلونو او مثال باندے . وَجْهَكَ مراد دَ دے نه ذات دے یا قصد دے . او اقامت دَ مخ دا دے چه بل طرف ته توجه مه اړوه ټول قصد او توجه او ټول بدان او قوتونه دین دَ توحید ته اوګرځوه . فِطْرَتَ اللّٰهِ دَ دے نه مخکښ فعل پټ دے یعنی اَلْزِمْ واتبع . فِطْرَتَ وزن دَ فعلت دے دَ فَطَرَ نه یعنی حال دَ پیدائش چه الله تعالی په دغه حال باندے ټول خلق پیدا کړیدی او هغه دَ انسان طبیعت دے او هغه توحید دے په دلیل دَ حدیث صحیح سره (كل مولود يولد على الفطرة فابواه يهودانه او ينصرانه او يمجسانه) هر بچے پیدا کیدے شی په دینِ ( پاتے په بل مخ )

وَاَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۳۱﴾

او دَ مونځ پابندی کوئ او مهٔ کیږئ دَ ډلې دَ مشرکانو نه

مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوا دِيْنَهُمْ وَكَانُوا

(یعنی دَ هغه کسانو نه) چه ټکړے کړے دے دین خپل او شول

شِيَعًا ۭ كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ﴿۳۲﴾

مختلف ډلے هر یوه ډله په هغه طریقه باندے چه دَدوی سره ده خوشحاله ده.

دَ توحید باندے نو روستو مور او پلار (دهٔ لره دَ فطرت نه واړوی) یهودی کړی یا نصرانی یا مجوسی. یعنی که چرے انسان دَپاره څه نور عوارض موانع نه وے نو دے به همیشه دَ توحید په عقیده باندے وے. لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ، دَ خَلْقِ اللّٰهِ نه مراد فطرت دے نو معنیٰ دا شوه چه هیڅ انسان دَ توحید نه بغیر په بدله عقیده باندے نه پیدا کیږی. یا دَ خلق الله نه تقدیر مراد دے یعنی چه الله تعالیٰ چه دَ چا دَپاره سعادت یا شقاوت مقدر کړے وی نو هغه تقدیر نشی بدلیدلے. یا دَ خلق نه مراد دین دَ الله تعالیٰ دے بنا په دے معنیٰ باندے چه نفی په معنیٰ دَ نهی دے یعنی مه بدلوئ دین دَ توحید دَ الله تعالیٰ لره په شرک سره. ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ اقامت ئې کړے شوے دے په دلیلونو سره یا دا چه دَ ټولو پیغمبرانو په اتفاق سره کلک شوے دے. وَلٰكِنَّ سره دفع دوهم ده یعنی که څوک وهم اوکړی چه دین توحید دا سے صحیح دین وے نو دا ډیر خلق تړینه ولے مخالفت کوی نو جواب اوشو چه دا مخالفت دَ دوی دَ بے علمے دَ وجے نه دے. په دے ایت کښ فَاَقِمْ حکم دے او دَ هغے دَپاره درے دلیلونه دی په درے جملو روستو کښ.

ﷺ ۳۱: دا نور خلور اصول دی دَپاره دَ تکمیل دَ اقامت للدین انابت، تقوی، اقامة الصلوٰة، قطع تعلق دَ مشرکانو سره. مراد دَ انابت نه حق پرستی ده چه دَ ضد او تعصب نه بچ وی. وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ یعنی دَ هغوی سره دوستانه او شرکت په غم ښادئ کښ او مشابهت په هیڅ عمل کښ مه کوئ.

ﷺ ۳۲: دَ دے ځائے نه دَ مشرکانو اته صفاتِ قبیحه ذکر کوی چه هغه اسباب دی دَپاره دَ لَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ. په دے ایت کښ درے صفات ئې ذکر کړے دی اول تفریق دَ دین دویم تحزب او ډله بازی. دریم په غلط دین

وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُم

او هر کله چه اورسی (رسیږي) خلقوته تکلیف رابلي خپل رب لره

مُّنِيبِينَ إِلَيْهِ ثُمَّ إِذَا أَذَاقَهُم مِّنْهُ

اخلاص کوونکي وي هغه ته بیا هر کله چه اوڅکوي دوی ته

رَحْمَةً إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم بِرَبِّهِمْ

دَ خپل طرف نه آرام دغه وخت یوه ډله دَ دوی نه دَ رب خپل سره

يُشْرِكُونَ ﴿٣٣﴾ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ

شریکان جوړوي (عاقبت دا) چه ناشکري اوکړي دَ هغه نعمت چه مونږ دوی ته ورکړے وي

فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾ أَمْ أَنزَلْنَا

نو مزے اوکړئ (دَ دنیا) زر ده چه پوهه به شئ. آیا نازل کړے دے مونږ

باندے خوشحالي کول. دَ تفریق دَ دین دا معنیٰ ده چه هر یو خپل دین جدا جدا جوړ کړے دے یعني عقیدے او عملونه ئے دَ خپل ځان نه جوړ کړیدي او هغ ته ئے دَ دین نوم ایښے دے. وَكَانُوا شِيَعًا تشیع نه مراد دَ یو بل سره ملګرتیا او ډله بازي کول دي او دا تعصب دے. او خوشحالي په دین خپل دا ده چه هغه حق ګڼړي او ثواب ئے ګڼړي او په هغ باندے مالي جاني قرباني کوي.

۳۳:- دا زجر دے او په دے کښ دَ مشرکانو یو صفت ذکر کړے دے یعني روستو دَ دُعا دَ الله تعالیٰ نه هغه سره شریک جوړول، او دا سے په سورة نحل ۵۴ کښ تیر شوي دي. مُنِيبِينَ نه مراد اخلاص او اقرار دَ حق پرستئ دے.

۳۴:- په دے کښ بل صفت دَ دوی ذکر دے چه هغه کفر (ناشکري) دَ نعمت دَ الله دے لام دَ عاقبت دے. یعنی شرک کول ناشکري ده دَ نعمت دَ الله تعالیٰ. فَتَمَتَّعُوا په سورة عنکبوت ۶۶ کښ ئے لِيَتَمَتَّعُوا ذکر کړے وُو ځکه چه هلته تکلیف دَ سمندر ذکر کړے دے او هغه سخت تکلیف دے او دَ هغ نه دَ مشرک بچ کول په دے مقصد دي چه په دنیا کښ څه مزے حاصلے کړي ځکه چه مقصد دَ مشرک صرف دَ دُنیا ژوند دے او په دے آیت کښ دَ عام ضرر تکلیف ذکر دے چه دَ هغ نه نجات سبب دے دَ دُنیا دَ مزو حاصلولو دَ پاره نو فاً سببیه ئے ذکر کړیدے.

عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوْا بِهٖ
په دوی باندے دلیل نو هغه ثابتوی (بندګی) د هغه چاچه دوی یئے د الله تعالیٰ سره

يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَاِذَآ اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً
شریکوی۔ او هرکله چه اوڅکوو موږ انسانانو ته خوشحالی د دُنیا

فَرِحُوْا بِهَا ۭ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌۢ بِمَا
لوئی کوی په هغے سره او که چرے اورسی دوی ته بدحالی په وجه د هغه عملونو

قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ اِذَا هُمْ يَقْنَطُوْنَ ﴿۳۶﴾
چه مخکښ لیږلے دی لاسونو د دوی دغه وخت دوی نا امیدی کوی۔

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ
آیا او دوی ته ګوری چه یقینًا الله تعالیٰ فراخوی روزی

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ
چالره چه اوغواړی او تنګوی یقینًا په دے کښ ډیر دلیلونه دی

س۳۵:۔ په دے کښ هم زجر دے او ذکر د بل وصف د مشرک دے یعنی د مشرکینو سره په شرک باندے هیڅ دلیلِ منزّله نیشته معلومه شوه چه شرک صرف په تقلید سره کوی۔ اَمْ اَنْزَلْنَا استفهام انکاری دے او اشاره ده چه د اثباتِ د عقیدے د پاره نازل کړے شوے دلیل ضروری وی۔

س۳۶:۔ دا هم زجر دے او په دے کښ دوه صفات د مشرکانو ذکر کوی او دا قسم مشرک کافر د مخکښنی نه سخت دے په کفر کښ ځکه چه دے په هیڅ حال کښ الله تعالیٰ ته یادوی بلکه په حالت د نعمت کښ تکبر او لوئی کوی او په حالت د مصیبت کښ نا امیدی داسے کوی چه په ژبه او اندامونو سره د هغے اظهار کوی او دے ته قنوط ویلے کیږی۔

لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿۳۷﴾ فَاٰتِ ذَا الۡقُرۡبٰى حَقَّهٗ

هغه قوم لره چه ایمان لري ۔ نو ورکوه رشته‌دار ته حق د هغه

وَالۡمِسۡكِيۡنَ وَابۡنَ السَّبِيۡلِ ؕ ذٰلِكَ خَيۡرٌ

او مسکین ته او مسافر ته دا ډیر فایده‌مند دے

لِّلَّذِيۡنَ يُرِيۡدُوۡنَ وَجۡهَ اللّٰهِ ۫ وَاُولٰٓئِكَ

هغه چا لره چه غواړي مخ د الله تعالیٰ او دغه کسان

هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ ﴿۳۸﴾ وَمَاۤ اٰتَيۡتُمۡ مِّنۡ رِّبًا

دوی پوره کامیاب دي ۔ او هغه چه ورکوئے تاسو څه مال په نیت د زیاتی

لِّيَرۡبُوَا۟ فِىۡۤ اَمۡوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرۡبُوۡا

چه زیات شئ په مالونو د خلقو کښ نو نه زیاتیږي

عِنۡدَ اللّٰهِ ۚ وَمَاۤ اٰتَيۡتُمۡ مِّنۡ زَكٰوةٍ

د الله تعالیٰ په نیز او هغه چه ورکوئے تاسو څه زکوٰة

س۳۷:۔ دا دلیل عقلی د توحید دے او رد دے په هغه انسان باندے چه د هغهٔ حال په مخکښ آیت کښ ذکر کړے شو یعنی فراخی او تنګسیا د الله تعالیٰ د طرف نه وي نو ولے تکبر او نا امیدی کوئے لَاٰیٰتٍ دلیلونه دي په قدرتِ کامله د الله تعالیٰ او قسم قسم حکمتونو باندے او هغهٔ یخوؤنکی د ایمان دي ۔

س۳۸:۔ دا هم د هغه اصولو سره تعلق لري چه د س۳۰ نه شورو شوی دي ۔ تیر شوے اصول د اصلاح د نفس سره تعلق لري او په دے کښ احسان د خلقو سره د پاره د دے چه دعوت د حق ته لار آسانه شي ۔

او د دے آیت ربط د نزدے آیت سره دا دے چه فراخی د رزق حاصلیګی په صله رحمیٔ او احسان د محتاجو سره ۔ او دا خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او مراد ترینه امت دے او دا حکم په احتیاج د ذوالقربٰی او په وخت د استطاعت د ورکوؤنکی کښ واجب دے ځکه چه حقه یٔ ذکر کړے دے۔

یُرِیۡدُوۡنَ وَجۡهَ اللّٰهِ اراده نه مراد نیت کول دي نو اشاره ده چه ثواب په نیت سره حاصلیګی ۔

تُرِيدُونَ وَجْهَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ ﴿۳۹﴾

چه غواړئ په هغې سره مخ د الله تعالیٰ نو دغه کسان دوی ډیروونکی دی (مالونو او اجرونو لره).

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسو ئې پیدا کړئ بیا روزی درکړی تاسو ته بیا به

يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ

مړه کوی تاسو بیا به ژوندی کوی تاسو ایا شته ستاسو د شریکانو نه داسے کس

مَّنْ يَّفْعَلُ مِنْ ذٰلِكُمْ مِّنْ شَيْءٍ سُبْحٰنَهٗ

چه اوکړی د دے کارونو نه څۀ کار. پاک دے الله تعالیٰ

وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۴۰﴾ ظَهَرَ الْفَسَادُ

او بره دے د هغې نه چه دوی ئې شریکان جوړوی. ښکاره شویدی عذابونه

رکوع ۴

ف۳۹ :- دا منع کول دی د مقابل د احسان نه چه ربو او ریاء ده. او په دے ایت کښې تقابل دے د ربو او د زکوٰة په خلاف د ګمان د خلقو سره. ناپوهه خلق ګمان کوی چه په ربو سره مال زیاتیږی نو او فرمائیل فَلَا يَرْبُوْا عِنْدَ اللّٰهِ او ګمان کوی چه په زکوٰة سره مال کمیږی نو اوئې فرمائیل فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ. ربوا په مکه کښې حرام شوے نه وه لیکن بدی او قباحت نه د هغې بیانیدل د پاره د دے چه خلق تری نه ځان بچ کړی یا د ربوا نه مراد (سپک خوئی دے) چه چا لره هدیه په دے اراده ورکوی چه دے به د دے په وجه ماله زیات راکړی لکه مدارک کښې لیکلے دی. زَكٰوةٍ د دے نه مراد فرضی زکوٰة دے بنا په قول د هغه مفسرینو چه هغوی وائی دی چه په مکه کښې زکوٰة فرض شویوو لیکن مقدارونه ئې نوو مقرر کړے شوی. یا مراد تری نه هره صدقه او هدیه ده په دے نیت سره چه پاک والے او زیات ثواب په هغې سره حاصلوی یعنی د زکوٰة نه معنیٰ لغوی مراد ده. تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ ئې دوباره ذکر کړو د پاره د امر د نیت او اراده یعنی فرض نفل هر عبادت په نیت باندے بنا دے. الْمُضْعِفُوْنَ په دُنیا کښې مال ئې زیاتیږی ظاهراً او برکات ئې ډیریږی او په اخرت کښې ثواب ډیر حاصلیږی.

ف۴۰ :- دا هم دلیل عقلی دے او ترغیب دے چه په هر عبادت کښې اراده د وَجْهُ اللّٰهِ کوئ ځکه هغۀ په تاسو باندے انعام د خَلق او د رزق کړیدے

فِی الۡبَرِّ وَ الۡبَحۡرِ بِمَا كَسَبَتۡ اَيۡدِی النَّاسِ

په اوچه او لوند کښې په وجه دَ هغه ګناهونو چه کړې دی لاسونو دَ خلقو

لِيُذِيۡقَهُمۡ بَعۡضَ الَّذِیۡ عَمِلُوۡا

دَپاره دَ دې چه او سکوی دوی ته بعض سزا دَ هغه عملونو چه دوی کړې دی

لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُوۡنَ ﴿۴۱﴾ قُلۡ سِيۡرُوۡا

دَپاره دَ دې چه دوی اوګرځی طاعت دَ الله تعالیٰ ته۔ ته اُووایه اوګرځئ

فِی الۡاَرۡضِ فَانۡظُرُوۡا كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ

په ملک کښې نو اوګورئ چه څنګه ووُ انجام

الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلُ ؕ كَانَ اَكۡثَرُهُمۡ

دَ هغه کسانو چه دوی نه مخکښې وو ډیر دَ هغوی نه

او امانت (مرګ) او احیاء دَپاره دَ تخویف ذکر کړیدی او بیائې په دې باندې رد دَ شرک صراحةً بنا کړیدې او مسئله دَ توحید ئې ذکر کړې ده۔ سُبۡحٰنَهٗ کښې اشاره ده چه دَ الوهیت حقه او دَ شرکت په مینځ کښې عقلی منافات دے او تَعٰلٰی کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ اوچت دے او بره دے۔ او شُرَكَآءِ چه ټول مخلوق کوزدی دوی الله تعالیٰ ته نشی رسیدلے۔

۴۱:۔ په دې ایت کښې تخویف دنیوی دے سرهٔ دَ ذکر کولو دَ سبب دَ عذاب نه، اَلۡفَسَادُ نه مراد نقصان په هره فائده کښې۔ فِی الۡبَرِّ وَالۡبَحۡرِ، هغه طوفانونه چه په هغې سره جهازونه کشتۍ غرق شی۔ ډیر موجونه چه جهازونه نشی چلیدلے۔ دواب دَ سمندر هلاکیدل دَ ښکار کمیدل۔ دَ باران نه کیدلو دَ وجې نه ملغلرې په صدفونو کښې نه جوړیدل وغیره دا عذابونه په سمندر کښې راځی۔ بِمَا كَسَبَتۡ، دا رنګ په سورة شوریٰ ۳۰ کښې هم دی او دا سزا دَ بعض عملونو ده نو که مؤمنان وی نو دَ بعض نه ورته الله تعالیٰ معافی اوکړی او که کافران وی یا مؤمنان ګنهګاران چه توبه او نه باسی نو نور عذاب ورله برزخ کښې او اخرت کښې ورکوی۔ يَرۡجِعُوۡنَ مراد دَ دې نه توبه کول په زړه کښې او په ژبه سره دَ پریخودلو دَ ګناه نه۔

مُّشْرِكِيْنَ ﴿۴۲﴾ فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ الْقَيِّمِ

مشرکان وو . تو برابر کړه مخ خپل دین پوخ ته

مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ

مخکښ د دے نه چه راشي ورځ چه نه به وي واپسي د هغې د الله د طرفه

يَوْمَئِذٍ يَّصَّدَّعُوْنَ ﴿۴۳﴾ مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ

په دغه ورځ به ټکړے شي خلق . چاچه کفر کړے دے نو په هغه باندے به سزا

س۴۲ :- دا تاکید دے د تیر شوي ایت په ذکر د عذابونو د تیر شوے منکرینو سره ، كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّشْرِكِيْنَ یعني لوے سبب د عذابونو شرک وؤ او په بعض قومونو باندے د نورو ګناهونو د وجے نه هم عذابونه راغلي دي.

س۴۳ :- د دے ایت نه تر اخر د سورت پورے اخري باب دے په دے کښ امر دے په ټینګیدلو سره په توحید باندے او تخویف اخروي او بشارت مختصر ذکر کوي په درے ایاتونو کښ . بیا عقلي دلیلونه پنځه ذکر کوي س۴۶ س۴۸ س۴۹ س۵۰ س۵۴ ، او دعویٰ د سورت په س۴۷ کښ او زجر منکرینو ته په س۵۱ کښ او تسلّي نبي صلّی الله علیه وسلّم ته په س۵۲ س۵۳ کښ بیا تخویف اخروي په س۵۵ س۵۶ س۵۷ او زجر په انکار د قران سره په س۵۸ س۵۹ کښ او اختتام ذکر کوي په تسلّئ سره چه متعلق دے د اوّل د سورت سره په س۶۰ کښ . په دے (س۴۳) کښ حکم کوي په اقامت د دین د پاره د دفع کولو د عذاب چه مخکښ ایاتونو کښ ذکر کړے شو . او اَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ الْقَيِّمِ نه مراد ټینګیدل دي توحید باندے سره د مخالفت د اعمالو د مشرکانو نه . هر کله چه دلیلونه یې په توحید باندے ډیر بیان کړل او د مشرکانو قبائح یې هم ذکر کړل او لوے سبب د عذاب یې ذکر کړو چه شرک دے نو د هغې نه معلومه شوه چه دین د توحید قَيِّمِ (کلک) دین دے . د دے وجے نه په دے ایت کښ د دین سره یې قَيِّمِ راوړو . لَّا مَرَدَّ دا مصدر میمي دے . مِنَ اللّٰهِ دا متعلق دے یَاْتِيَ پورے (یعني راځي به دا ورځ د طرف د الله تعالیٰ نه) یا متعلق په محذوف پورے چه مَرَدَّ په هغې باندے دلالت کوي یعني (نشي واپس کولے هغې لره هیڅوک د الله تعالیٰ نه) یا متعلق دے په مصدر پورے یعني (نیشته واپسي د هغې د طرف د الله تعالیٰ نه) يَصَّدَّعُوْنَ کښ د ډلو جدا کیدل مراد دي صدع دلالت کوي په شق باندے اشاره ده چه یو بل نه پوره جدا شي.

كُفْرُهٗ ۚ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِأَنْفُسِهِمْ

دَكفر دَ هغه وى او چاچه عمل كړے وى موافق دَ سنّت سره نو دوى خپلو ځانو نو لره

يَمْهَدُوْنَ ﴿۴۴﴾ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

ښه ځائے تيار وى دَپاره دَدے چه بدله وركړى هغه چاته چه ايمان ئے راوړے دے

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْ فَضْلِهٖ ۭ اِنَّهٗ

او عملونه ئے كړے دى دَ سنّت موافق دَ فضل خپل نه يقينًا الله تعالىٰ

لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۴۵﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ

نه خوښوى كافرانو لره . او بعض دَ دليلونو دَ توحيد او دَ قدرت دَ الله تعالىٰ نه

اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّلِيُذِيْقَكُمْ

دا چه رالېږى هواګانے زيرے وركوونكى او دَپاره دَدے چه اوسكوى تاسو ته

مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ

څه حصه دَ رحمت خپل نه او دَ پاره دَدے چه روانے وى كشتے په حكم دَ الله تعالىٰ سره

وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۴۶﴾

او دَپاره چه اولټوئے دَ فضل دَ الله تعالىٰ نه او دے دَپاره چه شكر اوكړئے تاسو .

---

ف۴۴ :. په دے كښ دَ دواړو ډلو ذكر دے په تخويف او بشارت سره . يَمْهَدُوْنَ ځائے دَ ارام تياروى دَ ځان دَپاره په قبر كښ او حشر كښ . مَنْ عَمِلَ صَالِحًا دلته عمل عام دے عقيدے (ايمان) او اعمالو ته شامل دے .

ف۴۵ :. دا هم متعلق دے په تېر شوى اٰيت پورے په لف نشر غير مرتب سره . لِيَجْزِيَ متعلق دے په يمهدون پورے . مِنْ فَضْلِهٖ اشاره ده چه جزاء محض فضل دَ الله تعالىٰ دے ، په الله تعالىٰ باندے واجب نه ده . اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ متعلق دے فَعَلَيْهِ كُفْرُهٗ پورے .

---

ف۴۶ :. دا يل دليل عقلى دے او په دے كښ وجه دَ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ده يعنى كافر دَ ښكاره اٰياتو نه منكر دے او دَ هواګانو دَ رالېږلو ئے پنځه فائدے ذكر كړيدى اول بشارت په باران سره دوېم رحمت او مراد تربيته او په او اونے بوټى او په هغے سره خوراك څكاك وغيره دى درېم چليدل دَ كشتو په هواګانو (پاتے په بل مخ)

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا اِلٰى

او یقیناً لیږلے دی موږ ستا نه رواندے رسولان

قَوْمِهِمْ فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَانْتَقَمْنَا

قوموتو دَ هغوی ته نو راوړل ئې دوی ته ښکاره احکام نو بدله واغستله موږ

مِنَ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا ؕ وَكَانَ حَقًّا

دَ مجرمانو نه او دے ضروری

عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۴۷﴾ اَللّٰهُ الَّذِیْ

پهموږ باندے مدد کول دَ مؤمنانو سره۔ الله تعالیٰ خاص هغه ذات دے

يُرْسِلُ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَيَبْسُطُهٗ

چه رالیږی هوا گانے نو را اوچتے کړی وریځے نو خورے کړی هغے لره الله تعالیٰ

فِى السَّمَآءِ كَيْفَ يَشَآءُ وَيَجْعَلُهٗ كِسَفًا

په بره طرق کښ څه رنګه چه اوغواړی او ګرځوی الله تعالیٰ دا وریځے ټکړے ټکړے لاندے باندے

فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ فَاِذَآ

نو وینے ته څاڅکی دَ باران چه راوځی دَ مینځ دَ هغے نه نو کم وخت

سره لیکن په امر دَ الله تعالیٰ سره څلورم طلب دَ رزق په بحری سفر سره پنځم شکر په دغه انعاماتو باندے۔

ف۴۷:۔ هر کله چه ظاهری انعامات ئې ذکر کړل نو اوس باطنی انعام ذکر کوی او مقصد پکښ تائید دَ دعوے دَ سورت دے۔

حَقًّا عَلَيْنَا دا حق الله تعالیٰ په ځان باندے لازم کړے دے په سبب دَ وعدے خپلے سره او دیته حق تفضلی ویلے کیږی دا حق واجبی نه دے پشان دَ وجوب په بندګانو باندے او دَ دے نصرت یو مثال په حدیث دَ ترمذی کښ ذکر دے (ترجمه) "نیشته یو مسلمان شخص چه حفاظت اوکړی دَ عزت دَ یو مسلمان رور مګر حق دے په الله تعالیٰ باندے چه لرے کوی به دَ هغه نه اُور دَ جهنم په ورځ دَ قیامت"۔ بیائې اولوستلو دا آیت وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ ۔

أَصَابَ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ إِذَا هُمْ

چه اورسوی هغه لره هغه چاته چه اوغواړی الله تعالیٰ د بندګانو خپلو نه دغه وخت دوی

يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَإِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ

ډیر خوشحاله شي. اګر چه وو دوی مخکښ

أَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِيْنَ ﴿۴۹﴾

د راورولو د باران نه په دوی باندے مخکښ د دے وخت نه ناامیدی کوونکی.

فَانْظُرْ إِلٰٓى اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْيِ

نو اوګوره نښو د رحمت د الله تعالیٰ ته چه څه رنګه تازه کوی الله تعالیٰ

الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ إِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۚ

زمکه روستو د اوچیدلو د هغے نه یقینًا دغه ذات ضرور ژوندی کوونکے د مړو دے

وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۵۰﴾ وَلَئِنْ أَرْسَلْنَا

او هغه په هر څیز باندے قدرت والا دے. او که چرے اولیږو مونږ

۴۸:۔ دا بل دلیل عقلی دے او مثال د نصرت الٰهیه دے لکه چه روستو د نا امیدئ د خلقو نه الله تعالیٰ باران اوکړی او خلق خوشحاله شی نو دا رنګ روستو د کمزورولی د مؤمنانو نه الله تعالیٰ به هغوی له نصرت او فتح ورکوی. او په دے ایت کښ د وریځو مختلف حالات ئے ذکر کړے دی د هغے راپورته کیدل د هغے خوریدل د هغے ټوټے کیدل د هغے نه باران راوتل. اشاره ده چه دا ټول تصرف د الله تعالیٰ دے او دا سے حالات اکثر د سپرلی په موسم کښ پیدا کیږی۔

۴۹:۔ دا تتمه د مخکښ ایت ده. د مِنْ قَبْلِهٖ ضمیر وریځ ته راجع دے او یا پړ وخت ته راجع دے او یا قرآن ته راجع دے یعنی د قرآن د هدایت نه وړاندے دا خلق د جهل د وجے د سوکړے په وخت به ډیر نا امیده کیدل د رحمت د الله تعالیٰ نه۔

۵۰:۔ دا بل دلیل عقلی دے او د تیر شوی ایت سره تعلق لری یعنی اشارهٔ باران ذکر کوی ځکه چه دلته د رحمة الله نه مراد باران دے او د اٰثار نه مراد بوټی و نے فصلونه وغیره دی. كَيْفَ يُحْيِ دا د اٰثار تفسیر دے. إِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى دا اثبات د قیامت دے په حیات د زمکے سره روستو د موت د هغے نه په طریقه د قیاس سره۔

رِيحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ

سیلئ نو اوینی دوی فصل لره زیړ نو شوروبه شی روستو د هغې نه چه

يَكْفُرُوْنَ ﴿۵۱﴾ فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَلَا

کفر به کوی . پس یقیناً ته اورول نشې کولے مړو ته او

تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿۵۲﴾

اورول نشې کولے کڼړو ته بلنه هرکله چه دوی اوګرځی شا کوونکی .

وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ط

او نه یې ته هدایت کوونکے ړندو ته چه راؤباسے د ګمراهۍ د هغوی نه

۵۱ :. دا زجر دے یعنی سره د نعمت د باران او د فصلونو نه که چرته د دوی د بدو عملونو په وجه سره په دغه فصلونو باندے سیلئ د عذاب راشی او مړاوے او زیړ شی نو دوی توبه نه اوباسی بلکه کفر کوی.

**فائده** :. د فائدے هواګانے اکثر په صیغه د جمع سره ذکر کیږی ریاح لکه چه مخکښ دوه ایاتونو کښ یې ذکر کړو. او د عذاب هوا مفرد ذکر کیږی او د دے وجه دا ده چه د رحمت او فائدے هواګانے ډیرے وی او د عذاب سیلئ کله کله وی.

۵۲ ۵۳ :. هرکله چه د دلیلونو نه د مخالفینو انکار یې (په تیرشوی ایت کښ) ذکر کړو نو اوس یو اعتراض دفع کوی یعنی که څوک اعتراض اوکړی چه دا انکار د دوی د وجے د نقصان د دلیلونو نه دے نو جواب اوشو چه دلیلونه خو پوره مؤثر دی ځکه چه مؤمنان ترینه فائدے اخلی لیکن په منکرانو کښ موانع د دوی د طرف نه موجود وی هغه دا چه دوی ټول حواس ځان له بے کاره کړے دی د مړو پشان یا بعض حواس یې بے کاره کړے دی لکه کوڼ او ړوند. سورة نمل کښ د انك لا تسمع نه ړواندے ایاتونه په انّ سره مصدر تیرشوے وو نو ځکه په هغه سورت کښ یې په انّ سره راوړے وو او دا رنګ هغه علت وو د پاره د ماقبل او په دے سورت کښ دا تفریع ده په ماقبل باندے او په تفریع باندے فاء داخلیږی. او په دے سورت کښ فاء په ۱۷ ۳۰ ۳۸ ۴۳ کښ هم ذکر کړے ده.

**فائده** :. هر چه د مړو افهام (پوهه کول) ممکن نه دے نو هغه یې اول

إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُم

اوروَل نه شے کولے ته مګر هغه چاته چه یقین لری په ایاتونو زمونږ نو دوی

مُّسْلِمُونَ ﴿٥٣﴾ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن

حکمونه منی . خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړے یئے تاسو دَ

ضَعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِن بَعْدِ ضَعْفٍ

کمزورے نه بیا یئے ګرځولے دے روستو دَ کمزورے نه

قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِن بَعْدِ قُوَّةٍ ضَعْفًا

طاقت بیا یئے ګرځولے دے روستو دَ طاقت نه کمزوری

ذکر کړو بیا دَ کوتر افهام دپر سخت دے نو هغهٔ یئے ورپسے ذکر کړو بیا د رونه لږ سخت دے نو هغه یئے روستو ذکر کړو نو په دے تشبیهاتو کښ تنزّل دے دَ اعلیٰ نه ادنیٰ ته، اشاره ده چه دَ قرآن نه هغه څوک فائده اغستے شی چه په ټولو حواسو سره ورته توجه او کړی. او دا رنګ په دے درے تشبیهاتو کښ دَ کافرانو هغه درے حالاتو ته اشاره ده کوم چه په ﴿خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ﴾ کښ ذکر دی.

**مسئله دَ سماع موتیٰ:-** (چه مړی دَ دُنیا والو خبرے اوری او که نه اوری) مقام دَ دے مسئلے (دَ مړو نه اوریدل خبرو دَ ژوندو لره) دا اتفاقی مسئله ده. قول دَ امام شافعی رحمة الله او دَ امام احمد رحمة الله تعالیٰ په مغنی دَ ابن قدامه ص۴۱۵/۱۳ او په تکمله دَ شرح مهذب للنووی ص۹۱/۱۸ کښ ذکر کړیدی او دَ هغوی دلیل یئے ایت دَ سورة فاطر وما انت بمسمع من فی القبور ذکر کړے او دَ امام ابوحنیفه رحمة الله په الکوکب الدری شرح الترمذی ص۳۱۹/۱ کښ او په تفسیر مواهب الرحمان ص۷۰/۲۱ او تفهیم المسائل ص۲۳ کښ ذکر کړے دے او دا رنګ په تفسیر دَ ایت انما یستجیب الذین یسمعون والموتیٰ یبعثهم الله (۳۶ سورة انعام) تفسیر خازن ص۱۴/۲ تفسیر نیشاپوری ص۱۳۷/۷ تفسیر ابن جریر ص۱۱۸/۷ کښ لیکلی دی چه مړی نه اوری. او دا رنګ فتح القدیر ص۶۹ کتاب الجنائز کښ ویلے دی چه دَ اکثرو علماؤ احناف قول دا دے. دا رنګ عینی په عمدة القاری ص۲۰۲/۸ کښ لیکلے دی چه مړی نه اوری. شیخ رشید احمد ګنګوهی لیکلے دی چه دا قول دَ عائشه رضی الله عنها او ابن عباس رضی الله عنهما دے او دا قول دَ ملا علی قاری دے په (پاتے په بل مخ)

ققرء حفص بضم الضاد و فتحها ۸ مو (الخ) ... انحصر مغتار ۱۲

شرح فقه اکبر ص۱۵۹ او دا قول دَ تفتازانی دے شرح مقاصد ص۳۲۱/۲ . او دَ دے نه علاوه نور هم دَ فقهاؤ محدثینو دا قول دے. که څوک اعتراض اوکړی چه عبدالله ابن عمر رضی الله عنه (دَ حدیث قلیب بدر) په وجه دَ دے قائل دے نو معلومه شوه چه مسئله کښ دَ صحابه کرامو اختلاف وو، اول جواب دا دے چه هر کله عائشه رضی الله عنها دَ هغه حدیث مقصد بیان کړو نو ابن عمر رضی الله عنه دَ هغه جواب نه دے کړے نو اختلاف ختم شو، دویم جواب دا دے چه دا یو منصوص موضع کښ ابن عمر رضی الله عنه قائل دے.

هاں اختلاف دَ اهل علمو په دے کښ شته چه مواضع منصوصه کښ سماع ثابت ده او که نه ده. اکثر احناف وغیره مواضع منصوصه کښ هم دَ سماع قول نه دے کړے بلکه دَ هغے تاویلونه ئے کړیدی لکه چه روستو به ذکر کړے شی.

او بعض اهل علم صرف په مواضع منصوصه کښ دَ سماع قائل دی لکه امام بخاری او صاحب دَ فتح القدیر په سماع دَ قرع النعال قائل دی او شیخ الاسلام ابن تیمیه او ابن قیم رحمهما الله هم په مواضعو منصوصو کښ قائل دی او دا رنګ علامه آلوسی مفسر دَ روح المعانی او شاه انور شاه کاشمیری مصنف دَ فیض الباری شرح بخاری هم په مواضع منصوصو کښ دَ سماع قائل دی. او مواضع منصوصه صرف درے دی یو سماع دَ قرع النعال دویم حدیث بدر دا دواړه صحیح احادیث دی او دریم حدیث دَ سلام دے چه په هغے کښ ذکر دَ اوریدلو دَ سلام او جواب ورکول دی لیکن هغه حدیث صحیح نه دے لکه چه روستو به ذکر کړے شی او څوک چه دَ مړی دَ هر وخت دَ اوریدلو عقیده لری نو دَ هغوی هیڅ صحیح دلیل نیشته نو دا عقیده دَ بدعت ده او کله چه دَ دے عقیدے دَ وجے دَ مړی نه شفاعت غواړی نو دا شرک ته ذریعه ده او کله چه دَ مړی نه حاجت پوره کیدل غواړی نو دا خو بلکل شرک حقیقی دے. دلیل دَ مړو دَ نه اوریدلو انك لا تسمع الموتی (سورة نمل) فانك لا تسمع الموتی (سورة روم) وما انت بمسمع من فی القبور (سورة فاطر) آیاتونه دی. طریقه دَ استدلال ئے دا ده چه الله تعالیٰ په دے آیاتونو کښ تشبیه دَ کافرانو (عنادیانو) دَ مړو سره ورکړیده په نه اوریدلو کښ (لکه چه په دے باندے تفسیر ابن جریر دَ دے آیت دَ لاندے تصریح کړے ده او نورو مفسرینو هم او صاحب دَ فتح القدیر هم) او وجه شبهه په مشبه به کښ زیاته وی یا مشهور وی نو معلومه شوه چه مړی نه اوری. په دے کښ استدلال دے په اشارة النص سره او هغه هم یقینی دے اګر چه عبارة النص دَ دے آیاتونو بیان دَ نه اوریدلو دَ عنادیانو دے بیا په دے استدلال

باندے خو اعتراضونه دی دَهغے جوابونه لیکلے کیدے شی. اول اعتراض په دے
ایاتو کښ نفی دَ اسماع ده نفی دَ سماع خو نه ده؟ اول جواب دادے چه عائشے رضی الله
عنها په دے سره دلیل نیولے دے دَ پاره دَ نه اوریدلو دَ مړو او هغه اهلِ لغتِ
عربیه ده نو که دا استدلال صحیح نه وے تو هغه به پرے وے استدلال کوؤ.
دویم جواب سماع مطاوع او تابع (اثر) دے دَ پاره دَ اسماع او په نفی دَ مطاوع
سره نفی دَ مطاوع ضرور راځی. دویم اعتراض اسماع په معنیٰ دَ پیدا کولو دَ سماع
او دَ توفیق ورکولو ده لکه چه انك لا تهدی من احببت کښ راغلے دی؟
جواب اول خو دلیل نیول دَ عائشه رضی الله عنها دے. دویم جواب الزامی دادے چه
ورپسے فرمائیلے دی ان تسمع الا من یؤمن نو ایا دلته دا معنیٰ صحیح کیږی؟
چه ته سماع نشے پیدا کولے مګر (هغه چا لره پیدا کولے شے) چه ایمان لری
دا معنیٰ خو باطله ده نبی صلی الله علیه وسلم خو هیچا له نه سماع پیدا کولے شی
او نه توفیق ورکولے شی. دریم اعتراض دا تشبیه صحیح نه ده ځکه چه مړی نه
اوری او کافران اوری خو فائده ترینه نشی اغستلے نو معلومه شوه چه مړی اوری
خو فائده نشی اغستلے؟ اول جواب استدلال دَ عائشه رضی الله عنها دے. دویم
جواب الزامی دے چه هرکله مړے اوری خو فائده نشی اغستلے نو دَ هغوی سره
خبرے کول عبث کار شو او عبث کار کول ناجائز دی. دریم جواب دادے چه
تشبیه صحیح ده ځکه وجه شبه جنس نه اوریدل دی او دَ هغے دوه نوعے دی یو نه
اوریدل مطلقاً او دویمه نوعه نه اوریدل په طریقه دَ عدم انتفاع سره نو جانب دَ
مشبه به (یعنی مړی) کښ نه اوریدل دی او په جانب دَ مشبه (کافرانو) کښ نه
اوریدل په طریقه دَ نفع اغستلو لکه زید کالاسد کښ وجه شبه شجاعت دے لیکن
په اسد کښ شجاعت دَ افتراس (خلق شلول او خوړل) دی او په زید کښ صرف
شجاعت دے او تشبیه صحیح ده. څلورم جواب الزامی دے چه دا اشکال خو ورپسے
جمله کښ هم لازمیګی ولا تسمع الصم یعنی کوڼړ هغه وی چه هیڅ نه اوری او حال
دا چه تشبیه دَ کافرانو ئے ورسره کړے ده نو دَ دے څه جواب دے؟ نو هغه جواب
به په اوله جمله کښ هم کیدے شی.
څلورم اعتراض بعضِ مفسرینو دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه مراد
دَ موتیٰ نه موتی القلوب دی یعنی چه زړونه ئے مړه وی او هغه خو کافران دی؟
جواب دادے چه یو اشارة النص دے (چه هغه دَ عبارت دَ روند نه معلومیګی)
او یل عبارة النص دے (هغه چه مقصد دَ عبارت دَ چلیدلو وی) (رپاتے په بل مخ)

او مراد چه چا ذکر کړے دے نو دَ عبارة النص په لحاظ سره او استدلال دَ نه اوریدلو په لحاظ دَ اشارة النص سره دے بعضو خلقو اعتراض کړے دے چه فقهاؤ دَ مړو دَ نه اوریدلو مسئله په باب دَ قسم کښ ذکر کړیده او هر کله چه بِنا دَ قسمونو په عرف باندے وی نو دَ دے نه نهٔ معلومیګی چه مړے بلکل نه اوری. اول جواب دا دے چه فقهاؤ دا مسئله په باب دَ تلقین دَ مړی کښ او دَ سلام دَ جنازه کښ هم ذکر کړیده لکه فتح القدیر او بحر الرائق کښ. دویم جواب چه هر کله په عرف کښ نه اوری، نو معلومه شوه چه شرعًا هم نه اوری، ځکه چه عرف خلاف دَ شرع نه معتبر نه وی خاص طور په شرعی مسائلو کښ، دریم جواب دا دے چه په مغنی د ابن قدامه او په تکمله دَ شرح مهذب کښ دَ دے مسئلے دلیل یئے دا آیت ذکر کړے دے وما انت بمسمع من فی القبور عرق یئے نه دے ذکر کړے هغه احادیث چه دَ هغے نه دلیل نیولے کیدیشی دَ پاره دَ اثبات دَ سماع موتیٰ او دَ هغے جوابونه"!

حدیث اول. سماع المیت قرع النعال (یعنی مړے چه دفن کړے شی او خلق ترینه واپس راروان شی نو دے کشار دَ پیزار اوری چه دغه وخت ورته ملائک دَ سوال وجواب راشی اه) اول جواب دا دے چه دا خاص دے په وخت دَ دفن پورے کوم وخت چه کیښودلے شی په قبر کښ لکه چه دا قول دَ ابن همام دے او دا قول دَ امام بخاری رحمة الله هم دے. دویم جواب دا دے چه دا جمله تجیزیه ده ظاهرًا او تعلیقیه ده معنیٰ دا شوه یعنی لوکان حیًا په کښ پټ دے که دا شخص ژوندے وے نو اوریدل به یئے کړے وے. او دا تعلیق دَ دے وج نه دے چه ملائکو تر اوسه پورے دهٔ ته روح نه دے راوړے نو دے څه رنګه اوری او دا قول دَ ملا علی قاری په مرقات شرح مشکوٰة ص۱۹۸ کښ نقل کړے دے.

دریم جواب دا تمثیل دے دَ زر راتللو دَ ملائکو دے مړی ته دَ پاره دَ سوال وجواب یعنی دا ملائک دا سے زر راځی که دے ژوندے وے نو دَ دے خلقو دَ پیزار کشار به یئے اوریدلے وے دَ وج دَ نزدے والی دَ هغے نه دا رنګ په الکوکب الدری ص۳۱۹/۱ کښ ذکر کړے دی. څلورم جواب. عبارت دَ دے حدیث انه یسمع قرع نعالهم دے یعنی یسمع صیغه دَ مجهول ده او قرع مرفوع دے نائب فاعل دے.

پنځم جواب دا دے چه اوریدل دَ کشار دَ پیزار مستلزم نه دے اوریدلو دَ خبرو لره ځکه چه یو شخص دَ کوټے دَ چت دَ پاسه ګرځی او دروازے بندے وی نو لاندے شخص دَ دهٔ دَ پښو دَ ګرځیدلو کشار اوری لیکن خبرے یئے نه اوری او دا ښکاره خبره ده. شپږم جواب دا دے چه دَ دے حدیث په سند کښ یو راوی

عبدالاعلی بن عبدالاعلی دے او په دهٔ کښې کلام دے لکه چه لسان المیزان ص۹۰ ج۴ کښې نقل دی۔

حدیث دویم۔ حدیث دَ قلیب بدر دے یعنی څوارلس مشران دَ قریشو کافرانو لره په کوهی کښې اوغورځولے شو او بیا ورسره درے ورځے روستو رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرے اوکړے۔(الخ) اول جواب داد ے چه عایشه رضی الله عنها دَ دے مراد په علم سره بیان کړے دے یعنی دا مړی په هغهٔ عذاب باندے پوهیږی کوم چه ما دوی ته خبر ورکړے وؤ او سمع په معنیٰ دَ علم سره راتلے شی او عایشه رضی الله عنها دلیل نیولے دے په آیت دَ قرآن سره۔ او امام بخاری په ص ج۱ ص۵۶۷ ج۲ کښې ذکر کړے دی۔ دویم جواب داد ے چه دا معجزه ده او خاص ده په نبی صلی الله علیه وسلم پورے او دلیل په دے باندے قول دَ قتاده دے چه امام بخاری په ص۵۶۶ ج۲ کښې نقل کړے دے چه الله تعالیٰ دغه وخت دوی لره ژوندی کړل دَ دے دپاره چه قول دَ نبی صلی الله علیه وسلم ورته واؤروی۔ دریم جواب دا مختص دے صرف په دغه کسانو پورے کوم چه قلیب بدر ته ئے غورځولے وؤ په دلیل دَ الفاظو دَ تخصیص سره چه راغلے دی په دغه حدیث کښې ما انتم باسمع لما اقول منهم یعنی دَ خپل قول تخصیص ئے کړیدے۔

حدیث دریم۔ حدیث دَ سلام په قبرونو باندے په صیغه دَ خطاب او حرف ندا سره (جواب)
اول جواب داد ے چه صرف خطاب مستلزم دَ اوریدلو ته دے او دَ دے دپاره په عربئ کښې ډیر شواهد موجود دی قرآن کریم سورة صافات ۹۱ ۹۲ کښې خطاب شته او اوریدل نیشته او دا رنګ حرف دَ ندا اوریدلو لره مستلزم نه دے۔ عرب ډیر کرتے ندا دَ نور مقصد ونو دپاره مستعملوی او مړی ته ندا په نیز دَ عربو او نحویانو دَ ندبے (ویر کولو) دپاره وی په هغے کښې اورول مقصد نه وی۔ دویم جواب داد ے چه دَ اسلام دَ تحیه نه دے اوریدل او جواب نه غواړی بلکه سلام په مړی باندے دُعا دَ سلامتیا وی دا رنګ بحرالرائق ص او طحطاوی ص۳۳۲ کښې لیکلے دی۔

حدیث څلورم۔ حدیث دَ سلام په قبر باندے چه قبر والائے پیژنی او جواب دَ سلام ورکوی؟ جواب داد ے چه دا حدیث ضعیف دے په دے کښې ابن سمعان راوی دے، میزان الاعتدال او تهذیب التهذیب کښې ئے دهٔ ته کذاب او وضاع ویلے دی او بل راوی یحییٰ بن یمان دے او هغهٔ ته هم میزان اعتدال لیس بالقوی ویلے دی او دا رنګ آلوسی په تفسیر روح المعانی کښې دَ دے آیت په تشریح کښې او الصارم المنکی ص۱۸۶ کښې دے حدیث ته ضعیف ویلے دی۔ (پاتے په بل مخ)

وَشَيْبَةً ۚ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِيمُ

او بوډا والے پیدا کوی څه چه اوغواړی او خاص الله تعالیٰ په هر څه پوهه

الْقَدِيرُ ﴿٥٤﴾ وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ

او قدرت والا دے. او په کومه ورځ چه قیامت قائم شی قسمونه به کوی

الْمُجْرِمُونَ ۙ مَا لَبِثُوا غَيْرَ سَاعَةٍ ۚ كَذَٰلِكَ

مجرمان نه وو ایسار شوی دوی زیات د ساعت نه دغه شان

تنبیه: تفسیر ابن کثیر کښې ډیر احادیث ذکر کړے دی چه دلالت کوی په اوریدلو د مړو باندے؟ اول جواب دادے چه په هغې کښې هیڅ حدیث صحیح متصل نیشته په بعضو د هغې باندے تفسیر ابن کثیر روح المعانی کښې حکم د ضعف کړے دے او د هر یو په سند باندے کلام کولو سره ډیر اوګډ والے راځی ځکه مونږ اختصار اوکړو. دویم جواب دادے الشیخ محمد نسیب الرفاعی په مختصر د ابن کثیر ص ۴۴۵ ج ۳ کښې ویلی دی چه په نسخه د ابن کثیر طبع بیروتی دار الاندلس کښې زیاتے راغلے دے (د دغه احادیثو واهیو) په بله نسخه د ابن کثیر کښې دس (دګان نه داخل) کړے شوی دے شان د ابن کثیر د دے نه اوچت دے.

**فائده:** حافظ ابن حجر فتح الباری کښې عائشه رضی الله عنها رجوع ذکر کړیده؟ اول جواب دادے چه ابن حجر دا په شک سره ذکر کړیدے (فان کانت محفوظة) دویم جواب دادے چه په دیکښې یو راوی یونس بن بکیر دے او هغهٔ ته په تهذیب التهذیب ص ۴۳۵ ج ۱۱ کښې ئے ضعیف او بے حجته ویلے دی.

دریم جواب د دے په سند کښې محمد بن اسحاق دے او هغه ته امام مالک او هیشام او سلیمان تیمی وغیره کذاب ویلے دی. نو معلومه شوه چه اثبات د سماع موتیٰ د پاره بغیر د حدیث قرع النعال او حدیث قلیب بدر نه بل هیڅ صحیح حدیث نیشته او د هغه دواړو جواب د تخصیص یا تاویل ذکر کړے شوے دے نو پس د دے نه صرف د رجالو او د اشخاصو په اقوالو (بے دلیله) سره دهوکه کیدل نه دی پکار.

۵۴: دا بل دلیل عقلی دے او په دیکښې انقلاب د حالاتو د انسانانو ذکر کوی. او تیر شوی ایت سره ربط دادے چه اسماع او هدایت د دے وجے نه د الله تعالیٰ په اختیار او قدرت کښې دے چه دا انقلاب د حالاتو چه په دے ایت کښې ذکر دے دا هم د الله تعالیٰ په اختیار کښې دے. مِنْ ضَعْفٍ مراد تری نه نطفه ده چه کمزورے او په دی

كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ﴿۵۵﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ

دوی اوړیدلے کیدل دَ حق نه ۔ او اوبه وائی هغه کسان چه ورکړے شوے دے علم

وَالْاِيْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ

او ایمان یقیناً وخت تیر کړے دے تاسو په لیکلے شوے (تقدیر) دَ الله تعالیٰ کښ

اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ ز فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ

تر ورځ دَ دوباره ژوند پورے نو دا ورځ دَ دوباره ژوندون ده

وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۵۶﴾

لیکن تاسو دئ چه پوهه هم نه لرله۔

لکه چه سورة مرسلات ۲۰ کښ (ماءٍ مهين) ویلے دی یا مراد تر ینه حالتِ ضعیفه دے په ابتداءِ دَ ولادت کښ مِنْ په معنیٰ دَ فی دے ۔ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ اسم ظاهر ئے ذکر کړو په دے کښ کمزورئے دَ طفولیت ته اشاره ده چه هغه ضعف دَ ابتداء موند دے۔ او قوت نه مراد طاقت دَ ځوانئ دے۔ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ په دے کښ طاقت دَ عقل او پوهے ته اشاره ده۔ ضُعْفًا دَ دے نه مراد ضعف دَ ټولو قوتونو دے وَشَيْبَةً دَ دے نه مراد ښکاره آثار دَ بوډا والی دی چه سپین والے دَ ویښتو دے۔

۵۵:۔ په دے کښ تخویف اخروی دے یعنی دَ تیر شوی ایت نه معلومه شوه چه دے انسان په دنیا کښ تر بوډا والی پورے عمر او ژوند تیر کړے دے لیکن دَ هیبت او دَ رعب دَ قیامت دَ وجے نه یا دَ ضد او عناد دَ وجے نه په دوی انکار کوی او قسمونه په کوی او دا رنګ حال دَ دوی په سورة احقاف ۳۵ او په سورة نازعات ۴۶ او په سورة طٰهٰ ۱۰۴ او په سورة مؤمنون ۱۱۲ کښ ذکر دے۔ كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ یعنی په دُنیا کښ دوی دَ حق دَ خبرے نه اوړیدلے وُو په جهل او ضد کولو سره دغه شان په ورځ دَ قیامت کښ هم دی.

۵۶:۔ دا رد دے دَ دوی په دغه انکار باندے۔ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْاِيْمَانَ هر کله چه ایمان تفصیلی بغیر دَ علم دَ قران او سنّت نه نهٔ حاصلیګی دَ دے وجے نه علم ئے په ایمان باندے مخکښ کړو۔ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ کتاب نه مراد تقدیر دے یعنی په هغه عمر او رزق وغیره کښ چه الله تعالیٰ ستاسو دَ پاره مقرر کړے وو یا مراد دَ کتاب نه علم دَ الله تعالیٰ دے او په دے کښ احوال دَ قبر او برزخ هم داخل دی۔

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنفَعُ الَّذِينَ ظَلَمُوا مَعْذِرَتُهُمْ

نو په دغه ورځ نفع به نه ورکوی ظالمانو ته بهانے دَ هغوی

وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٥٧﴾ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا

او نه به دَ دوی توبه قبلولے شی - او یقینًا بیان کړیدی مونږ

لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ ۚ

خلقو ته په دے قرآن کښ دَ هر قسم بیان نه

وَلَئِن جِئْتَهُم بِآيَةٍ لَّيَقُولَنَّ الَّذِينَ

او که چرے ته راوړے دوی ته یو آیت نو یقینًا وائی هغه خوک

كَفَرُوا إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُبْطِلُونَ ﴿٥٨﴾

چه کفر ئے کړے دے چه تاسو ته ئے مگر باطل پرست ئے -

كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ الَّذِينَ

دغسے مهر دهی الله تعالیٰ په زړونو دَ هغه چاچه

۵۷:- دا هم تخویف کښ داخل دے یعنی روستو دَ شهادت کولو دَ اهل علمو نه دَ دوی هیڅ بهانه منظوره نه ده۔ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ دا دَ عتبیٰ نه ماخوذ دے په معنیٰ دَ رجوع کولو سره او مراد دَ رجوع نه توبه کول دی یعنی دَ دوی نه به توبه نه طلب کیږی یا دَ عتاب نه دے او استفعال دَ پاره دَ سلب دے یعنی ازاله دَ عتاب (خفگان) او مراد ترینه رضا کول دی یعنی دَ دوی نه به رضا کیدل نشی کیدا ے۔

۵۸:- په دے کښ اول ترغیب دے قرآن ته او آخری زجر دے متکرینو ته یعنی عذر ورته ځکه نفع نه ورکوی چه الله تعالیٰ دَ قرآن په ذریعه دَ دوی عذر زائل کړے دے او بیا هم دوی انکار کوی۔ مِن كُلِّ مَثَلٍ مراد دے نه مختلف قسمونه دَ بیان دی۔ دلیلونه، مثالونه، زجرونه، بشارتونه، تخویفات وغیره۔

إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُبْطِلُونَ هر کله چه معجزه راوړل صرف دَ پیغمبر کار دے په اذن دَ الله تعالیٰ سره او بیا ورسره مؤمنان ملګری شی نو دَ دے وجه نه جِئْتَهُمْ کښ مخاطب ئے مفرد ذکر کړو او إِنْ أَنتُمْ کښ جمع ذکر کړه۔

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۹﴾ فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ

نه پوهیږي پس صبر کوه یقیناً وعده دَ الله تعالیٰ حقه ده

وَّلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِيْنَ لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۶۰﴾

او بے همته نکړي تا لره هغه کسان چه یقین نه لري۔

ف ۶۰:- دا تسلّی ده نبی صلّی الله علیه وسلّم ته او تفریع ده په ټول سورت باندے یعنی هر کله چه سورت کښ دلیلونه تفصیلی او مثال او زجرونه وغیره بیان شول او بیا هم دا منکرین ضد او عناد کوي نو صبر کوه دَ دوي په انکار باندے۔ اودا ایت متعلق دے دَ ابتداء دَ سورت سره یعنی وَعْدَ اللّٰهِ نه مراد نصرت دے دَ مؤمنانو سره دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه۔ وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ مراد دَ دے نه بے صبرئ دَ وجے نه عذاب غوښتل دي په تلوار سره او دعوت او تبلیغ پریخودل دي۔

تمّ تفسیر سورة روم والحمد لله واستغفر الله تعالیٰ

رکوع ۶

سُورَةُ لُقْمٰنَ ۳۱ مَكِّيَّةٌ ۵۷ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۳۴ رُكُوْعَاتُهَا ۴

الٓمّٓ ۝۱ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ۝۲

الله تعالیٰ ډ دے په مراد باندے ښه پوهه دے۔ دا ایاتونه ډ دا سے کتاب دی چه ډ حکمتونو نه ډک دے

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سُورةُ لقمان

**ربط** ډ دے سورت ډ مخکښ سره په ډیرو وجوهو سره دے. اوله وجه دا چه سورة عنکبوت کښ ترغیب وو جهاد او دعوت ته نو سورة روم کښ ډ هغې نتیجه ئې بیان کړه په نصرت او انقلاب سره. نو اوس په دے سورت کښ ډ هغهٔ جهاد طریقه بیانوی په واقعه ډ لقمان سره چه په دے طریقه جهاد اوکړے شی نو نصرت الٰهی به هله حاصلیګی یعنی لقمان دعوت شورو کړے دے ډ رد ډ شرک نه دا رنګ هغهٔ دعوت ډ عقیدے او ډ اعمالو او ډ اخلاقو کړے دے او دا دین کامل دے او دا رنګ هغهٔ شورو کړے وه ډ قریب نه چه ځوئے دے۔ دویمه وجه دا ده سورة روم کښ ډ هغه بادشاهانو ذکر ئې کړے وو چه ډ هغوی مجاهده صرف ډ دُنیا ډ پاره وه او ډ هغوی دینی امراضو باندے ئې رد اوکړو نو په دے سورت کښ ډ یو غلام حبشی مسکین مجاهده دینی ذکر کوی او ډ هغهٔ مدحه کوی چه دے خاوند د حکمت وو۔ دریمه وجه دا ده چه مخکښ اثبات ډ توحید ئې صرف په عقلی دلیلونو سره کړے وو نو په دے سورت کښ دلیل نقلی ډ یو حکیم نه راوړی اشاره ده چه توحید صرف ډ پیغمبرانو مسئله نه ده بلکه ډ حکمتِ عقلیه سره هم موافق ده۔

**دعویٰ ډ دے سورت** ۔ اثبات ډ توحید دے په دلیل نقلی سره ډ عقلی دلیلونو تفصیلونه او مأخذ ډ دعوے ۱۲ کښ دی او رد دے په درے قسمونو ډ شرک باندے. شرك فی التصرف او شرك فی العلم او شرك فی الدُّعاء۔

**خلاصه ډ دے سورت** ۔ دا سورت تقسیم دے دوه بابونو ته۔ اول باب دے تر ۱۹ پورے په دے کښ اولا ترغیب دے قران ته په ذکر ډ خلورو صفاتو ډ قران او خلور صفات ډ اهلِ قران سره تر ینځم ایت پورے بیا زجر دے منکرینو ډ قران ته په شپږ قباحتونو ډ هغوی سره، سره ډ تخویف او بشارت نه ډ ۷ نه تر ۹ پورے

هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِينَ ﴿٣﴾ الَّذِينَ

هدایت او رحمت دے دپاره د ښائسته کارکوونکو هغه کسان دی

يُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ وَهُمْ

چه پابندی کوی د مونځ او ورکوی زکوٰة او دوی

بِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾ أُولَٰئِكَ عَلَىٰ

په آخرت باندے یقین لری . دغه صفتونو والا په

هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥﴾

هدایت باندے دی د طرف د رب د دوی نه او دغه کسان خاص دوی کامیاب دی .

بیا یو دلیل عقلی تفصیلی دے په ۲ سلاکښ بیا دلیل نقلی دے د لقمان نه د هغه فائدو دپاره کوم چه مخکښ بیان کړے شوے تر ۱۹ پورے .

## تفسیر

۱ :- دا د مقطعاتو نه دے دپاره د اظهار د اعجاز د قران .

۲ ۳ ۴ :- په دے ایاتو کښ ترغیب دے قران ته په ذکر د څلورو صفتونو د قران . چه کتاب ، حکیم ، هدی ، رحمت دے او څلور صفتونه د قران والو دی او دغه صفتونه آثار دی د صداقت د قران لفظ الحکیم کښ اشاره ده چه قران کریم دحکمتونو نه ډک دے د دے وجه نه د دے مقصد سره حکیمانو هم موافقت کړے دے . اَلْمُحْسِنِيْنَ هغه چا ته وائی چه د هغوی عقیده او عمل مشتمل وی په حسن شرعی سره یعنی توحید او اخلاص او اتباع د سنت پکښ موجود وی . يُوْقِنُوْنَ ، تفسیر سراج المنیر کښ ویلے دی چه دا هغه کسان دی چه نه کوی دا سے کار چه منافق وی د ایمان سره او نه غافل کیږی د آخرت د یاداشت نه رب د سترګے په قدر هم .

۵ :- دا بشارت دے په سبب د دغه څلورو صفتونو سره او دا سے سورة بقره ۵ کښ هم تیر شوے دے او په دے کښ ډیر تاکیدات دی اول لفظ د علی چه دلالت کوی په اوچت والی او تمکن (کلکیدلو) باندے . هُدًى نکره د پاره د تعظیم ده . مِنْ رَّبِّهِمْ یعنی هدایت په دعوی د دروغو سره نه دے . اَلْمُفْلِحُوْنَ فلاح په قران کښ په باره د مؤمنانو کښ دے ته وائی چه د هر مضرت او تکلیف نه بچ وی او هر مقصد ئے حاصل شی او دا حالت بغیر د جنت نه نه حاصلیږی او په دخول اوله د جنت سره ملاویږی د دے وجه نه د فلاح نه مراد اول داخلیدل دی جنت ته چه د اور د جهنم نه بلکل بچ وی .

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ

او بعض دَ خلقو نه داسے دی چه اخلی بے فائدے خبرے

لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۖ

دَپاره دَ دے چه واړوی خلق دَ لار دَ الله تعالیٰ نه په غیر دَ دلیل نه

وَّيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ۭ اُولٰۗىِٕكَ لَهُمْ عَذَابٌ

او گرځوی هغے لره ټوقے دغه کسان دوی لره عذاب

مُّهِيْنٌ ۝ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا

ذلیل کوونکے دے. او کوم وخت چه اولوستلے شی په دهٔ بانلے ایاتونه زمونږ

وَلّٰى مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا كَاَنَّ

او گرځی لوئی کوونکے گویا کے دهٔ نه دی اوریدلی (دا ایاتونه) گویا کے

۶:- په دے ایت کښ زجر او تخویف دے مخالفینو دَ قران ته او دَ هغوی درے حالات ذکر دی او اشتراء دَ لهو الحدیث. مراد دَ اشتراء نه خوښول او غوره کول دی او اشتراء ئے ذکر کړه اشاره ده چه په دے باندے خپل مال هم قربانوی. او لَهْوَ الْحَدِيْثِ کښ اضافت په معنیٰ دَ مِنْ پټ سره دے یا اضافتِ بیانیه دے او حسن بصری نه روایت دے چه مراد دَ دے نه هر هغه شے دے چه غافل کوی انسان لره دَ قران کریم نه او دَ بندگئ دَ الله تعالیٰ نه تو داخل دی په دے کښ، دَ شرکیانو او بدعاتو قِصّے او دَ فسق و فجور گپ شپ او هغه عملونه دنیوی چه انسان لره دَ قران نه غافل کړی او داخل ده په دے کښ غِنا، مراد دَ غِنا نه غزلے او لوبے ویل دی که دَ هرے ژبے وی او اسباب دَ دمتوب او ټپے وی وغیره. او خطیب شربینی ویلے دی چه غِنا مال لره ختموی او ربّ تعالیٰ لره خفه کوی او زړهٔ لره بربادوی. لِيُضِلَّ کښ اشاره ده لکه چه دے گمراه دے نو نور خلق هم گمراه کوی. سَبِيْلِ اللّٰهِ نه مراد قران دے. بِغَيْرِ عِلْمٍ کښ اشاره ده چه هر ضال مضل جاهل دے هُزُوًا دَ دے نه مراد دا دے چه سپک او بے مقصده گنړی قران لره او دا سبب او گرځی دَپاره دَ مسخرو کولو نو دَ دے وجے نه هُزُوًا ټوقو ته هم وائی.

فِیۡۤ اُذُنَیۡهِ وَقۡرًا ۚ فَبَشِّرۡهُ بِعَذَابٍ اَلِیۡمٍ ﴿۷﴾

په غوږونو دَده کښې درونوالے دے نو زیرے ورکړه دهٔ لره په عذاب دردناک سره.

اِنَّ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

یقیناً هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړی دی موافق دَ سنّت سره

لَهُمۡ جَنّٰتُ النَّعِیۡمِ ﴿۸﴾ خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَا ؕ

دوی لره جنتونه دَ نعمتونو دی همیشه به وی دوی په هغې کښې

وَعۡدَ اللّٰهِ حَقًّا ؕ وَهُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ ﴿۹﴾

وعده کړے ده الله تعالیٰ یقینی ده او خاص الله تعالیٰ زور اور او حکمتونو والا دے.

۷ :- په دے کښې نور درے قبائح دَ منکرینو دَ قرآن ذکر کوی سره دَ تخویف نه او په دے کښې ترقی دَ انکار ده یعنې بخپله خو دے دَ قرآن نه غافل دے لیکن که څوک دهٔ لره دَ غفلت نه بیدار وی په بیان دَ قرآن سره نو بیا لوئی کوی. حاصل دا چه دَ قرآن دَ پوهیدو کوشش نه کوی او بل نه ئې هم نه اوری.

**فائده :-** تیرشوی ایت عذاب مهین ذکر کړو او په دے کښې ئې عذاب الیم ذکر کړو، وجه دا ده چه اوّل ایت کښې کوم عملونه ئې ذکر کړیدی په هغې کښې اهانت دَ کتاب الله دے دَ طرف دَ دے کافرانو نو سزا ئې په عذاب مهین سره مناسب ده، او په دویم ایت کښې دا سے صفات ئې ذکر کړے دی چه زړهٔ دَ مؤمن لره درد ورکوی نو مناسب دَ دهٔ سره عذاب الیم دے.

۸ ـ ۹ :- په دے ایاتونو کښې بشارت ذکر کوی دَ پاره دَ اول جماعت جَنّٰتُ النَّعِیۡمِ دا لفظونه دواړه جمع دی او اضافت بیانیه دے او په دے کښې فائده دا ده چه جنتونه ټول نعمتونه دی بے نعمته وخت او ځائے پکښې نیشته او که برعکس ئې ویلے وے یعنې نَعِیۡمِ الۡجَنّٰتُ نو وهم ترینه پیدا کیدلو چه بعض حالات دَ جنتونو نعمتونه نه دی. وَعۡدَ اللّٰهِ هر کله چه تیرشوے ایت په منزله دَ وعدے کولو دے نو دا مصدر مؤکده ئې ذکر کړلو یعنې وعد الله وعدا. حَقًّا دَ زیادت تاکید دَ پاره ئې دا بله جمله ذکر کړیده چه په اصل کښې احقّه حقا دے.

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا وَاَلْقٰى

پیدا کړیدي اسمانونه په غیر د ستنونه وینئ تاسو هغه او اچولے دي

فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَبَثَّ

په زمکه کښ پاخه غرونه دے دپاره چه او نه خوځیګي په تاسو باندے او خواره کړیدي

فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ ۭ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ

په دے کښ هر قسم ژندہ سر او راورولے دي مونږ د طرف د اسمان نه

مَآءً فَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ ﴿۱۰﴾

اوبه نو زرغون کړے دي مونږ په هغے کښ د هر قسم بوټي فائدو والا نه.

هٰذَا خَلْقُ اللّٰهِ فَاَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقَ الَّذِيْنَ

دا پیدائش د الله تعالیٰ دے نو اوخایئ ماته چه څۀ دي هغه چه پیدا کړیدي هغه کسانو

مِنْ دُوْنِهٖ ۭ بَلِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ ضَلٰلٍ

چه سِوا د الله تعالیٰ نه دي بلکه ظالمان په ګمراهۍ

مُّبِيْنٍ ﴿۱۱﴾ ع وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ

ښکاره کښ دي. او یقینًا ورکړے وُو مونږ لقمان ته پوخ علم (ورته م ویلي وو)

۱۰ع

سنا:- دا اول دلیل عقلی دے دپاره د توحید او په دے کښ شپږ نعمتونه عظیمه ئے ذکر کړیدي چه هغه دلالت کوي چه الله تعالیٰ العزیز الحکیم دے. د اولے جملے تائید په سورة رعد سـ۲ کښ او د دویمے په سورة نحل سـ۱۵ او انبیاء سـ۳۱ کښ تیر شویدے او دریمه جمله په سورة بقره سـ۱۶۴ او څلورمه پنځمه جمله ئے خو ډیر کرته ذکر کړیده. زَوْجٍ قسمونه د بوټو او اونو نه، او هر کله چه اکثر بوټي د یو بل سره مشابهت لري د دے وجے نه زوج ئے اُویل. کَرِیْمٍ کرامت د هغے فائدے دي د خوراک پوشاک وغیره.

سـ۱۱:- دا تفریع ده په مخکښ دلیل باندے او رد دے په مشرکانو باندے یعني چه ستاسو معبودان خَلْق (پیدائش) نشي کولے نو څه رنګه حقدار د عبادت ئے ګنړئ.

أَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ ۚ وَمَنْ يَّشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ

چه شکر کوه دَ الله تعالیٰ او چاچه شکر اوکړو نو یقیناً شکر کوی

لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ﴿۱۲﴾

خپلے فائدے لره او چاچه ناشکری اوکړه نو یقیناً الله تعالیٰ بےحاجته ستائیلے شویدے۔

وَإِذْ قَالَ لُقْمٰنُ لِابْنِهٖ وَهُوَ يَعِظُهٗ يٰبُنَيَّ

او کوم وخت چه اُوئیل لقمان خپل ځوئی ته او وعظ ئے ورته کاؤ اے زما ځویه

ف ۱۲ :- دا دلیل نقلی دے په توحید باندے او اشاره ده چه عقیده او طریقه دَ دے مشرکانو لکه چه انبیاؤ دَ طریقے نه خلاف ده نو دارنګ دَ حکماؤ دَ طریقے نه هم خلاف ده. دارنګ حکمت مقابل دَ ظلم دے ځکه چه ظلم استعمال دَ شے دے پهٔ بے مناسبه ځائے کښ او حکمت استعمال دے په مناسب ځائے کښ نو دَ دے وجے نه دَ ظالمانو دَ رد نه بعد دَ حکمت امور ذکر کوی نو ځکه ئے په عطف سره ذکر کړیدے.
لقمان بن باعورا، دَ دهٔ په باره کښ اختلاف دے چه پیغمبر وؤ او که ولی وؤ صحیح دا ده چه ولی الله وؤ او دَ عکرمه نه په کوم روایت کښ چه نقل ده چه دے نبی وؤ نو دَ هغے په سند کښ جابر جعفی ضعیف راوی دے آکثر مفسرینو لیکلے دی چه دے غلام حبشی نجّار (ترکان) وؤ او لقمان دَ ایوب علیه السّلام خورئے وو یا دَ ترور ځوئے وؤ او دَ داؤد علیه السّلام نه ئے بعض علمونه حاصل کړے وو او ډیر حکمتونه الله تعالیٰ دهٔ ته په طریقه دَ الهام سره خود لے دی. الحِكْمَةَ هغه علم دے چه یوښ وی په عمل سره او هر شے په خپل مناسب ځائے کښ استعمالول او دَ څیزونو په فائدو باندے پوهه لرل دا حکمت دے.
او دَ لقمان دَ حکمت ډیر واقعات او اقوال ابن کثیر په تفسیر کښ ذکر کړے دی.
او حکمت دوه قسمه دے حکمت دنیویه او حکمت دینیه. قایل تعریف دا دویم قسم دے دَ دے وجے نه تفسیر دَ الحكمة ئے ذکر کړو په أَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ سره یعنی احسانات دَ الله تعالیٰ منل او دَ هغهٔ په رضا سره استعمالول دا لوے حکمت دے او علم بیانول او دعوت کول دا شکر دَ علم دے. أَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ یا تفسیر دے دَ حکمة یا دَ دے سره لفظ دَ قلنا له پټ مراد دے. او روستو آیاتونو کښ دَ حکمت او دَ شکر ئے تفصیل کړے دے.

لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ ۗ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴿۱۳﴾

شرک مهٔ کوه د الله تعالی سره یقینًا شرک لوئے ظلم دے.

وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ ۚ حَمَلَتْهُ

او پوخ حکم ورکړو موږ انسان ته د مور او پلار سره (د احسان کولو) پورته کړے وؤ دهٔ لره

أُمُّهُ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ

مور د دهٔ په کمزورۍ حال په بل کمزوری حال باندے او جدا کول یٔ د پیوو کولو نه په دوه کاله کښ دی (حکم دا کړے)



أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ ۖ إِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴿۱۴﴾

چه شکر کوه زما او د مور او پلار ستا خاص ماته ستاسو راګرځیدل دی.

۱۳:- دا اول قسم شکر دے یعنی عالم د د شرک تردید اوکړی او اول د خپلوانو اصلاح د اوکړی او خصوصًا د خپل اولاد اصلاح کول په عقیده صحیحه سره دا لوے حکمت دے. که څوئے د دهٔ مشرک وؤ نو دا وعظ دے هغهٔ ته د پاره د پریخودلو د شرک اوکه مشرک نه وؤ نو وعظ دے د پاره د تاکید او تثبیت په عقیده د توحید باندے.

إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ دا د دے وجے نه ظلم خو استعمال د شے دے بے ځایه نو په شرک کښ د انعاماتو د الله تعالی نسبت وی بل چا ته لکه په شرک فی التصرف کښ. او عبادت او حقوق د الله تعالی ادا کول دی بے ځایه لکه په شرک فی العبادة والدعاء کښ.

او صفتونه د الله تعالی بل لره ثابتول او یا د هغهٔ صفتونه د مخلوق سره مشابه کول یا د هغهٔ د اسماؤ صفاتو نه انکار کول دا شرک فی الاسماء والصفات دے. دا رنګ د الله تعالی علم خاص (یعنی علم غیب) بل چا لره ثابتول لکه په شرک فی العلم کښ. د دے وجے نه شرک لوے ظلم دے.

۱۴:- هر کله چه ذکر شو چه اصلاح د پلار څوئي لره دا حکمت دے نو ذکر کوی چه دا رنګ احسان او خدمت او عزت کول د اولاد خپل مور او پلار لره دا هم حکمت دے. او دا دوه آیاتونه جمله معترضه ده د الله تعالی د طرف نه په مینځ د نصیحتونو د لقمان کښ او مقصد یٔ د شرک قباحت ذکر کول دی هغه دا چه مور او پلار سره احسان کول خو فرض دی لیکن په شرک کښ به د هغوی خبره نشی منلے کیدے. وَوَصَّيْنَا وصیت پوخ حکم ته ویلے کیږی چه نه منسوخ کیږی.

حَمَلَتْهُ دا ذکر سبب د وصیت دے سره د تقدیر د عبارت نه یعنی (خصوصًا بوالدته لانها حملته الخ) یعنی د مور حق زیات دے د وجے د ډیر محنت او مشقت د

وَإِنْ جَاهَدَاكَ عَلَىٰٓ أَنْ تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ

اوکه دوی زور کوی په تا باندے چه شریک جوړ کړے ماسره هغه څوک چه نیشته

لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا

تا ته په هغه باندے دلیل نو مه منه خبره او ته دوی او ملګرتیا د دوی کوه

فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا وَّاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ

د دنیا په کارکښ نیکه ملګرتیا او روان ئے په لار د هغه

أَنَابَ إِلَيَّ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ

چاچه راګرځی ماته بیا ما طرف ته ستاسو راګرځیدل دی نو خبر به درکړم

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ⑮ يَٰبُنَيَّ إِنَّهَآ إِنْ تَكُ

په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئے. اے زما ځویه یقیناً خصلت (د نیکے یا بدے) که چرے وی

هغ نه. وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ، اشاره ده ډیر ضعف د هغ او مشقت د هغ ته. تکلیف د حمل او تکلیف د وضع د حمل لکه سورة احقاف ۱۵ کښ. وَفِصَالُهُ په دے کښ اشاره ده تکلیف د تربیت او پئے ورکول بچی ته او تکلیف د پیؤ نه پریکول. فِي عَامَيْنِ لکه چه سورة بقره ۲۳۳ کښ ذکر دی او اشاره ده چه د پیؤ ورکولو مدت دوه کاله دے او دا صریح او صحیح قول دے. أَنِ اشْكُرْ لِي دا متعلق دے د وصینا سره هر کله چه الله تعالیٰ حقیقی منعم دے او بل دا چه د حق د والدینو حفاظت الله تعالیٰ کړے دے او بل دا چه د شکر د والدینو ثواب موقوف دے په شکر د الله تعالیٰ باندے د دے وجے نه ئے ان اشکرلی اول ذکر کړو. هر کله چه لقمان ته حکم د شکر وؤ نو د هغ د مناسبت د وجے نه دلته هم شکر ذکر کړو او په سورة عنکبوت ۸ کښ مخکښ شکر نه وؤ ذکر کړے نو د دے وجے حسناً ئے روان دے ذکر کړے وؤ.

۱۵: دا قباحت د شرک دے روستو د بیان د حقوق د والدینو نه یعنی اګرچه د والدینو حق فرض دے لیکن د شرک په مقام کښ د هغوی د اطاعت حق ساقط دے او حدیث کښ عام راغلی دی چه لا طاعة لمخلوق فی معصية الخالق یعنی په هیڅ ګناه کښ د هیڅ مخلوق طاعت نشی کیدلے. وَإِنْ جَاهَدَاكَ کښ اشاره ده ډیر تاکیدات ته یعنی که دواړه مور او پلار متفق وی په دعوت د شرک باندے او زیاتے په بل مخ )

مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِيْ صَخْرَةٍ

په قدر د دانے د اوړی نو که وی پټ په کټه کښ

اَوْ فِي السَّمٰوٰتِ اَوْ فِي الْاَرْضِ يَاْتِ بِهَا اللّٰهُ

یا وی (په بل ځائے) د اسمانونو کښې یا په زمکه کښ راوړی به هغے لره الله تعالیٰ

اِنَّ اللّٰهَ لَطِيْفٌ خَبِيْرٌ ﴿۱۶﴾ يٰبُنَيَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ

یقیناً الله تعالیٰ وینی باریک څیزونه خبردارے دے. اے زماځویه پابندی کوه د مونځ

صرف امر نه کوی بلکه کوشش کوی او زور لګوی لیکن بیا هم د هغوی طاعت کول حرام دی. فِی الدُّنْیَا یعنی امورِ دنیا کښ د دوی تعاون کول پکار دی په دے شرط چه معروف وی یعنی د شرع نه خلاف نه وی او مصاحبت په معروف سره دادے چه نیک اخلاق او نرمی ورسره ضروری ده او په دے کښ دعوت الی الحق هم داخل دے. وَاتَّبِعْ ورپسے د دے وجه نه ذکر کړو چه په کار د دین کښ مداهنت او نکړے شی. مَنْ اَنَابَ اِلَیَّ، مراد ترینه مخلص مؤحد او متبعِ سنت دے.

**فائده** :- خطیب شربینی ویلے دی چه په دے کښ تنبیه ده قریشو مشرکانو ته په غلطئ د هغوی بانده په تقلید د آباؤ کښ او پریخودل د هغوی اتباع د نبی صلی الله علیه وسلم لره. او بله فائده ئے دا ذکر کړے ده چه په دے کښ تیزی ورکول دی په پیژندلو د رجالو په حق سره او (امر یحك المشائخ وغیرهم علی محك الکتاب والسنة فمن کان عمله موافقالهما اتبع ومن کان عمله مخالفالهما اجتنب)

ترجمه. حکم دے په معلومولو د علماؤ وغیره په کسوټے د کتاب الله او د سنت سره پس د چا عمل چه د دے دواړو سره موافق وی تابعداری به ئے کیدیشی او د چا عمل چه د دے دواړو نه مخالف وی نو ډډه به ترینه کیدیشی.

(تنبیه) هر کله چه په دے مقام کښ مقصد زیات قباحت بیانول د شرک دی په تائید د قول د لقمان چه شرک لوے ظلم دے د دے وجه نه دلته ئے په علی ان تشرك سره ذکر کړو او سورة عنکبوت کښ صرف مجاهده (کوشش کول) د مور او پلار ئے ذکر کړے ده د پاره د شرک کولو د اولاد، نو هلته کښ په لِ سره ذکر کړے وو.

سلے :- په دے ایت کښ دفع د وهم ده که څوک خیال اوکړی چه کهٔ مونږ ګناه د شرک یا د مور او پلار ناشکری یا د هغوی طاعت په شرک کښ (دا ګناهونه) پټ اوکړو نو چاته به د هغے علم وی؟ نو حاصل د جواب دادے چه هیڅ څیز او هیڅ ګناه

وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاصْبِرْ

او حکم کوه دَ نیکۍ او منع کوه دَ بدۍ نه او صبر کوه

عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴿۱۷﴾

په هغه مصیبتونو باندې چه تاته درسیګی یقیناً دا دَ ضروری کارونو نه دی۔

وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ

او مه کږه وه انګې خپل (په وخت دَ خبرو) دَ خلقو سره او مه ګرځه

دَ الله تعالیٰ نه پټ کیدې نشی. إِنَّهَا ضمیر خطیئة (ګناه ته راجع دې) او هر کله چه پټ کیدل دَ یو څیز کله دَ وړوکوالی دَ وجې نه او کله دَ پردې دَ وجې نه وی او کله دَ لرې والی دَ وجې نه وی او کله دَ ظلمت (تیرو) دَ وجې نه وی نو دې څلورو ته یې اشاره اوکړه په ترتیب سره. حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ اول ته اشاره صَخْرَةٍ دویم ته اشاره ده فِي السَّمَاوَاتِ دریم حالت ته اشاره ده او فِي الْأَرْضِ څلورم ته اشاره ده. که څوک سوال اوکړی چه صخرة یې دَ اسمانونو او زمکې په مقابله کښ ذکر کړې دې نو ایا صخره دَ دوی نه بهر ده؟ جواب دا دې چه دا تعمیم بعد التخصیص دې تقدیر دَ عبارت داسې دې، فی صخرة (من السمٰوٰت والارض) او فی موضع آخر منهما، او دا قول غلط دې چه څوک وایې چه دا ګټه ده دَ زمکو دَ لاندې ده او په هغې باندې غوییې ولاړ دې وغیره وغیره۔

سـ۱۷ :- روستو دَ بیان دَ عقیدې (یعنی دَ رد دَ شرک نه) بیان دَ اعمالو او اخلاقو دې. په دې ایت کښ څلور اعمال ذکر کوی۔

اول اقامة الصلوٰة، اشاره ده چه دا عبادت په ټولو دینونو کښ دې او دا اهم دې په ټولو عباداتو کښ۔

دویم امر بالمعروف او دریم نهی عن المنکر، یعنی دَ خپل کمال نه روستو دَ نورو خلقو دَ تکمیل کوشش کول فرض دی۔ څلورم صبر دې په مصیبتونو بدنیه یا مالیه یا تکوینیه لکه مرضونه او حوادث یا تشریعیة یعنی احکام شرعیه وی نو په هغې صبر پکار دې۔ عَزْمُ الْأُمُورَ۔ عزم په معنیٰ دَ معزوم دې یعنی هغه کارونه چه فرض کړې شوې وی دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او دَ هغې اداکوونکو ته اولوالعزم ویلې کیږی۔

فِی الْاَرْضِ مَرَحًاؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ كُلَّ

په زمکه کښې په لوئے او نازسره یقینًا الله تعالیٰ نه خوخوی هر لوئی کوؤنکے

مُخْتَالٍ فَخُوْرٍۚ ﴿۱۸﴾ وَاقْصِدْ فِیْ مَشْیِكَ

خپله ستائینه کوؤنکے او میانه روی کوه په رفتار خپل کښې

وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَؕ اِنَّ اَنْكَرَ الْاَصْوَاتِ

او ښکته کره بعض اواز خپل یقینًا ډیر ناکاره دَ اوازونو نه

لَصَوْتُ الْحَمِیْرِ۠ ﴿۱۹﴾ اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ

خوامخواه اواز دَ خر دے. ایا نه گورئے تاسو چه یقینًا الله تعالیٰ



ف ۱۸ :- روستو دَ بیان دَ اعمالو نه او اوامرونه ذکر دَ اخلاق و منهیو دے چه په هغے سره نفرت دَ خلقو پیدا کیږی. او دا اخلاق (منهیه) دَ متکبرینو دی. وَلَا تُصَعِّرْ، صعر په اصل کښې یو مرض دے چه په اوښانو باندے راځی او په هغے سره ئے سټ کوږ شی او مخ ئے واوړی. نو په دے کښې اشاره ده تذلیل دَ داسے انسان ته چه په دے خوئی سره دَ مرضی اوښ پشان شی او مراد تری نه دا دے چه ته چا سره خبرے کوے یا تا سره څوک خبرے کوی نو ته مخ برابر کره لکه چه دا سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دی او چه خبرے دَ یو کس سره وی او مخ ئے تری نه بل طرفته گرځولے وی دا دَ متکبر صفت دے. لِلنَّاسِ دا لام دَ پاره دَ علت دے یعنی دَ وجے دَ توهین (سپک گنړلو) دَ خلقو نه. هاں که دَ الله تعالیٰ حکم وی چه مخ تری نه واړوه (اعرض عنهم) نو هغه نه دا نه دے شامل. وَلَا تَمْشِ فِی الْاَرْضِ مَرَحًا، داسے سوره اسراء ف ۳۷ کښې تیر شویدی هر هغه تلل او گرځیدل چه دَ سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه خلاف وی هغه په دے نهی کښې داخل دی. که رقص (گډا) وی یا په نازو نزاکت سره گرځیدل وی. مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ، داسے سورة نساء ف ۳۶ کښې تیر شویدی مُخْتَالٍ هغه دے چه نور خلق سپک گنړی دَ خپل ځان په مقابله کښې او فَخُوْرٍ هغه دے چه خپل صفتونه بخپله کوی دَ پاره دَ ځان لوے گنړلو په نور خلقو باندے.

ف ۱۹ :- تیر شوی ایت کښې منع وه دَ هغه کارونو نه چه دلالت کوی په ناکاره صفاتو باطنیو باندے چه هغه تکبر دے نو په دے ایت کښې ذکر دَ صفاتو ظاهریو دے، اول صفت اقتصاد دَ مشی، میانه روی کول یعنی چه ډیر تیز نه ځې او ډیر په دمه باندے هم نه ځې او ډیر تیغ نه گرځې او کوږ هم نه گرځې او هر کله چه انسان

سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

په خدمت ستاسو کښې لګولې دي هغه څه چه په آسمانونو کښې دي او هغه څه چه په زمکه کښې دي

وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً ؕ

او پوره کړې دي په تاسو باندې نعمتونه خپل ښکاره او پټ

وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ

او بعض د خلقو نه هغه دي چه جګړې کوي په توحيد د الله تعالٰی کښې بغير

عِلْمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيرٍ ﴿۲۰﴾

د دليل نه او د هدايت نه او د کتاب رڼا کوؤنکي نه .

په رفتار کښې د سنّت د نبي صلّى الله عليه وسلّم تابعداري کوي نو معلومه شوه چه په هر کار کښې د سنّت تابع دے. دويم صفت آواز ښکته کول. مِنْ صَوْتِكَ لفظ د مِنْ دليل دے چه کله آواز اوچتول ثواب دے لکه اذان او تلبيه. إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ اشاره ده چه په دے کار کښې نورو خلقو ته تکليف ورکول دي. لَصَوْتُ الْحَمِيرِ د دے تخصيص وجه دا ده چه نور حيوانات آواز د ضرورت په وخت کښې اوچتوي چه بوج پرے راشي يا سترے شي، او خر بغير د ضرورت نه آواز را اوباسي او کله چه بوج پرے دروند شي يا نور تکليف وي نو بيا آواز نه را اوباسي. او دا دليل دے چه څوک ذکر د الله تعالٰی په اوچت آواز سره کوي په غير د شرعي دليل نه نو هغه مشابه دے د خر سره.

۲۰: د دے نه تر آخره پورے دويم باب دے په دے کښې باقي اثبات عقلي دليلونه دي ۲۰ ۲۵ ۲۶ ۲۷ ۲۸ ۲۹ ۳۱ ۳۴ او زجرونه دي ۲۰ ۲۱ ۳۲ او بشارت ۲۲ او تخويف اخروي ۳۳ او رد د شرک في الدعاء دے په ۳۰ کښې.

په دے (۲۰) کښې دويم دليل عقلي دے يعني دا ټول څيزونه ستاسو د فائدے د پاره الله تعالٰی لګولے دي او دغه فائدے دا سے حکمتونه دي چه لقمان حکيم په هغے باندے پوهيدلو چه دا د الله تعالٰی د طرف نه دي وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهٗ، يعني دغه فائدے نعمتونه د الله تعالٰی دي. ظَاهِرَةً مراد ترينه هغه دي چه عام خلق هغه پيژني لکه ظاهري بدن او مال و اولاد او شکل وصورت وغيره.

وَّبَاطِنَةً هغه مراد دي چه اهلِ علم په هغے باندے پوهه دي. لکه اسلام، قرآن، محبّت د الله تعالٰی او د رسول او زړه، عقل فهم وغيره. (پاتے په بل مخ)

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا

او کوم وخت چه اُویلے شی دوی ته تابع شئ دَهغه چه نازل کړے دے الله تعالیٰ دوی وائي

بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ۚ

بلکه مونږ تابعداری کوو دَهغه طریقے چه موندلے دی مونږ په هغے پاندے مشران خپل

أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَىٰ عَذَابِ

آیا اگر چه وی شیطان بلل ئے هغوی عذاب دَ اور

السَّعِيرِ ﴿٢١﴾ وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ

لمبو والا ته. او چاچه تابع کړو خپل مخ الله تعالیٰ ته

وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ

او دے وی اخلاص کوونکے نو یقیناً کلکه اونیوله دهٔ کړے

وَمِنَ النَّاسِ زجر دے روستو دَ دلیل ته او په دے کښ عنادیان متکرین مراد دی چه حق ورته ښکاره شوے دے او بیا هم جګړے کوی. بِغَيْرِ عِلْمٍ یعنی دا سے پوهه ورسره نیشته کوم چه دَ دلیل یقینی نه حاصل شوے وی یعنی دلیل عقلی. وَلَا هُدًى مراد ترینه هغه هدایت دے چه دَ رسول نه نقل وی یعنی دلیل نقلی ورسره نیشته. وَلَا كِتَابٍ مراد ترینه کتاب دَ الله تعالیٰ دے یعنی دلیل وحی ورسره هم نیشته.

۲۱ :. دا یل زجر دے یعنی دلیلونه ورسره نیشته لیکن تقلید دَ پلارانو ورسره شته او دائے دَ بِغَيْرِ عِلْمٍ په مقابله کښ ذکر کړے دے معلومه شوه چه تقلید څه علم نه دے. آبَاءَنَا مراد ترینه مشران علماء دی صرف نسبی پلاران ترینه مراد نه دی لکه امام راغب په مفردات کښ ویلے دی. یعنی دوی وائي چه هغه مشران زمونږ نه ښهٔ پوهیدل نو دَ دے وجے نه مونږ دَ هغوی تابعداری کوو.

أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ اشاره ده چه دَ دوی دَ مشرانو سره دلیل نهٔ وو بلکه ګمراهان وو نو دَ هغوی تابعداری کول ښکاره باطل کار دے او دا سے آیات په سورة بقره ۱۷۰ مائده ۱۰۴ زخرف ۲۲ ۲۳ کښ هم تیر شوی دی.

مطلب دا چه په هدایت باندې هم نه دی

الْوُثْقٰیؕ وَاِلَى اللّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ﴿۲۲﴾ وَمَنْ

مضبوطه او خاص الله تعالیٰ ته آخری انجام دَ ټولو کارونو دے. او چا چه

كَفَرَ فَلَا يَحْزُنْكَ كُفْرُهٗؕ اِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ

کفر اوکړو نو خفه دِ نه کړی تا لره کفر دَ هغه خاص مونږ ته واپسی دَ دوی ده

فَنُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْاؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ

نو خبر به ورکړو دوی ته په هغه عملونو چه دوی کړے دی یقینًا الله تعالیٰ پوهه دے

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۲۳﴾ نُمَتِّعُهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ

په هغهٔ خبرو چه په سینو کښ دی. مزے ورکوو مونږ دوی ته لګه موده بیا به

نَضْطَرُّهُمْ اِلٰى عَذَابٍ غَلِيْظٍ ﴿۲۴﴾ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ

مجبورًا اولیګو دوی لره عذاب سخت ته. او که چرے تپوس اوکړے تهٔ دَ دوی نه

۲۲ :. هرکله چه ذکر شو حال دَ مشرک او دَ کمزوری دلیل دَ هغهٔ، نو په دے ایت کښ ذکر کوی حال دَ موحد او دَ پوخ والی دَ دلیل دَ هغهٔ. وَمَنْ يُّسْلِمْ وَجْهَهٗ مراد دَ دے نه تابعداری په ظاهر سره ده دَ الله تعالیٰ دَ ټولو حکمونو. وَهُوَ مُحْسِنٌ مراد دَ دے نه اخلاص دَ باطن دے یا مراد دَ اول نه اسلام او توحید دے او مراد دَ احسان نه تابعداری دَ سنّت ده الْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى دا په طریقه دَ تشبیه سره دے څه رنګ چه یو انسان دَ طوفان او سیلاب نه په دے طریقه سره بچ کیږی "چه کړئ وی او مضبوطه وی" او دے هم ورپورے کلک او نخلی نو دا رنګ دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه بچ کیدل او دَ تمام فتنو او ګمراهو نه بچ کیدل په دا سے طریقے سره کیږی چه انسان هغه توحید او قران چه مضبوط دے په سنّت او حدیث سره، په هغے پاندے پوره عمل اوکړی او په هغے باندے دلیل اونیسی هم دا رنګ په سورة بقره ۱۱۲ ۲۵۶ کښ تیر شویدی.

۲۳ ۲۴ :. روستو دَ بیان دَ حال دَ فریقینو ته تسلّی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او تخویف دے منکرینو ته. فَلَا يَحْزُنْكَ مراد دا دے چه په تا باندے دَ کفر کوؤنکو دنیوی او اخروی تاوان او ذمه واری نیشته نو غم مه کوه یا مراد دَ حزن نه دَ نه منلو دَ وجے نه دومره خفګان کول چه دعوت پریږدی دا منع دے او نفس حزن خو غیر اختیاری دے دَ هغے نه نهی نشی کیدے. (رپاتے په بل مخ)

مَّنۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ لَيَقُوۡلُنَّ اللّٰهُ ؕ

چه چا پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه ضرور ردوی وائي چه الله تعالیٰ

قُلِ الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ ؕ بَلۡ اَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۵﴾

ته اُوایه ستائینه دَ خدائیتوب دَ الله تعالیٰ ده بلکه اکثر دَ دوی ته نه پوهیږی .

لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

خاص دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دی هغه څه چه په آسمانونو کښ او زمکه کښ دی یقینًا الله تعالیٰ

هُوَ الۡغَنِىُّ الۡحَمِيۡدُ ﴿۲۶﴾ وَلَوۡ اَنَّمَا فِى

خاص هغه بے حاجته ستائیلے شوی دے . او که چرے شی هغه څه چه په

الۡاَرۡضِ مِنۡ شَجَرَةٍ اَقۡلَامٌ وَّالۡبَحۡرُ

زمکه کښ دی اونے قلمونه او دا سمندر

---

نُمَتِّعُهُمۡ قَلِيۡلًا دا دنیوی حال دے چه کافرانو لره په دنیا کښ مالونه، اولاد، مرتبے ملاویږی لیکن دا متاع قلیل دے او قَلِيۡلًا نه مراد ټول ژوند او مالونه دَ دُنیا دی .

س۲۵ :- دا بل دلیل عقلی اعترافی دے او سبب دَ عذاب غلیظ دے چه سرهٔ دَ اقرار نه په خالقیت دَ الله تعالیٰ سره بیا هم دوی شرک کوی .

قُلِ الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ دا تفریع ده په اقرار دَ مشرکانو په خالقیت دَ الله تعالیٰ یعنی هر کله چه خالق دے نو ټول صفتونه دَ الوهیت دَ هغهٔ دَپاره خاص دی . یا دا کلمه دَ شکر ده په دے خبره باندے چه منکرینو اقرار اوکړو په خالقیت دَ الله باندے .

اَكۡثَرُهُمۡ دَ دے نه هغه خلق مراد دی چه سرهٔ دَ دے اقرار نه شرک او کفر کوی او هغه خلق ډیر دی .

س۲۶ :- دا بل دلیل عقلی دے . مخکښ آیت کښ ذکر دَ خالقیت دَ الله تعالیٰ دے نو په دے آیت کښ ذکر دَ تصرف او دَ تدبیر دَ هغهٔ دے .

الۡغَنِىُّ په دے کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ په دے تصرفاتو کښ هیڅ شریک یا ولد یا مددګار ته محتاج نه دے .

يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ

زیات کړی دۀ لره روستو دَختم کیدلو نه اووه سمندرے نو خلاصے به نشی

كَلِمٰتُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۷﴾

کلمے دَ الله تعالیٰ یقینًا الله تعالیٰ زور اور حکمت والا دے۔

مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ اِلَّا كَنَفْسٍ وَّاحِدَةٍ ؕ

نه دے پیدائش ستاسو او نه دوباره ژوند ستاسو مګر پشان دَ یو تن دے

اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ﴿۲۸﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ

یقینًا الله تعالیٰ هرڅه اوری هرڅه ویني۔ آیا نه ته ګورے چه یقینًا الله تعالیٰ

۲۷:۔ دا بل دلیل عقلی دے۔ هرکله چه مخکښ اوفرمائیل چه ما فی السموات او ما فی الارض دَ الله تعالیٰ دی نو وهم پیدا شو چه دا خو محدود څیزونه دی نو ایا دَ الله تعالیٰ کلمات به هم محدود وی نو په دے ایت کښ دَ دے وهم جواب کوی حاصل دا چه کلمات دَ الله تعالیٰ بے انتها دی دا سے سورة کهف ۱۰۹ کښ تیر شوی دی لیکن په دے ایت کښ ډیر تاکید دے وجه دا ده چه دلته دَ لقمان حکمت ذکر شو نو اشاره شوه چه حکمتونه دَ حکیمانو دَ الله تعالیٰ دَ کلماتو احاطه نشي کولے۔ مِنْ شَجَرَةٍ، مِنْ دَ پاره دَ استغراق دے ډیر عموم پیدا کوی۔ وَالْبَحْرُ دنیا کښ مسمّٰی دے په بحر نو هغه صرف یو دے لیکن په مختلفو علاقو کښ تقسیم دے او مختلف رنګونه دی نو دَ دے وجے نه په جدا جدا نومونو سره مشهور دے۔ سَبْعَةٌ، دَ دے نه مراد ډیر والے دے۔ او مراد دَ کلماتو نه عام دے وحی دَ الله تعالیٰ ملائکو نه او انبیاؤ نه او علمونه دَ هغهٔ او صفتونه دَ هغهٔ (ځکه چه نبی صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی لا احصٰی ثناء علیك انت کما اثنیت علی نفسك) او عجائبات او حکمتونه دَ هغهٔ، دے ټولو نه شامل دے۔

۲۸:۔ دا هم دلیل عقلی دے دَ اثبات دَ عظیم قدرت دَ هغهٔ روستو دَ ذکر دَ محیط دَ علم دَ هغهٔ نه۔ یعنی الله تعالیٰ یو دے او ټول په اول پیدائش او دوباره پیدائش کښ یو شان دے۔

يُولِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ

ورننه باسی شپه په ورځ کښې او ورننه باسی ورځ په شپه کښې

وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي

او په خدمت کښې لګولې دی نمر او سپوږمۍ دا ټول چليږی

إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى وَأَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ

تر نیټې مقررې پورې او یقیناً الله تعالیٰ ستاسو په عملونو پاندې

خَبِيرٌ ﴿٢٩﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّ

خبر دارې دې. دا بیان دې د پاره د دې چه یقین اوکړئ چه الله تعالیٰ حق دې او یقیناً

مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِ الْبَاطِلُ وَأَنَّ اللَّهَ

هغه کسان چه دوی یې بلی سوا د الله تعالیٰ نه باطل (بندګی د هغوی) او یقیناً الله تعالیٰ

هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٣٠﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ الْفُلْكَ

پورته دې لوئې ذات دې. آیا ته نه ګورې چه کشتۍ

تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللَّهِ لِيُرِيَكُم

چليږی په سمندر کښې په نعمت د الله تعالیٰ سره دې د پاره چه اوخائی تاسو ته

ف ۲۹:- دا یل دلیل عقلی دې په ذکر د تصرف د الله تعالیٰ په زمانه کښې او په اسبابو د شپه او ورځ کښې او إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى کښې اشاره ده فنا کیدلو د دې نظام ته او تَعْمَلُونَ کښې اشاره ده هغه اعمالو ته چه په دې شپه او ورځ کښې موجودیږی.

**فائده:-** د شپې او ورځې سره يُولِجُ فعل مضارع ذکر کړې دې او د شمس و قمر سره. سَخَّرَ فعل ماضی ذکر کړې دې وجه دا ده چه انقلاب د شپې او ورځې متجدد (نوې نوې) کیږی او د نمر سپوږمۍ حالت خو مستمر (همیشه یو شان) دې تر فنا پورې.

ف ۳۰:- دا نتیجه ده د تیرشوؤ دلیلونو. بِأَنَّ فعل پټ دې ذٰلِكَ لِتَسْتَيْقِنُوا بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ یعنی وجود او الوهیت یې یقینی دې یا په معنیٰ د باقی دې. الْبَاطِلُ په معنیٰ د فانی دې یا دُعا د هغوی ته. او عبادت کول د هغوی باطل دی. الْعَلِيُّ صریح دې په علو (اوچت والی) د الله تعالیٰ کښې.

ع ۱۱

مِّنْ اٰیٰتِهٖ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ

دلیلونه خپل یقیناً په دے کښې ډیر دلیلونه دَتوحید دی هر ډیر صبرناک

شَكُوْرٍ ﴿۳۱﴾ وَاِذَا غَشِیَهُمْ مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ

ډیر شکرګذار لره . او هرکله چه راګیر کړی دوی لره چپې پشان دَ غټو وریځو

دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ ۚ فَلَمَّا

بلی دوی الله تعالیٰ لره خالص کوی هغه لره بلنه . نو هرکله

نَجّٰهُمْ اِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ؕ

چه بچ کړی دوی لره اوچ ته تو بعض دَدوی نه حق پرست وی،

وَمَا یَجْحَدُ بِاٰیٰتِنَاۤ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوْرٍ ﴿۳۲﴾

او انکار نه کوی دَ ایاتونو زمونږه مګر هر بے لوظه ناشکره .

۳۱:- داهم دلیل عقلی ارضی (دَ زمکې) دے روستو دَ دلیل وسطی نه۔
بِنِعْمَتِ اللّٰهِ مراد دَ دے نه تعلیم دَ الله تعالیٰ دے بندګانو ته طریقه دَ جوړولو دَ کشتۍ او دَ چلولو دَ هغې او دَ پیدائش دَ اجزاؤ دَ هغې چه لرګی او اوسپنه ده۔ یا مراد دَ دے نه معتدله هواده چه بغیر دَ هغې نه کشتۍ نشی چلیدے۔ مِنْ اٰیٰتِهٖ دلیلونه دَ توحید چه په اوبوکښ او په کشتو چلیدلو کښ معلومیګی بے انتها او یه، په هغې کښ قسم قسم حیوانات غټ او دراته چهازونه او کشتۍ په سطحه دَ اوبو بانډے ګرځول او نه غرقیدل وغیره۔ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ دَ سفر په مشکلاتو بانډے دَ صبرکولو نه بغیر دا ایات (دلیلونه) نه معلومیګی او دا رنګ خوک دَ دے نعمتونو او قدرتونو نسبت الله تعالیٰ له نه منی نو هغه ته هم ایات دَ توحید نه معلومیګی دَدے وج نه ئے دا دواړه صفتونه ذکرکړل او په مبالغې سره یے دَ دے وج نه ذکرکړل چه په بعض مشکلاتو کښ صبرکول او بعض نعمتونو دَ الله تعالیٰ بانډے شکرخو دَ کافرانو او مشرکانو هم عادت دے خو په هرمشکل کښ صبرکول او دَ هر نعمت دَ الله تعالیٰ شکرادا کول دا دَ مؤمن صفت دے۔
۳۲:- په دے ایت کښ زجر دے په ناشکرئے کولو دَ تیرشوی نعمت یعنی دَ خوف او هیبت دَچپو دَ دریاب دَ وج نه الله تعالیٰ ته عاجزی کوی او چغې وهی چه یا الله مدد لیکن حال یے معلومیګی روستو دَ نجات نه۔ دَدے نه معلومه شوه ریاتے په بل مخ)

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا

اے خلقو اویریږئ د رب خپل نه او یره کوئ د هغه ورځ نه

لَّا يَجْزِىْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ ۡ وَلَا مَوْلُوْدٌ

چه نه به شی دفع کولے پلار د اولاد نه او نه اولاد به

هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ

دفع کوونکے وی د پلار خپل نه هیڅ څیز یقیناً وعده د الله تعالیٰ

حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۥ وقفة

حقه ده نو دهوکه دِ نه کړی تاسو لره ژوند دنیوی

وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿٣٣﴾ اِنَّ اللّٰهَ

او دهوکه دِ نکړی تاسو لره په الله تعالیٰ باندے دهوکه درکوونکے. یقیناً الله تعالیٰ

چه جبری ایمان معتبر نه دے. او دا هم معلومه شوه چه عاجزی او تضرع د مشرک هم د الله تعالیٰ په نیز سبب د قبولیت د دُعا کانو دے. مُقْتَصِدٌ د قصد نه ماخوذ دے او قصد استقامت او اعتدال ته ویلے کیږی او دا سے سورة مائده ۶۶ او سورة فاطر ۳۲ کښ هم دی نو دلته مقتصد مؤحد دے چه نه افراط کوی چه د وجود د الله تعالیٰ نه انکار او کړی او نه تفریط کوی چه د الله تعالیٰ نه سِوا نور هم اِلٰهه گڼړی. خَتَّارٍ، ختر غدر ته ویلے کیږی او دا وی د وج د بے صبرئ نه نو دا ئے د صبار په مقابله کښ ذکر کړو او كَفُوْرٍ ئے په مقابله د شکور کښ ذکر کړلو. یعنی سِوا د مؤحدینو نه دوه قسمه خلق دی یو هغه چه د الله او د هغهٔ د نعمتونو نه مطلقاً منکروی لکه دهریان نو خَتَّار کښ هغه مراد دی او دویم قسم مشرک چه الله تعالیٰ منی او نعمتونه ئے هم منی لیکن ورسره شریک جوړوی کفور کښ هغهٔ ته اشاره ده.

۳۳ ،. روستو د تفصیلی دلیلونو د توحید او زجرونو د منکرینو نه دعوت عامه ورکوی توحید او تقویٰ ته او تخویف ورکوی د عذاب اخروی نه. وَاخْشَوْا، مراد د دے نه صرف خوف دے د عذاب نه. لَا يَجْزِىْ وَالِدٌ، هر کله چه په دے سورت کښ د والد او ولد معامله ذکر شوه (چه لقمان او ځوئے ئے دے) د دے وجے نه د والد او ولد تخصیص ئے او کړلو. او دا پشان د سورة بقره ۴۸ ۱۲۳ دے خو هغه عام وو هر نفس ته او دا خاص دے په اعلیٰ افرادو چه

عِنۡدَهٗ عِلۡمُ السَّاعَةِ ۚ وَيُنَزِّلُ الۡغَيۡثَ ۚ

خاص دَهغه سره دے علم دَ قیامت ، او راوروی باران

وَيَعۡلَمُ مَا فِى الۡاَرۡحَامِ ؕ وَمَا تَدۡرِىۡ نَفۡسٌ

او عالم دے په تفصیلاتو دَ هغه چه په رحمونو (بچه دانی) کښ دی او نه پوهیږی هیڅ څوک

مَّاذَا تَكۡسِبُ غَدًا ؕ وَمَا تَدۡرِىۡ نَفۡسٌ بِاَىِّ

چه څه به کوی صبا او نه پوهیږی هیڅ نفس چه په کومه

اَرۡضٍ تَمُوۡتُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌ خَبِيۡرٌ ﴿۳۴﴾

زمکه کښ به مړکیږی یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے اوخبردارے دے په پټو خبرو باندے۔

ډیر بل مصیبت باندے ډیرخفه کیږی۔ او وَالِدٌ په معنیٰ دَ ذوولد دے نو مورته هم شامل دے۔ لَا يَجۡزِىۡ په معنیٰ دَ فدیه ورکولو دے او په معنیٰ دَ دفع کولو دَ ضرر او تکلیف دے۔ وَعۡدَ اللّٰهِ دَ دے نه مراد ورځ دَ قیامت او دَ هغے احوال دی، حساب، میزان وغیره۔ او لَا يَجۡزِىۡ وَالِدٌ اه حالت دے۔ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا، دا تزهید فی الدنیا دے۔ یعنی دَ دنیا ژوند همیشه او نه گرځی او دَ دُنیا دَ مالونو او جاه او مرتبے په وجه سره دَ آخرت نه غافل نشئ او دا خو متاع دَ غرور دے لکه په سورة العمرٰن ۱۸۵ کښ دی۔ بِاللّٰهِ، مراد دا دے چه درته اُوائی چه الله تعالیٰ نیشته یا اُوائی چه شفعاء او شرکاء دَ الله تعالیٰ شته هغوی به نجات درکوی یا اُوائی چه الله تعالیٰ غفور رحیم دے گناه کوه هیڅ پرواه مکوه یا اُوائی چه الله تعالیٰ ته ضرور وسیله پکار ده نو په وسیله شرکیه کښ دِ اخته کړی یا اُوائی چه الله تعالیٰ یو دے او یو خو صرف یو کار کولے شی نو دَ دے وجے نور معبودان او خالقان او حاجت روا سِوا دَ الله تعالیٰ هم شته دے۔

۳۴:۔ دا دلیل عقلی علمی دے او په تیر شوی ایت کښ يَوۡمًا لَّا يَجۡزِىۡ اه، سره تعلق لری۔ عِنۡدَهٗ عِلۡمُ السَّاعَةِ، لفظ دَ عِنۡدَهٗ دلیل دے په تخصیص دَ علم دَ ساعة په الله پورے هر کله چه علم دَ علاماتو دَ هغے الله تعالیٰ انبیاؤ علیهم السّلام ته خودلے دے نو مِن وجه علم غیرو ته حاصل شو دَ دے وجے نه لا تدری ئے دَ دے سره نه دے وئیلے۔ وَيُنَزِّلُ الۡغَيۡثَ، دلته ئے فعل (انزال) ذکر کړو چه هر کله دا انزال دَ الله تعالیٰ فعل دے نو معلومه شوه چه هغه ئے پرے ضرور عالم دے یا دا چه دا عطف دے په معنیٰ دَ علم الساعة باندے یعنی عنده علم انزال الغیث او یعلم ما فی الارحام، په دواړو کښ اول علامات ښکاره کیږی نو مِن وجه علم بندګانو ته حاصل دے نو دَ دے وجے نه صیغه دَ ریاتے په بل مخ)

تخصیص یٔ ذکر نه کړله اګرچه دلته هم تخصیص مراد دے په عطف معنوی سره تقدیریٔ دا داد ے چه عنده علم ما فی الارحام - دلته یو اشکال دے چه په رحم دننه د بچی علم په آلاتو د ډاکټرانو سره حاصلیګی نو څه رنګ تخصیص په الله تعالیٰ پورے صحیح کیدیشی؟ جواب داد ے چه ما فی الارحام نه صرف وجود د بچی یا مذکر مؤنث کیدل مراد نه دی بلکه د هغے بچی په باره کښ د پوره حالاتو علم دے "چه دے به کوم وخت پیدا کیږی اود ے به صالح عمل کوی او که بد عمل به کوی او د دۀ به څومره ژوند وی کوم کوم وطن ته به سفر کوی څومره او څه رنګ تکلیفونه به په دۀ باندے راځی. مالدار به وی او که غریب به وی جنتی به وی او که جهنمی به وی وغیره - دا احوال په هیڅ آلاتو سره هیڅ چا ته معلوم نه دی د دے علم خاص دے په الله تعالیٰ پورے - وَمَا تَدْرِیْ په دے دواړو جملو کښ دالفظ دلالت کوی چه دا دواړه په هیڅ علامت او هیڅ آلے سره هیڅ چا ته نشی معلومیدے سوا د الله تعالیٰ نه -

**فائده ۱:-** حدیث صحیح کښ دے پنځو اموروته یٔ مفاتیح الغیب ویلے دی ، اشاره ده چه صرف پنځه څیزونه نه دی بلکه هر یو د دے نه په بے شماره جزئیاتو باندے مشتمل دے تفصیلی حالات د قیامت تفصیلی حالات د باران تفصیلی حالات د بچی تفصیلی حالات د اعمالو د صبا تفصیلی حالات د هغه ځائے چه د مرګ دے. نو دا خزانے د غیب دی -

**فائده ۲:-** بعض ناپوهه کسان اعتراض کوی چه د دے پنځو نه علاوه د نورو مغیباتو علمونه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورکړے شوے دی ځکه چه د دے پنځو تخصیص یٔ په ذکر سره کړے دے او دویم دا چه بعض مفسرینو روایات راوړے دی چه د دے نه علاوه نور علمونه الله تعالیٰ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورکړی دی. جواب د اول داد ے چه تخصیص په ذکر سره نفی د ماسوا ته نهٔ غواړی لکه چه دا قاعده مسلّمه ده او دا یٔ د دے وج نه خاص ذکر کړے دی چه مشرکانو په دغه وخت کښ صرف د دے پنځو خبرو تپوس کړے وۀ دا رنګ مفسّر الوسی په تفسیر روح المعانی کښ ذکر کړے دی. جواب د دویم داد ے چه دغه قسم احادیث چه بعض مفسرینو ذکر کړے دی بے سنده دی او یا په سند صحیح سره نه دی ثابت ، اوبل دا چه د قران کریم د نورو هغه آیاتونو خلاف دی کوم چه ښکاره دلیل د نفی د علم غیب د نبی صلی الله علیه وسلم نه کوی چه هغه نفی په دے پنځو پورے په هیڅ آیت کښ نه وه خاص کړے شوے -

تمّ تفسیر سورة لقمان بتوفیقه تعالیٰ ربّنا تقبل منّا
انت السمیع العلیم وتب علینا انك انت التواب الرحیم۔

سُورَةُ السَّجْدَةِ ۳۲ مَكِّيَّةٌ ۷۵ — بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ — اٰيَاتُهَا ۳۰ رُكُوْعَاتُهَا ۳

الٓمّٓ ﴿۱﴾ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ

الله تعالیٰ پوهیږی دَدے په مراد باندے۔ نازلیدل دَدے کتاب شک نیشته په دے کښ دَ طرق دَ رب

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة سجدة

دَدے سورت نور نومونه دادی: سورة الم سجده، سورة السجدة، سورة المضاجع، سورة سجدة لقمان۔

**ربط** دَدے دَ مخکښ سورت سره دادے ۱۔ هرکله چه مخکښ سورت کښ رد اوکړے شو په شرک باندے په عقلی اونقلی دلیلونو سره نو په دے سورت کښ فرق بیانوی دَ مشرک اوموحد په مینځ کښ په دنیا او آخرت کښ۔ ۲۔ په دے سورت کښ دَ سورة لقمان دَ آخری آیت تشریح ده دَ اولے جملے (ان الله عنده علم الساعة) تشریح په ۵ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ کښ ده۔ دَ دویمے جملے (وینزل الغيث) تشریح په ۲۷ کښ ده دَ دریمے جملے (ویعلم ما فی الارحام) تشریح په ۸ ۹ کښ ده۔ دَ څلورمے جملے (وما تدری نفس ماذا تکسب غدا) تشریح په ۵ ۱۳ کښ ده۔ دَ پنځمے جملے (وما تدری نفس بای ارض تموت) تشریح په ۱۰ ۱۱ کښ ده۔ ۳۔ دا رنګ تیر شوے سورت کښ دَ انسان دَ حمل (په خیټه دَ مور) کښ حالت ذکر کړے وُو نو په دے سورت کښ ذکر دَ مبداء او حال دَ قبر او حال دَ حشر ټول ذکر کوی۔

**دعوىٰ دَدے سورت۔** بیان دَ فرق په مینځ دَ حال دَ مؤمن او دَ حال دَ مشرک کښ۔ مأخذ دَدے په ۱۶ کښ ذکر دے۔ دَ ابتداء نه تر ۱۴ پورے ذکر دَ احوالو دَ منکریتو دے او په ۳ کښ قرآن ته نسبت دَ افتراء دے۔ په ۹ کښ شکر نه کول، په ۱۰ کښ دَ دوباره ژوندنه انکار کول او په ۱۲ کښ مرګ راوستل پردوی باندے په قیامت کښ او دَدے مجرمانو حال په ۱۳ ۱۴ کښ ذکر دی۔ احوال دَ مؤمنانو په ۱۵ ۱۶ ۱۷ کښ۔ بیا ذکر دَ فرق دَ ۱۸ نه تر ۲۲ پورے په طریقه دَ جزا او سزا بیا ذکر دَ حال دَ مؤمنانو مخکښنو په ۲۳ ۲۴ ۲۵ کښ بیا زجر او تخویف منکریتو ته په ۲۶ ۲۷ ۲۸ ۲۹ کښ ذکر کوی آخری آیت تفریع ده په کل سورت باندے۔

الْعٰلَمِيْنَ ۝۲ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۚ بَلْ هُوَ

دَ مخلوقاتو نه دے. ایا دوی وائی چه دا (قران) ئے دَ ځان نه جوړ کړے دے بلکه دا

الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اَتٰهُمْ

حق دے ستا دَ رب دَ طرف نه دے دَپاره چه ویره ورکړے هغه قوم ته چه نه دے راغلے

مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ۝۳

هغوی ته ویره ورکوونکے ستا نه مخکښ دَ دے دَپاره چه هدایت او مومی.

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړیدی اسمانونه او زمکه

**فائده :-** هر کله چه په دے سورت کښ دَ انسان ټول حالات ذکر دی او بیا ذکر دَ فرق دے او دا فرق په معلومیږی په قبر کښ او بیا په قیامت کښ راو. هغه ئے مسمیٰ کړے ده په یوم الفصل او یوم الفتح سره) دَ دے وجے نه دَ جمعے دَ ورځے دَ فجر په مونځ کښ په اول رکعت کښ دا سورت لوستل سنّت دی او دا رنګ هره شپه په بستره باندے دَ دے ویل استحباب لری او په دے دواړو باندے صحیح احادیث وارد دی.

**خلاصه دَ سورت دادہ۔** په دے کښ دوه بابونه دی اول باب تر ۱۸ پورے دے. اول ترغیب الی القران ۲ کښ بیا زجر منکرینو ته په ۳ کښ بیا درے عقلی دلیلونه په ۴ ۵ کښ بیا زجر په انکار دَ اخرت باندے بیا تخویف اخروی درے ایاتونو کښ او بشارت په درے ایاتونو کښ.

## تفسیر

۱ :- دا تنبیه ده په اعجاز دَ قران باندے.

۲ :- دا صداقت دَ قران دے دَپاره دَ ترغیب. لَا رَيْبَ فِيْهِ دا جمله معترضه ده په مینځ دَ مبتدا او خبر کښ یا دا خبر اول دے او مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ خبر دویم دے او په دے کښ اشاره ده چه مرتابین اګرچه ډیر دی لیکن دَ هغوی په ارتیاب سره په قران کښ هیڅ ریب نه دے پیدا شوے.

۳ :- دا زجر دے منکرینو دَ قران ته. بَلْ هُوَ الْحَقُّ دا اضراب دے دَ دے قول نه. افْتَرٰىهُ او دا اضراب ابطالی دے او دَ دے وجے نه ویلے شوے دی چه قران کښ بَلْ هر مقام کښ دَپاره دَ اضراب انتقالی دے سوا دَ دے مقام نه چه دا ابطالی دے. مِنْ رَّبِّكَ دلته انزل پټ دے او لتنذرهم په هغے پورے تعلق لری.

وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ

او هغه چه مینځ دَ دے کښ دی په اندازه دَ شپږو ورځو کښ بیا برابر شویں ے دَ عرش دَ پاسه

مَا لَكُم مِّن دُونِهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا شَفِيعٍ أَفَلَا

نیشته تاسو لره سِوا دَ الله تعالیٰ نه مینځ بچ کوؤنکے او نه سفارشی آیا پس ولے

تَتَذَكَّرُونَ ﴿٤﴾ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى

نصیحت نه قبلوئے . انتظام کوی الله تعالیٰ دَ کار دَ آسمان نه (رالیږی)

الْأَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ

زمکے ته بیا ورخیژی هغه ته په یو ورځ کښ چه

مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ﴿٥﴾

اندازه دَ هغے زر کاله ده دَ هغے نه چه تاسو یئے شماره کوئے .

---

مَا أَتَاهُم مِّن نَّذِيرٍ اشاره ده چه دَ دوی انذار ډیر سخت دے دَ وجے دَ جهل دَ دوی نه او دا رنګ اشاره ده چه دا قوم ډِیر نبی ته ډیر محتاج دے په هدایت کښ .

سے :- دا تفصیل دَ انذار دے په ذکر دَ توحید سره دَ دلیل عقلی نه . مَا لَكُم مِّن دُونِهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا شَفِيعٍ ، امداد کوؤنکے دوه قِسمه وی یو هغه چه پخپله تصرف کولے شی حاجت پوره کولے شی مصیبت لرے کولے شی او هغهٔ ته ولی ویلے کیږی . دویم هغه چه پخپله کار نشی کولے لیکن مالک او اختیار مند ته په کلکه وینا کولے شی چه دَ دے شخص حاجت پوره کړه نو دهٔ ته شفیع ویلے کیږی نو دَ توحید دَ اثبات دَپاره دَ دے دواړو نفی اوکړے شوه .

سے :- دا بل دلیل عقلی دے . یعنی هر کله چه ثابته شوه چه الله تعالیٰ خالق دے دَ عرش دَ پاسه مستوی دے او پوره اختیار مند دے نو اوس ذکر کوی چه دَ دے عالم نظام چلوؤنکے هم هغهٔ دے . دا نظام ئے چا ته نه دے سپارلے نو معلومه شوه چه قطبان غوثان نیشته چه هغوی دَ دنیا تدبیر کولے شی . په دے ایت کښ دوه تفسیرونه دی اوّل دا دے چه الْأَمْرَ نه مراد هر کار دَ کارونو دَ دے عالم نه او مِنَ السَّمَاءِ دَپاره متعلق پټ دے فینزله من السماء یعنی را کوځوی هغه کار دَ آسمان نه زمکے ته اشاره ده چه دے ایت کښ هغه امور او کارونه مراد دی چه په عالم اسفل کښ انسانانو ته ښکاره کیږی او په دے ر پاتے په بل مخ )

ذٰلِكَ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿٦﴾

دغه ذات دے عالم په هر پټ او ښکاره زوراور او رحم کوونکے دے

الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ وَبَدَأَ خَلْقَ

هغه ذات چه خائسته ئے جوړ کړے دے هر څیز چه پیدا کړے دے او شروع کړے دے پیدائش

الْإِنسَانِ مِن طِينٍ ﴿٧﴾ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ

دَ انسان دَ ختو نه . بیا ئے جوړ کړے نسل دَ هغه لره

زمکه کښ چلیږی. او یَعْرُجُ په معنیٰ دَ یرجع دے او ضمیر دَ غه امر ته راجع دے او رجوع روستو دَ فناء دَ عالم ته مراد ده. فِي يَوْمٍ متعلق دے په یعرج پورے او مراد دَ دے نه ورځ دَ قیامت ده. دَ دویم تفسیر دا دے چه الامر نه مراد وحی ده چه په واسطه دَ جبریل سره رالیږلی کیږی دَ مِنَ السَّمَاءِ سره فینزل پټ دے او یَعْرُجُ ضمیر جبریل ته راجع دے او فِي يَوْمٍ نه مراد ورځ ده دَ دُنیا دَ ورځو نه او هر کله چه حدیث سره ثابت ده چه په مینځ دَ اسمان او زمکه کښ پنځه سوه کلونه مسافت دے نو تله او راتله دواړه طرفته زر کلونه شول. او فِي يَوْمٍ متعلق دے په دواړو فعلونو پورے ( فینزل او یعرج ) او مقصود پدے ایت کښ تدبیر دَ وحی شو او اشاره ده صداقت دَ قران ته.

**فائده:** په اول تفسیر باندے سوال دا دے چه سورة معارج سلا کښ معلومیږی چه مقدار دَ دغه ورځ پنځوس زره کلونه دے اول جواب دا دے چه دَ قیامت مواقف او هیبتونه بے حده دی نو دَ ټولو موقفونو دَ هیبتونو په لحاظ سره پنځوس زره کلونه دی او دَ یو موقف دَ هیبت په بنا باندے زر کلونه دی. دَ دویم تفسیر په بنا هم دا سوال دے چه دَ ایت دَ سورة معارج نه معلومیږی چه دا ورځ دَ ختلو پنځوس زره کلونه ده. جواب دا دے چه تر سدرة المنتهیٰ پورے حساب شی نو پنځوس زره کلونه ده او چه تر اول اسمانه پورے حساب شی نو زر کاله دی.

سلا:- دا هم دلیل عقلی دے او تائید دَ ماقبل دے یعنی الله تعالیٰ تدبیر دَ دے وجے نه کولے شی چه هغهٔ دَ دے عالم تفصیلی علم لری بغیر دَ دے علم نه تدبیر نشی کیدلے.

سک:- دا یل دلیل عقلی دے مخکښ دلیل افاقی وؤ او دا دلیل انفسی دے. أَحْسَنَ یعنی مضبوط کړے دے هر شے چه پیدا کړے دے. مراد دا چه هر مخلوق ئے په مناسب شکل وصورت او اندامونو سره پیدا کړے دے. وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنسَانِ.

مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ۚ ﴿٨﴾ ثُمَّ سَوّٰىهُ

دَ راښکلے شوے اوبو سپکو نه . بیا ئے برابر کړو هغه

وَنَفَخَ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِهٖ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ

او اوپوکو ئے په هغې کښ دَ روح خپل نه او جوړ کړیدی تاسو لره غوږونه

وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿٩﴾

او سترګے او زړونه . ډیر لږ شکریه کوئے تاسو .

هرکله چه عام خلق ئے ذکر کړو نو دَ دے جملے نه دَ انسان دَ پیدائش ترتیب ذکر کوی۔

**فائدہ:-** دا صریح دے چه اول انسان ئے دَ خټے نه پیدا کړے دے او دَ سورة حجر او ص نه معلومه ده چه آدم علیه السّلام ئے دَ خټے نه پیدا کړے وُو نو منطق نتیجه را اُوتله چه اول انسان آدم علیه السّلام وُو۔ نو دا نظریه بالکل غلطه ده چه څوک وائي چه آدم اول انسان نه دے بلکه فقط اول پیغمبر دے دارنګ څوک چه دَ ارتقاء قائیل دی نو دا ټول دَ قرآن کریم نه منکر دی۔

س ۸:۔ دَ نَسْلَهٗ نه معلومه شوه چه مخکښ آیت کښ آدم علیه السّلام مراد دے۔ سُلٰلَةٍ په زور راویستلے شوے ته ویلے کیږی اشاره ده چه کومه نطفه چه دَ شهوت په زور سره دَ ملا او دَ سینے نه راویستلے شی نو دَ هغې نه ولد پیدا کیږی دَ هسے نطفے نه انسان نه پیدا کیږی۔

س ۹:۔ په دے کښ تتمه دَ خلق دَ انسان ده. سَوّٰىهُ دَ دے نه مراد هغه انقلابات دی تر پوره کولو دَ اعضاؤ پورے کوم چه سورة مؤمنون س۱۳ س۱۴ کښ ذکر شوے دی۔ رُّوْحِهٖ دَ دے اضافت الله تعالیٰ ته په دے وجه کړے شوے دے چه دَ روح دَ پیدائش دَپاره هیڅ ظاهری ماده نیشته قل الروح من امر ربی او دغسے ناقة الله هم ده۔ او سمع، بصر، زړه، ئے خاص ذکر کړل ځکه چه دا قوتونه هم پټ دی پشان دَ روح اګرچه اعضاء دَ دے ښکاره دی، او بله وجه دَ تخصیص دا ده چه دا دَ پوهے او دَ علم اسباب دی۔ او هرکله چه پوهه دَ غوږونو صرف آوازونه دی چه هغه یوه نوعه ده او پوهه دَ سترګو او دَ زړونو ډیرا نواع دی دَ دے وجے نه سمع ئے مفرد ذکر کړو او ابصار او افئدة ئے جمع ذکر کړو۔ او دا انعام ئے په سورة نحل س۷۸ ملک س۲۳ مؤمنون س۷۸ کښ هم ذکر کړے دے (پاتے په بل مخ)

وَقَالُوٓا ءَاِذَا ضَلَلۡنَا فِى الۡاَرۡضِ ءَاِنَّا لَفِىۡ

او دوی وائی ایا کله چه موتږ ورک شو په خاورو کښې ایا شو به مونږ په

خَلۡقٍ جَدِيۡدٍ ؕ بَلۡ هُمۡ بِلِقَآئِ رَبِّهِمۡ كٰفِرُوۡنَ ﴿۱۰﴾

پیدائیښت نوی کښې بلکه دوی د ملاقات د رب خپل نه انکار کوی۔

قُلۡ يَتَوَفّٰىكُمۡ مَّلَكُ الۡمَوۡتِ الَّذِىۡ

ته اُوایه ساه به اخلی ستاسو نه ملک د مرګ هغه چه

وُكِّلَ بِكُمۡ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمۡ تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۱۱﴾ ع

مقرر کړے شوے دے په تاسو باندے بیا به ستاسو رب ته تاسو پیش کیدلے شئ۔

ع ۱۵

قَلِيۡلًا یعنی لږ کسان شکر کوونکی دی او ما د پاره د تاکید قلت دے یا مراد دا چه لږ شکریه کوئ یعنی په وخت د ډیرے سختے صرف الله تعالی یادوئ۔ یا مراد د قِلّت نه عدم دے۔

۱۰:۔ دا زجر دے په انکار د بعث بعد الموت سره۔ او هر کله چه مخکښې صداقت د رسول او بیا بیان د توحید په دلیلونو سره اوشو نو اوس څلورم مقصد ذکر کوی (یعنی اثبات د آخرت) او هر کله چه تیر شوے دلیلونه د اثبات د قیامت د پاره هم کافی وو، د دے وجه نه د دے د پاره ئې نور دلیلونه ذکر نه کړل۔ بَلۡ هُمۡ دا بَلۡ د پاره د ترقئ دے یعنی صرف تعجب او انکار د بعث نه نه کوی بلکه د قیامت د ټولو حالاتو نه انکار کوی او خاص طور باندے رب ته د پیش کیدلو نه منکر دی۔

۱۱:۔ دا جواب د انکار د دوی دے چه مخکښې ایت کښې ذکر شو۔ حاصل دا چه ستاسو روح د الله تعالی په اختیار کښې دے چه د هغه په قبض کولو باندے ملک الموت مقرر کړے دے نو د داسے قادر ذات د شان نه لرے نه ده چه تاسو دوباره پیدا کړی۔

**فائده**:۔ اشکال دا دے چه دلته ملك الموت ئې مفرد ذکر کړے دے او په سورة انعام ۶۱ سورة نساء ۹۷ کښې جمع ذکر شوے دے نو د دے څه تطبیق دے؟ اول جواب دا دے چه ملك الموت یو دے چه د هغه نوم عزرائیل مشهور دے اګر چه په هیڅ نص صحیح مرفوع کښې دا نوم زما په علم کښې نیشته خو د هغه سره نور ملګری تابعدار ملائک دی نو د بعض د روح قبض کولو د پاره پخپله راځی او بعض د پاره نور ملائیک اولیږی۔ دویم جواب دا دے چه دلته مراد واحد جنسی دے یعنی جنس ملك الموت، او هغه جمع سره هیڅ منافات نه لری۔ او کوم روایتونه چه

وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ

او که چرے اوینے ته هغه وخت چه مجرمانو په ښکته کړے وی سرونه خپل

عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ رَبَّنَآ اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا

په نیز دَرب دَ دوی (وائی به) اے ربه زمونږه اولیدل مونږ او واوریدل مونږ نو واپس اوګرځوے مونږ

نَعْمَلْ صَالِحًا اِنَّا مُوْقِنُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَلَوْ شِئْنَا

چه عمل اوکړو نیک عمل یقینًا مونږ یقین کوونکی یو ۔ او که غوختلے وے مونږ

لَاٰتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدٰىهَا وَلٰكِنْ

ضرور ورکړے به وے مونږ هر تن ته هدایت دَ هغه او لیکن پوره شوے ده

حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّىْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ

فیصله دَ عذاب زما دَ طرف نه چه ضرور به ډک ووم جهنم لره دَ پیریانو

دَ عزرائیل دَ تصرف عامه او علم عامه دَ پاره مفسرینو ذکر کړے دی په هغې کښ هیڅ روایت مرفوع صحیح نیشته (والله اعلم)۔

ف ۱۲:۔ دا تخویف اخروی دے منکرینو لره او ذکر دَ احوالو دَ دوی دے روستو دَ (الیه ترجعون) رجوع الی الله ته۔ اَلْمُجْرِمُوْنَ نه مراد هغه دی چه دَ قرآن او رسول او توحید او قیامت نه (رچه تیر شوی آیاتو کښ ذکر شول) انکار کوی۔

نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ دا علامت دَ ملامتیا او دَ شرمندګئ او دَ ذلت دے۔ رَبَّنَآ اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا، مراد دَ دے نه علم دَ هغه خبرو دے چه دوی په دنیا کښ دَ هغې انکار کړے وو۔ اکثر دوی انکار کوؤ دَ هغه څه نه چه دوی په سترګو باندے نه لیدلو رچه هغه په یؤمنون بالغیب کښ مراد دی). او دا رنګ دوی وحی دَ الله تعالیٰ او قرآن وحدیث ته نه په دنیا کښ غوږ ایخودلو اوس هغه دواړه حالتونه ورته حاصل شول مجبورًا۔

مُوْقِنُوْنَ یقین حاصلیږی روستو دَ استعمال دَ اسبابو دَ علم ته دَ دے وجے نه ئے دَ بصر او سمع نه روستو یقین حاصلول ذکر کړل۔ او طلب دَ واپسے دُنیا ته په سورة انعام ۲۷ اعراف ۵۳ سورة یؤمنون ۹۸ کښ هم ذکر شوے وؤ سره دَ جواب ته۔

وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۳﴾ فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِيْتُمْ

او انسانانو نه په یو ځائے. (او به ویلے شی) نو اوڅکئ په سبب د هیرولو ستاسو

لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ اِنَّا نَسِيْنٰكُمْ وَذُوْقُوْا

ملاقات ستاسو د دے ورځ یقیناً مونږ به تاسو هیر کړو او اوڅکئ

عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴﴾ اِنَّمَا

عذاب د همیش والی په سبب د هغه عملونو چه تاسو کول. یقیناً

يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا

ایمان لری په ایاتونو زمونږ هغه کسان چه کله بیان شی دوی ته ایاتونه پریوځی

سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ

سجده کوونکی او تسبیح وائی سره د حمد د رب خپل ته او دوی

لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۱۵﴾ السجدة تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ

لوئی نه کوی. لرے کیږی اړخونه د دوی د بسترونه

السجدة ۹

۱۳:۔ داهم تخویف کښ داخل دے او دا متعلق دے په اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا پورے یعنی په دنیا کښ دوی هدایت د دے وجے نه حاصل کړے نه وو چه هغه د الله تعالیٰ په اختیار کښ دے او دا مذهب د اهل سنت دے چه الله تعالیٰ د کافر د ایمان و هدایت اراده نه ده کړے او هیڅ کار د الله تعالیٰ د ارادے نه بغیر نشی کیدا لے. وَلٰكِنْ دا دفع د وهم د پاره ده یعنی څه سبب دے چه الله تعالیٰ د دوی د هدایت اراده نه ده کړے ؟ جواب دا دے چه فیصله ده د عذاب په وعده د ډکولو د جهنم سره د دے مجرمانو نه. او الله تعالیٰ د خپلے وعدے خلاف نه کوی لکه سورة ص ۸۵ کښ ذکر کړے ده.

۱۴:۔ داهم تخویف کښ داخل دے. سبب د عذاب ئے نسیان د قیامت ذکر کړے دے ځکه چه انکار د قیامت سبب دے د نورو کفریاتو د پاره. اِنَّا نَسِيْنٰكُمْ مراد په دُنیا کښ دے یعنی محروم کول د دوی د هدایت نه یا مراد په آخرت کښ یعنی په عذاب کښ پریخودل پشان د نَسْيًا مَّنْسِيًّا. په دواړو لفظونو (نسیتم نسیناکم) کښ معنیٰ د پریخودلو قصداً مراد ده. او ذُوْقُوْا ئے دوه کرته ذکر کړو اشاره ده ډیرو قسمو تو د عذابونو

۱۵:۔ دا ذکر د حال د مؤمنانو دے روستو د ذکر کولو د حال د منکر ینو نه د پاره د فرق او د اېشارت دے. په دے ایت کښ د دوی درے احوال ذکر کړیدی اول عمل د

يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ز وَّمِمَّا

بلی خپل رب لره یره کوونکی او طمع لرونکی او دَ هغه نه

رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۱۶﴾ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ

چه موږ ورکړیدی خرچ کوی. پس نه پوهیږی هیڅ نفس په حقیقت دَ هغه چه

اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ جَزَآءً م بِمَا

پټ ساتلے شویدے دوی دَپاره یخ والے دَ سترګو بدله ده دَ هغه

انداموتو چه سجدهٔ دَ. دویم عمل دَ ژبے چه تسبیح اوحمد دے دریم عمل دَ زړه دے چه تکبر نه کول دی او دا علامات دی دَ مؤمن بالقرآن. اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا ،

دا خاص حالت دے یعنی هرکله چه آیاتونه دَ سجدے اولوستلے شی نو سجده کوی، او ډیره عاجزی او تضرع نه تعبیر یې اوکړو په خَرُّوْا سره او دا عام حالاتو ته هم اشاره ده او بیا دَ سجدے نه مراد انقیاد او تابعداری کول دَ قرآن دی.

سـ۱۶: :. مخکښ آیت کښ دَ ورځے حال یې ذکر کړو په دے آیت کښ دَ هغوی دَ شپے حال ذکر کوی او دا هم درے دی اول خپلو بسترونه ډډه لرے ساتل

مَضَاجِع کښ اشاره ده چه ټوله شپه عبادت نه کوی ځکه بسترے دَ آرام کولو دَپاره شته دے لیکن ټوله شپه په هغے باندے آرام هم نه کوی. او هرکله چه په اوده کیدلو کښ سنّت طریقه دا ده چه په ښی اړخ باندے څملئ دَ دے وجے نه جنوب یې ذکر کړے دے او دویم حال يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ دے دا یې په طریقه دَ جمله حالیه ذکر کړے دے اشاره ده چه دَ بسترے لرے کیدل دَ نور فساقو فجارو پشان نه دی بلکه دَ عبادت دَپاره دی. دعا مغز دَ عبادت دے او اصل عبادت دے (لکه چه حدیث کښ ثابت دی) دَ دے وجے نه دُعا یې ذکر کړه او ټول عباداتِ بدنیه په کښ داخل دی. خوف یې ځکه مخکښ کړو چه اسباب دَ ویرے یعنی ګناهونه او کوتاهۍ ډیرے دی او طَمَعًا یې ذکر کړو رجا یې نه ده ذکر کړے اشاره ده چه په عملونو هیڅ اعتبار نه کوی صرف دَ الله تعالیٰ دَ رحم امید لری او فرق دَ طمع او دَ رجا دا دے چه اسباب یې تیار کړے نو دے ته رجاء ویلے کیږی او چه اسباب یې نه وی تیار کړے یا اسباب یې تیار کړے وی خو په هغے باندے نظر نه ساتی نو دے ته طمع ویلے کیږی.

او دریم حال وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ یعنی سره دَ عباداتِ بدنیو نه عباداتِ مالیه هم کوی او خپل مالونه دَ الله تعالیٰ په دین او دَ هغے په دعوت وتبلیغ باندے قربان کوی.

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۷﴾ اَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ

عملونو چه دوی کول. ايا هغه څوک چه مؤمن وی پشان دَ

كَانَ فَاسِقًا ؕ لَا يَسْتَوٗنَ ﴿۱۸﴾ اَمَّا الَّذِيْنَ

هغه چا دے چه نافرمان وی برابر نشی کیدے. هرچه هغه کسان دی

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ جَنّٰتُ الْمَاْوٰى ز

ایمان ئے راوړے دے او عملونه ئے کړیدی دَ سنت سره برابر نو دوی لره باغونه دَ اوسیدلو دی

وقف غفران

---

۱۷:- دا بشارت اخرویه دے بناء دے په تیر شوی اسبابو باندے. فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ په دے کښ ډیر تاکید او مبالغه ده دَ عظمت دَ نعمتونو دَ جنت، او حدیث کښ وارد دی چه (مَالَا عَيْنٌ رَاَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ) "نهٔ دَ چا سترګو لیدلے دی او نهٔ دَ چا غوږونو اوریدلے دی او نهٔ دَ چا په زړه باندے تیر شویدی". ځکه چه ادراک دَ دے اندامونو (حواسو) متناهی دے او نعمتونه دَ جنت بے انتها دی.

**فائده:-** که اویلے شی چه الله تعالیٰ په قران کښ دَ هغه نه دَ بعضو نعمتونو ذکر په ډیرو ایاتونو (دَ بشارتِ اخرویه) کښ کړے دے نو علم دَ هغے خو حاصل شویدے نو څه رنګ ئے اوفرمائیل چه فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ جواب دا دے چه قران کریم کښ صرف دَ هغے تعبیرات دَ پوهے دَ مخلوق دَ پاره ذکر کړیدی او هر کله چه حقیقت دَ هغے دَ دُنیا دَ نعمتونو نه جدا دے نو دَ دے وجے نه حقیقت ئے هیڅ نفس ته معلوم نه دے. قُرَّةِ اَعْيُنٍ دَ سترګو یخوالے په عرف کښ کنایه ده دَ پوره خوشحالے نه لکه چه سورة فرقان ۷۴ کښ دا لفظ تیر شویدے.

۱۸:- دَ دے ایت نه دویم باب دے تر اخره پورے په دے کښ ذکر دَ تقابل دَ اهل ایمان او اهلِ کفر دے په درے ایاتونو کښ بیا منکرینو ته تخویف دنیوی او زجر دے په دوه ایاتونو کښ بیا ذکر دَ حال دَ موسیٰ؈ او دَ هغهٔ دَ تابعدارانو دے په طریقه دَ دلیل نقلی سره په درے ایاتونو کښ، بیا تخویف او زجر دے په درے ایاتونو کښ، او تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په اخری ایت کښ.

په دے (۱۸) کښ دعویٰ دَ سورت ذکر ده. فَاسِقًا دَ دے نه مراد فاسق دے په عقیده کښ یعنی کافر او مشرک. لَا يَسْتَوٗنَ صیغه دَ جمع ئے دَ دے وجے نه ذکر کړے ده چه دَ مؤمن او فاسق نه هر فرد دَ دوی مراد دے نو هغه جمع ده. دَ قتاده نه روایت دے چه دوی نه دی برابر په دنیا کښ او نه په وخت دَ مرګ او نه په اخرت کښ.

نُزُلًۢا بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٩﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ

نیاره میلمستیا ده په وجه دَ هغه عملونو سره چه دوی کول. او هرچه هغه کسان دی

فَسَقُوا فَمَأْوَاهُمُ النَّارُ ۖ كُلَّمَا أَرَادُوا

چه نافرمانی یٔ کړے ده نو ځائے دَ ورتللو دَدوی اُور دے هر وخت چه اوغواړی

أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا أُعِيدُوا فِيهَا وَقِيلَ

چه اُوځی دَ هغے نه واپس به اوګرځولے شی په هغے کښ او اوبه ویلے شی

لَهُمْ ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّذِي كُنتُم

دوی ته اوڅکئ عذاب دَ اُور هغه چه تاسو

بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴿٢٠﴾ وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ الْعَذَابِ

دَ هغے تکذیب کوؤ. او ضرور او به څکوو مونږ دوی ته دَ عذاب

الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ

نزدے نه مخکښ دَ عذاب لوے نه دَپاره دَ دے

سلا :. دا تفصیل دَ عدم مساوات دے. نو په دے ایت کښ ذکر دَ حال دَ مؤمنانو دے او بشارت دے دوی ته.

اَلْمَأْوٰی مراد دَ دے نه ځائے دَ همیشه دیره کیدلو دے نو دا مقابل دَ دُنیا شو چه هغه ځائے دَ ارتحال دے.

نُزُلًا یعنی دَ دوی دَپاره نعمتونه به هر وخت دَ میلمنو پشان وی دا سے نه ده (دَ دُنیا پشان) چه صرف درے ورځے به میلمه وی بیا به دَ کور به په شان شی.

سنا :. دا ذکر دَ حال دَ دویم فریق دے او دَ هغوی دَپاره تخویف دے.

كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا په دے جمله کښ اشاره ده همیشه پاتے کیدلو ته په جهنم کښ او دَدوی اهانت او بے عزتئ ته اشاره ده نو دا دَ نُزُلًا په مقابله کښ دے.

يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ

چه اوګرځي (د ګناهونو نه). او څوک زیات ظالم دے د هغه چا نه چه بیان کړے شي هغه ته ایاتونه

رَبِّهٖ ثُمَّ اَعْرَضَ عَنْهَا ؕ اِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِيْنَ

د رب د هغه بیا مخ واړوی د هغې نه یقیناً مونږ د مجرمانو نه

مُنْتَقِمُوْنَ ﴿۲۲﴾ؑ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ

بدله اخستونکی یو. او یقیناً ورکړے وو مونږ موسیٰ علیه السّلام ته کتاب

فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ وَجَعَلْنٰهُ

نو مه کیږه په شک کښ د ملاویدلو د هغه نه او جوړ کړے وو مونږ دا کتاب

هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۲۳﴾ۚ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ

هدایت د پاره د بنی اسرائیلو. او جوړ کړے وو مونږ د دوی نه

سـ۲۱:. دا هم بیان د حال د دویم فریق دے او تخویف دنیوی دے. او اَلْعَذَابِ الْاَدْنٰى نه مراد عذاب د دنیا دے ځکه چه ادنیٰ په معنیٰ د نزدے یا په معنیٰ د کم درجے والا دے. دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ د دے نه مراد عذاب د اٰخرت دے یا مراد د دے نه عذاب د قبر دے.

**فائده:**. د ادنیٰ په مقابله کښ اقصٰی راځی نو دلته ئے اکبر ولے ذکر کړو؟ د دے وجه دا ده چه د دُنیا په عذاب کښ دوه صفتونه دی یو نزدیکت او دویم کموالے. او د اٰخرت په عذاب کښ هم دوه صفتونه دی یو لرے والے دویم غټوالے نو د دُنیا په عذاب کښ تخویف د پاره مؤثر صفت نزدے والے دے او د اٰخرت په عذاب کښ د تخویف د پاره مؤثر صفت غټ والے دے.

سـ۲۲:. دا هم بیان د حال د دویم فریق دے په طریقه د زجر سره او بیان د سبب د ماقبل عذاب دے. مُنْتَقِمُوْنَ عذاب د دُنیا او اٰخرت دواړو ته اشاره ده.

سـ۲۳:. دا ذکر د مؤمنانو سابقینو دے او تعلق لری د سورت د ایت ۲ سـ۳ سره یعنی تائید دے د صداقت د قران او د رسول. فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ. په معنیٰ د لِقَآءِ او په ضمیر د هغې کښ او په اضافت کښ ډیر اقوال دی ۱ لقاء په معنیٰ د ملاقات ۲ تلقی یعنی قبول ۳ اخستل. ۱ او اضافت مفعول ته دے. ۲ یا اضافت فاعل ته دے او ضمیر راجع دے موسیٰ علیه السّلام ته یا راجع دے کتاب ته یا رب ته.

أَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا ۖ وَكَانُوْا

اماماں چه بیان یې کوؤ په حکم زموږ سره هرکله چه دوی صبر کړے وؤ او وو دوی

بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۲۴﴾ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ

چه په آیاتونو زموږ یې یقین کوؤ. یقینًا ستا رب په فیصله اوکړی

بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ

دَ دوی په مینځ کښ په ورځ دَ قیامت په هغه څیز کښ چه دوی پکښ

يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۲۵﴾ أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا

مختلف وو. آیا او نه ده ښکاره شوے دوی ته چه څومره هلاک کړیدی موږ

مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ

مخکښ دَ دوی نه دَ پیړوته چه ګرځی دوی

تفصیل دَ معانی دادے ۱ع پس مه کیږه په شک کښ دَ قیلولو دَ موسٰی علیه السلام نه دغه کتاب لره ۲ع پس مه کیږه ته په شک کښ دَ اغستلو ستانه مثل دَ دغه کتاب لره ۳ع پس مه کیږه په شک کښ دَ مخامخ کیدلو ستانه پشان دَ موسٰی علیه السّلام دَ مصیبتونو سره. ۴ع پس مه کیږه ته په شک کښ دَ ملاقات کولو ستانه موسٰی علیه السّلام سره په شپه دَ معراج کښ. یعنی هغه لیدل بالکل حق دی او دغه ملاقات دَ ارواحو دَ هغوی سره وؤ چه په شکل دَ بدانونو دَ هغوی سره جوړ کړے شوے وو ماسوا دَ عیسٰی علیه السّلام نه او دا تفصیل سورة بنی اسرائیل کښ تیر شوے دے. ۵ع پس مه کیږه په شک کښ دَ ملاقات ستا دَ خپل رب سره.

۲۴:۔ په دے کښ امت دَ موسٰی علیه السّلام ذکر کوی چه په هغوی کښ دعوت او تبلیغ جاری وؤ نو اشاره ده امت دَ آخری نبی صلّی الله علیه وسلّم ته چه دَ دۀ په امت کښ به هم دعوت جاری وی او په دے آیت کښ أَئِمَّةً عام دے انبیاؤ دَ بنی اسرائیلو ته او علماؤ دَ هغوی ته لکه سورة انبیاء ۷۳ کښ. او په دے آیت کښ دلیل دے چه په صبر او یقین سره امامت دَ دین حاصلیږی (لکه چه ابن کثیر ویلے دی) په صبر سره دفع دَ شهواتو راځی او په یقین سره زوال دَ شبهاتو حاصلیږی.

۲۵:۔ آیت کښ ذکر دی چه په امت دَ موسٰی علیه السّلام کښ (رپاتے په بل مخ)

فِي مَسٰكِنِهِمْ ؕ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ ؕ أَفَلَا
په کورونو دَ هغوی کښې يقيناً په دے کښې ډير دليلونه دی ايا نو دوی نه
يَسْمَعُونَ ﴿۲۶﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ الْمَاۤءَ
اوری . ايا دوی نه ګوری چه مونږ چلوو اوبه (باران)
إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا تَأْكُلُ
زمکے شاړے ته نو راوباسو په هغے سره فصل چه خوری
مِنْهُ أَنْعَامُهُمْ وَأَنْفُسُهُمْ ؕ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴿۲۷﴾
دَ هغے نه څاروی دَ دوی او ځانونه دَ دوی ايا نو دوی نه وينی .
وَيَقُولُونَ مَتٰى هٰذَا الْفَتْحُ إِنْ كُنْتُمْ
او دوی وائی چه کله به وی دا فيصله که تاسو

اختلاف پيدا شويوؤ نو اشاره ده چه په دے اُمت کښې به هم اختلافات پيدا کيږی لکه په حديث دَ (ستفترق امتی علی ثلث سبعين فرقة) کښې دا ذکر شوی دی.

۲۶:- دا زجر دے دويم فريق ته چه منکرين دی چه دوی دَ تير شوؤ منکرينو دَ عذابونو دَ دُنيا نه هيڅ عبرت نه اخلی. يَهْدِ دا په معنیٰ دَ هدايت عقليه سره دے يعنی ايا نه ده ښکاره شوے دَ دوی عقلونو ته . أَفَلَا يَسْمَعُونَ هر کله چه واقعات دَ تير شوے قومونو دَ اوريدلو سره تعلق لری دَ دے وجے نه زجر ئے په نه اوريدلو سره ذکر کړو.

۲۷:- دا بل زجر دے چه دا منکرين دَ عقلی دليلونو نه هم عبرت نه اخلی. نَسُوقُ الْمَاۤءَ په دے کښې اشاره ده بارانونو ته. الْجُرُزِ هغه زمکه ده چه بوټے دَ هغے نه اوچ شوے او پريکړے شوے وی نو اشاره پرته وی - خوره نا کے زمکے ته جُرُزِ نه ويلے کيږی ځکه چه ورپسے فَنُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا ذکر کړے دے يعنی فصل په کښې نه کيدلے شی - أَنْعَامُهُمْ ئے ځکه مخکښې ذکر کړے دے چه په فصلونو او بوټو کښې دَ څارووؤ خوراک زيات وی په نسبت دَ خوراک دَ انسان، او هر کله چه دا آيات (دليلونه) دَ ليدلو سره تعلق لری دَ دے وجے نه دَ دے په آخر کښې أَفَلَا يُبْصِرُونَ ذکر کړو.

صٰدِقِيْنَ ﴿۲۸﴾ قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنْفَعُ

رشتني يئ — اُوايه په ورځ دَ فيصلے — نفع نه ورکوی

الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِيْمَانُهُمْ وَلَا هُمْ

کافرانو ته — ايمان راوړل دَ هغوی — او نه به دوی له

يُنْظَرُوْنَ ﴿۲۹﴾ فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَانْتَظِرْ

مهلت ورکيدے شی۔ — نو مخ واړوه — دَ دوی نه — او — انتظار کوه

اِنَّهُمْ مُّنْتَظِرُوْنَ ﴿۳۰﴾

يقيناً دوی هم انتظار کوی۔

س۲۸:۔ دا هم زجر دے په انکار دَ قيامت سره او دا متعلق دے دَ س۲۵ سره چه په هغے کښ دَ فصل (فيصلے دَ قيامت) ذکر او کړو نو دوی انکار شورو کړو۔ الْفَتْحُ دا ماخوذ دے دَ فَتَاحة نه په معنیٰ دَ فيصلے سره دے ځکه چه فتح ښکاره کيدل او کولاويدلو ته وائی او فيصلے سره هم ښکاره کيدل کيږی۔

س۲۹:۔ دا جواب دے۔ يعنی دَ دوی مقصد دا دے که چرے بالفرض دَ فيصلے ورځ راشی نو بيا به هغه وخت ايمان راوړو نو جواب اوشو چه په هغه ورځ ايمان نه قبليږی ځکه چه دغه ايمان جبری دے۔ يَوْمَ الْفَتْحِ دا ظرف دے دَپاره دَ لَا يَنْفَعُ۔

س۳۰:۔ دا تفريع ده په ماقبل زجرونو باندے او تسلّی ده نبی صلّی الله عليه وسلّم ته، او اعراض نه مراد دَ دوی نه بے پرواه کيدل او دَ دوی نه براءت کول دی مُنْتَظِرُوْنَ يعنی دوی ستا دَ مرګ يا قتل انتظار کوی يا منکرين دَ عذاب انتظار کوی دَ مؤمنانو دَپاره يا دا منکرين دَ خپل عاقبت هم انتظار کوی۔

"تمّ تفسير سورة تنزيل السجدة بفضله تعالیٰ"

| سُوْرَةُ الْاَحْزَابِ ۳۳ مَدَنِیَّۃٌ ۹۰ | بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیَاتُھَا ۷۳ رُکُوْعَاتُھَا ۹ |
|---|---|---|

یٰٓاَیُّھَا النَّبِیُّ اتَّقِ اللّٰہَ وَلَا تُطِعِ الْکٰفِرِیْنَ

اے نبی (ھمیشه) ویره کوه د الله تعالیٰ نه او خبره مه منه د کافرانو

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سُوْرَةُ الْاَحْزَابِ مَدَنِیَّۃٌ

**ربط** د دے د مخکښ سورت سره په څو طریقو سره دے۔ اوله طریقه تیر شوی سورت کښ مسئله د توحید وه نو په دے سورت کښ د رسول الله صلی الله علیه وسلم تابعداری ذکر کوی۔ دویمه طریقه مخکښ سورتونو کښ رد د شرک وو نو په دے سورت کښ رد دے په بدعاتو شرکیو باندے۔ دریمه طریقه تیر شوے سورتونو کښ اثبات د توحید وو نو په دے سورت تیزی ورکوی په دعوت او تبلیغ د دے مسئلے باندے۔ څلورمه طریقه د هغه سورت اختتام وو په امر د انتظار سره نو په دے سورت کښ او امر ذکر کوی د پاره د عمل کولو په زمانه د انتظار کښ۔

**دعویٰ د دے سورت**۔ تیزی ورکول رسول صلی الله علیه وسلم ته په دعوت او په رد د بدعاتو باندے په دولس خطاباتو کښ او تیزی ورکول امت ته عموماً او خصوصاً په اطاعت کولو او په توقیر کولو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په شپارس خطاباتو کښ او اثبات د توحید په ذکر د درے مثالونو سره او په نهه ایاتونو کښ۔

**خلاصه د دے سورت**۔ دا سورت تقسیم دے څلورو بابونو ته اول باب تر ۹ پورے دے۔ په دے کښ دعویٰ د سورت ده په ذکر د څلورو خطاباتو د رسول صلی الله علیه وسلم تر ۳ پورے بیا رد دے په درے اقوالو د اهل رسومو او اشاره ده مثالونو ته په ۴ کښ۔ او خطاب دے مؤمنانو ته په ۵ ۶ کښ او پنځم خطاب د نبی دے په ۷ ۸ کښ۔

وَالْمُنٰفِقِيْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱﴾

او دَ منافقانو يقينًا الله تعالىٰ دے پوهه حکمتونو والا

وَّاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او تابع اوسه دَ هغې چه وحی کيدے شی تاته دَ طرف دَ رب ستا نه يقينًا الله تعالىٰ

كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۲﴾ وَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ

دے ستاسو په عملونو باندے خبردار او ګمان اوسپاره په الله تعالىٰ باندے

وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۳﴾ مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ

او پوره دے الله تعالىٰ ذمه وار . نه دی جوړکړی الله تعالىٰ هيڅ سړی لره

## تفسير

۱-۲-۳ :- په دے اياتونو کښ څلور خطابات دی نبی صلی الله عليه وسلم ته دَ اوامر او نوهی ده دَ ټولو حاصل تيزی ورکول دی په دعوت او تبليغ باندے او هغه اول سبب روحانی باطنی دے (تقوىٰ) دويم دفع دَ موانعو ده وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ او دريم طريقه او مأخذ دَ دعوت دے وَاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ او څلورم دفع دَ خوف او وجود دَ اخلاص (وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ).

**فائده** :- دَ دے سورت په ابتداء کښ خازن او خطيب شربينی او نورو مفسرينو ليکلی دی چه دَ اُحد دَ واقعے نه روستو دَ مشرکانِ مکه وفد راغے او دَ منافقانِ مدينه سره ئے مشوره اوکړه او رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلل او هغه سره دَ اتحاد او دَ مصالحت خبره په دے طريقه اوکړه چه ته لات منات وغيره ته بد مه وايه بلکه دوی شفعاء قهريه اومنه لکه چه زمونږ عقيده ده او مونږ به هم تاته په نورو خبرو کښ رکاوټ نه اچوؤ خپل تور دعوت کوه او منافقانو هم دَ هغوی تائيد اوکړو چه دا اختلاف پريږده او دَ جنګونو نه به هم خلاص شے او دوی به په تا باندے حملے نه کوی (دَ دے ټولو خبرو مقصد ترغيب دَ مداهنت ورکول وو رسول صلی الله عليه وسلم ته) نو دَ دے سورت ابتداء دَ هغوی په جواب کښ نازل شوه - يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ دا نِداء دَ پاره دَ عظمت دَ نبی صلی الله عليه وسلم ده ځکه ئے محمد نه دی ويلے . او په دے کښ اشاره ده چه ته لوے شان والا ئے او خبر ورکوونکے ئے دَ الله تعالىٰ دَ حکمونو دَ دے وجے نه په دے روستو خطاباتو ضرور عمل اوکړه - اتَّقِ اللّٰهَ مراد دَ دے نه په تقوىٰ باندے ټينګيدل او هميش ولے دے وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ په شرک رياتے په بل مخ)

مِّنْ قَلْبَيْنِ فِىْ جَوْفِهٖ ۚ وَمَا جَعَلَ اَزْوَاجَكُمُ

دوه زړونه په خیټه د هغه کښ او نه دی جوړ کړی بیبیانے ستاسو

الّٰٓئِىْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ وَمَا جَعَلَ

هغه چه تاسو ورسره ظهار کوئے مائیندے ستاسو او نه دی جوړ کړی

اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ۚ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ

په خولے بیلے شوی (متبنّیٰ) ځامن ستاسو دا وینا ستاسو ده

بِاَفْوَاهِكُمْ ۚ وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِى

په خولو ستاسو (بے دلیله) او الله تعالیٰ وائی حق او هغه روانول کوی

السَّبِيْلَ ﴿۴﴾ اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ هُوَ اَقْسَطُ

لارے د حق ته. نوموته اخله د دوی نسبت کوئ نکی پلارانو د دوی ته دا ډیر انصاف دے

منلو کښ د کافرانو تابعداری مه کوه. وَالْمُنٰفِقِيْنَ په مداهنت کولو او د حق بیان په پرېښودلو کښ د منافقانو طاعت مه کوه. مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ قرآن پاک او حدیث دے. وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ مراد د دے نه نفی د خوف ده د غیر الله نه. وَكِيْلًا د الله تعالیٰ په صفت کښ مراد د دے نه هغه ذات چه د ټولو کارونو ذمه وار او تدبیر جوړوونکے وی او په دے صفت کښ د الله تعالیٰ شریک نیشته د دے وجے نه وَكَفٰى ئے ذکر کړے دے.

ف۴:. مقصود په دے آیت کښ تردید د مشرکانو دے په درے اقوالو باندے. اول قول د دوی چه نبی صلی الله علیه وسلم ته ئے ویلے وو چه ته زموږ معبودان شفعاء (قهریه) اومنه او موږ به تا سره عظمت او کبریاء د الله تعالیٰ تسلیم کړو نو د دے رد ئے او کړو چه د عقیدے محل زړه دے او شرک او توحید دوه متضاد عقیدے دی په یو زړه کښ دواړه نشی جمع کیدے ځکه چه اجتماع د ضدینو په یو محل کښ عقلاً محال ده او دوه زړونه خو د یو کس د پاره کیدے نشی نو معلومه شوه چه یو کس مؤحد او مشرک په یو وخت نشی کیدے (نو د دے آیت تعلق دے د اتق الله سره). دویم قول د دوی چه زوجه (ښځے) ته به ئے اُویل چه دا په ما باندے په د مور پشان وی نو هغه به ئے حقیقتاً مور ګڼله او همیشه د پاره به ئے په ځان باندے حرامه کړځوله چه د هغے تفصیل او تردید به په سورت

عِندَ اللّٰهِ ۚ فَاِن لَّمۡ تَعۡلَمُوۡۤا اٰبَآءَهُمۡ فَاِخۡوَانُكُمۡ

په نیز د الله تعالیٰ نو که نه پیژنئ پلاران د دوی نو رونړه ستاسو دی

فِی الدِّیۡنِ وَمَوَالِیۡكُمۡ ؕ وَلَیۡسَ عَلَیۡكُمۡ جُنَاحٌ

په دین کښ او مریان (آزاد شوی) ستاسو دی او نیشته په تاسو بانديے گناه

فِیۡمَاۤ اَخۡطَاۡتُمۡ بِهٖ ۙ وَلٰكِنۡ مَّا تَعَمَّدَتۡ

په هغې کښ چه خطا شئ تاسو په هغې سره او لیکن (گناه دے) په هغې کښ چه قصد اوکړی

قُلُوۡبُكُمۡ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوۡرًا رَّحِیۡمًا ﴿۵﴾

زړونه ستاسو او دے الله تعالیٰ بخښنه کوونکے رحم کوونکے۔

مجادله کښ راځی۔ مراد دادے چه په یوه ښځه کښ دا دواړه صفتونه متضاد نشی جمع کیدلے چه هم د مور وی او هم د زوجه وی او په دے کښ اشاره ده په طور د مثال سره چه عین معبود نشی کیدے۔ دریم قول د دوی چه د بل چاځوئی ته به ئے اوویل چه ته به زما ځوئے یئے او هغه ته متبنّٰی ویلے کیږی نو بیا به ئے ویل چه دا ځوئے دے د ځوئی احکام به ئے پرے چلول او د هغه ښځه به ئے د انګور پشان په ځان باندے همیشه حرامه ګنړله. نو مراد دادے چه په یو ولد کښ دا صفتونه متضاد نشی جمع کیدلے چه هم د یو مور او پلار نه پیدا وی او هم د بل مور او پلار نه پیدا وی او په دے کښ هم اشاره ده چه که مشرکان دعوٰی او زعم کوی د یو بنده په باره کښ چه دے ولد د الله تعالیٰ دے او قریاد رس او معبود دے نو دا اجتماع د ضدینو ده او محال ده عقلاً او شرعًا. په روستنو دواړه جملو کښ رد دے د مشرکانو په شرک فی التحلیل والتحریم باندے چه حلال شرعی لره په ځان باندے حرام ګنړی بغیر د دلیل شرعی نه۔ او دا درے اوهام د مشرکانو اعتراضونه وو په نبی صلی الله علیه وسلم باندے چه د هغې په سبب سره دوی هغۀ لره د دعوت او تبلیغ د حق نه منع کول غوښتل نو د هغې جوابونه اوشول نو د دے تعلق دے د رد تطع الکافرین والمنافقین) سره۔ قَوۡلُكُمۡ بِاَفۡوَاهِكُمۡ دا کنایه ده چه دا وینا بے دلیله ده لکه چه یو قول په خولے سره وی او په زړه کښ نه وی نو هغه باطل وی۔ وَاللّٰهُ یَقُوۡلُ الۡحَقَّ وَهُوَ یَهۡدِی السَّبِیۡلَ په دے کښ اشاره ده چه دا درے واړه خبرے عقلاً هم یقینی دی او په شرع د الله تعالیٰ سره هم صحیح ثابت دی۔

ف:- دا اول خطاب دے مؤمنانو ته د پاره د رد د رسم د مشرکانو۔ (پاتے په بل مخ)

اَلنَّبِیُّ اَوْلٰی بِالْمُؤْمِنِیْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗ

نبی ډیر مهربان دے په مؤمنانو باندے دَ ځانونو دَ هغوی نه او بیبیانے دَ دهٔ

اُمَّهٰتُهُمْ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰی بِبَعْضٍ

میندے دَ هغوی دی او رشته داران بعض دَ دوی حق دار دی (په میراث) دَ بعضو سره

او ذکر دَ ادب دے په باره دَ متبنیٰ کښ. او هرکله چه په دے سورت کښ واقعه دَ زید بن حارثه ته اشاره وه چه دَ هغهٔ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم متبنیٰ جوړ کړے وو او خلقو به ورته زید بن محمد ویل او بیا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ زید طلاق کړے شوے ښځے (زینب) سره په حکم دَ الله تعالیٰ سره نکاح اوکړه نو مشرکان او منافقانو اعتراضونه کول شورو کړل چه دا څنګه پیغمبر دے چه اِنګور (دَ ځوئی ښځے) سره ئے نکاح اوکړه نو دَ دے وجے نه په دے سورت کښ ئے دَ هغوی تردید اوکړو آیت خلورم کښ او فرمائیل چه زید دَ نبی صلی الله علیه وسلم ځوئی نشی کیدے نو په دے آیت کښ منع کوی چه زید دَ ځوئی په طریقه سره نبی صلی الله علیه وسلم ته مه منسوب کوئ. اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ مراد دَ دُعا نه ذکر کول دَ نوم دَ متبنیٰ دی او دا رنګ هغه ته آواز ورکول یعنی وائے زید بن حارثه او آواز کوئے یا زید بن حارثه۔
او دَ دے حکم دَ وجے نه دَ عربو عادت هم دا دے چه اکثر اسم کنیت ئے په ابن فلان سره وی لکه ابن عباس ابن عمر ابن مسعود رضی الله عنهم او دا رنګ روستو علماء لکه ابن تیمیه ابن قیم وغیرهما. او هرچه ابو فلان دے نو هغهٔ کله اسم کنیت وی کله چه فلان ځوئے موجود وی لکه ابوالعباس ځکه چه عباس ځوئے (دَ ابن عباس رض) موجود وو او کله دَ صفت په طور سره استعمالیږی لکه " ابوالقاسم دَ نبی صلی الله علیه وسلم په صفت کښ" ځکه چه مراد ترینه وصف دَ قاسمیت دے دا نه ده چه قاسم ئے ځوئے وو دا رنګ ویلے شوے دی په باره دَ ابوحنیفه رحمته الله علیه کښ.
فَاِخْوَانُكُمْ فِی الدِّیْنِ وَمَوَالِیْكُمْ یعنی چه دَ پلار نوم ئے نوی معلوم نو داسے وائے یا اخی یا داسے وائے یا مولیٰ فلان او دَ مَوَالِیْكُمْ دوه معنے دی اوّل معنیٰ دوست یعنی ستاسو دینی دوستان دی. دویمه معنیٰ غلام آزاد کړے شوے لکه زید لره چه نبی صلی الله علیه وسلم آزاد کړے وو نو وائے مولیٰ رسول الله صلی الله علیه وسلم۔
وَلَیْسَ عَلَیْكُمْ جُنَاحٌ دا عام قانونِ الٰهی دے کم په مسئله دَ متبنیٰ کښ وی او که په نورو اقوالو کښ وی خو خطاء په تولو کښ معاف ده. او هرکله چه خطاء معاف ده نو نسیان په طریق اولیٰ سره معاف دے ځکه په خطاء کښ حکم یاد وی خو خلاف ترینه بے اراده اوشی او په نسیان کښ حکم هیر وی۔

فِیۡ كِتٰبِ اللّٰهِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَالۡمُهٰجِرِیۡنَ

په حکم دَ الله تعالی کښې دَ مؤمنانو او مهاجرینو نه

اِلَّاۤ اَنۡ تَفۡعَلُوۡۤا اِلٰۤی اَوۡلِیٰٓئِکُمۡ مَّعۡرُوۡفًا ؕ کَانَ

مګر دا چه کول پکار دی دَ دوستانو ستاسو سره نیکی دے

ذٰلِكَ فِی الۡكِتٰبِ مَسۡطُوۡرًا ﴿۶﴾ وَاِذۡ اَخَذۡنَا

دا (حکم دَ الله تعالی) په کتاب کښې لیکلے شوے۔ او کوم وخت چه واغستو مونږ

سک:۔ دا دویم خطاب دے مؤمنانو ته په باره دَ عظمتِ شان دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ بیبیانو دَ هغهٔ کښې۔ اَوۡلٰی اوله معنٰی دا ده چه زیات شفقت کوونکے او مهربان دے په مؤمنانو باندے دَ نفسونو دَ دوی نه ځکه چه نفس یئے اکثر خواهشاتو ته بلنه کوی او هغه سبب دَ هلاکت دے او پیغمبر په هر حال کښې هدایت او نجات ته بلنه کوی. نو معلومه شوه چه شفقت دَ دهٔ دَ نفسونو بلکه دَ پلارانو نه هم زیات دے۔ دویمه معنٰی دا ده چه تابعداری کول دَ نبی صلی الله علیه وسلم ډیر غوره او مخکښې ده دَ تابعدارئ دَ نفسونو نه او لحاظ کول دَ نبی غوره دی دَ لحاظ کولو دَ نفسونو نه لکه چه سورة توبه سن۱۲۰ کښې دی۔ لیکن دلته اوله معنٰی غوره ده او په هغې کښې اشاره ده چه پیغمبر ستاسو دَ پلار پشان دے دَ دے وجے نه په قراءت دَ ابیّ بن کعب رضی الله عنه کښې "وهوابوهم" راغلے دے نو پلار پسے دَ عیب خبرے کول ناجائز دی۔ وَاَزۡوَاجُهٗۤ اُمَّهٰتُهُمۡ مراد دے نه تشبیه ده دَ مائینداو سره په واجب کیدلو دَ تعظیم دَ هغوی کښې او په همیشه حراموالی دَ نکاح دَ هغوی کښې یعنی دَ هغهٔ په بیبیانو پسے هم دَ عیب خبرے مکوئے پشان دَ مائیندو یئے او کړے۔

وَاُولُوا الۡاَرۡحَامِ په دے جمله سره یو وهم دفع کوی هغه دا دے چه هر کله نبی صلی الله علیه وسلم پشان دَ پلار دَ امت دے او بیبیانے دَ هغهٔ مائیندی ستاسو دَ هغوی میراث هم دَ دے امت حق به وی؟ جواب او شو چه دَ میراث تعلق دَ نسب سره دے او مراد دَ اولوالارحام نه قرابت دَ نسب دے۔ فِیۡ كِتٰبِ اللّٰهِ، مراد دَ دے نه حکم دَ میراث دے۔ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ دا متعلق دے دَ اولٰی سره یعنی نسب دَ میراث په باره کښې مخکښې دے دَ ایمان او دَ هجرت نه یا متعلق دے دَ بَعۡضُهُمۡ سره یعنی مِنۡ بیانیه دے۔ او دا دواړه صفتونه دَ دے وجے نه خاص ذکر کړل چه ایمان سبب دَ دوستانے او دَ هجرت دواړه سبب دَ حاجت دے یعنی اګرچه (پاتے په بل مخ)

مِنَ النَّبِيّٖنَ مِيْثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ

دَ ټولو پیغمبرانو نه لوظ دَ هغوی او خاص ستانه او دَ

نُّوْحٍ وَّاِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسَى ابْنِ

نوح او ابراهیم او موسٰی او عیسٰی ځوئی

مَرْيَمَ وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ۝۷

دَ مریم علیه السّلام نه او اغستلے وُو مونږ دَ دوی نه لوظ پوخ

لِّيَسْـَٔلَ الصّٰدِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمْ وَاَعَدَّ

دے دَپاره چه تپوس به کوی دَ رشتینو نه دَ رشتیا وینا دَ هغوی او تیار کړے دے

لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا ۝۸ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ

کافرانو لره عذاب دردناک . اے ایمان والو

ع ۱

دا دواړه اسباب شته لیکن دا دَ میراث دَ پاره اسباب نشی کیدے. او دَ دے وجے نه انصار ئے نه دی ذکر کړی بلکه هغه په المومنین کښ داخل دی. اِلَّآ اَنْ تَفْعَلُوْٓا اِلٰٓى اَوْلِيٰٓئِكُمْ مَّعْرُوْفًا مراد دَ اولیاء نه دوستان په سبب دَ ایمان او دَ هجرت سره دی او دَ معروف نه مراد وصیت کول، هدیه ورکول او احسان کول دی او دا استثناء منقطع ده یعنی اِلَّا په معنٰی دَ لکن دے او ان تفعلوا په تاویل دَ مصدر سره مبتدا ده او خبر ئے حذف لکه جائز لفظ دے. اَلْكِتٰبِ دَ دے نه مراد لوح محفوظ دے یا مخکښنی کتابونه دی چه په هغې کښ دا حکم دَ احسان کولو دَ یو بل سره ذکر کړے شوے دے.

ک ۸ :. په دے کښ ئے خطاب دے رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته په باره دَ وعدے کښ دَ دعوت کولو دَ پاره. او ربط مخکښ ایت سره ئے دا دے چه په هغې کښ ثابته شوه چه نبی زیات شفقت او رحم کوی په امت باندے نو په دے ایت کښ دَ هغې سبب ذکر کوی یعنی دا نبی داعی دے او داعی لره پکار دی چه شفقت کوی پشان دَ پلار په اولاد باندے. مِيْثَاقَهُمْ دَ دے نه مراد میثاق دے دَ دعوت او تبلیغ توحید نه او تصدیق کولو دَ یو بل ته. وَمِنْكَ دا خطاب دے زمونږ نبی صلّی الله علیه وسلّم ته او دا دَ النَّبِيّٖنَ نه روستو تخصیص بعد التعمیم دے ځکه چه په دے پنځو انبیاؤ باندے تکلیفونه ډیر تیر شوی دی او دَ دوی امتونه هم ډیر مشهور دی.

اٰمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَآءَتْكُمْ

تاسو ته راغلې کله چه پہ تاسو باندے د اللہ تعالیٰ نعمت یا دوئ

جُنُوْدٌ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا وَّجُنُوْدًا لَّمْ

چه تاسو (د ملائکو) او لښکرے په دوی باندے سیلئ پس مونږ ولیږل نور اولښکرے

تَرَوْهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا ۝

لیدونکے . لره عملونو ستاسو اللہ تعالیٰ دے او نه لیدلے

مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا د دے نه مراد اول میثاق دے لیکن د تاکید د پاره ئے دوباره ذکر کړو او غَلِيْظ نه مراد پوخ والے د هغے دے په حلف باللّٰه سره. یا د اول میثاق نه مراد دعوت او تبلیغ دے او د دویم نه مراد تصدیق د آخری رسول دے لکه چه سورة آل عمران ۸۱ کښ ذکر شوے دے. لِيَسْـَٔلَ دا علت یا عاقبت د میثاق اخستلو دے. صِدْقِهِمْ د دے نه مراد صدق دے په دعوت او تبلیغ کښ او سوال د انبیاؤ نه په سورة اعراف ۶ کښ هم ذکر دے. وَاَعَدَّ دا عطف دے په اختتا باندے په تقدیر سره په عبارت کښ یعنی وعده د انبیاؤ نه د دعوت په باره کښ د پاره د دے چه ثواب ورکړی اللہ تعالیٰ مؤمنانو لره او تیار کړے دے عذاب د پاره د کافرانو. یا په عبارت کښ دواړو طرفونو نه حذف دے تقدیر داده لِيَسْـَٔلَ الصّٰدِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمْ فَاَثَابَهُمْ وَيَسْـَٔلَ الْكٰفِرِيْنَ عَنْ كِذْبِهِمْ فَاَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا.

۹.. د دے آیت نه تر ۲۷ پورے دویم باب دے په دے کښ دوه خطابات دی مؤمنانو ته په ۹ ۲۱ کښ او په مینځ کښ تقابل د حال د مؤمنانو او منافقینو دے او د منافقانو څوارلس قبائح ذکر کوی. او بشارتونه دی مؤمنانو ته په نصرت او غلبے سره په غزوه خندق او غزوه بنی قریظه کښ. په دے ۹ کښ دریم خطاب دے مؤمنانو ته حاصل ئے داد ے چه د دے نبی صلی اللّٰه علیه وسلم اطاعت او ادب په دے وجه سره کوئ چه د ده د اطاعت په سبب اللّٰه تعالیٰ تاسو سره امداد کړے دے او د منافقانو اطاعت د دے وجے نه مه کوئ چه هغوی په غزوهٔ خندق کښ ستاسو ملګرتیا پریخودے ده. په دے آیاتونو کښ غزوهٔ خندق چه هغے ته غزوه احزاب هم ویلے کیږی ذکر کوی په څلورم کال د هجرت کښ قریش او غطفان او یهود بنو قریظه ټولو په یو ځل په مدینه منوره باندے د حملے کولو عزم او کړو نو نبی صلی اللّٰه علیه وسلم د مدینے د بچ کولو د پاره د سلمان فارسی رضی اللّٰه عنه (رائے په بل مخ)

إِذْ جَآءُوكُم مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ

هر کله چه دوی راغلل تاسو ته د بره طرف ستاسو نه او د کوز طرف ستاسو نه

وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ

او کله چه کږے شوے سترګے او اورسیدل زړونه غټو مرو ته

وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا ۝١٠ هُنَالِكَ ابْتُلِيَ

او ګمانونه کول تاسو په الله تعالیٰ باندے ګمانونه - دغه وخت ازمائښت اوکړے شو

په رأی سره د صحابو په ملګرتیا کښې خندق اوکنستلو او په هغے کښې د ډیرو معجزاتو اظهار هم شوید ے. او مسلمانان هم تقریبًا درے زره لښکر وو او یو میاشت تیره شوه چه جنګ د دوی په مینځ کښې او نشو بلکه کله کله ویشتل د غشو او کاڼو کیدل. آخرکار الله تعالیٰ په هغوی باندے سیلئ د صبا را اولیږله چه د هغوی خیمے ئے را اویستلے او د هغوی اوروته ئے مړه کړل او کټوئے ورلړه اوغورځولے او ملائیک هم را اولیږلے شول چه هغوی د تکبیرونو آوازونه د دوی په خوا کښې کول او د دوی هغوته ئے واړول نو بغیر د جنګ نه کافران اوتختیدل او سامانونه ترینه پاتے شول نِعْمَةَ اللَّهِ د دے نه مراد مدد د الله تعالیٰ دے رِيحًا مراد د دے نه رِيحَ الصَّبَا (بادِ صبا) دے ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی (نصرت بالصبا واهلکت عاد بالدبور) بادِ صبا د مشرق د طرف نه راځی او دبور د مغرب د طرف نه راځی. وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا د دے نه مراد ملائیک دی او مخکښې جنود نه مراد لښکرے د کافرانو دی.

ف :- په دے آیت کښې هیبت او سختی د هغه وخت ذکر کوی چه بنو غطفان د مدینے د اوچت طرف نه راغلل یعنی د مشرق د طرف نه او قریش د مدینے د کوز طرف نه یعنی د مغرب نه راغلل. وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ دا اشاره ده چه د ډیرے یرے او هیبت د وجے نه سترګو باندے اثر اوشی او دا رنګ په زړونو باندے هم ډیر اثر اوشو نو دواړه په ظاهر باندے حمل دی یا مراد ترینه زیات رعب او یره ده. الظُّنُونَا مختلف ګمانونه، د مؤمنانو ګمان دا وو چه الله تعالیٰ خپله وعده د غلبے د دین پوره کوی لیکن په مونږ باندے امتحان کوی او ویریدل د بے صبرئے نه او منافقانو ګمانونه کول چه دا رسول حق نه دے ځکه پرے دومره زیات مصیبت راغے او الله تعالیٰ ورسره امداد نه کوی.

الْمُؤْمِنُوْنَ وَزُلْزِلُوْا زِلْزَالًا شَدِيْدًا ﴿۱۱﴾

په مؤمنانو باندے او جړ قوي شول په جړ قولو سختو سره ۔

وَاِذْ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ

او كوم وخت چه ويل منافقانو سره او هغه كسانو چه په زړونو دَ هغوى

مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗٓ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿۱۲﴾

كښ شك دۓ چه وعده نه ده كړے موږ سره الله تعالیٰ او رسول دَ هغه مگر دهوكه ۔

وَاِذْ قَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ يٰٓاَهْلَ يَثْرِبَ

او كوم وخت چه اُويل يو ډلے دَ دوى نه اے يثرب (مدينے) والو

لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوْا ۚ وَيَسْتَاْذِنُ فَرِيْقٌ

نيشته طاقت ستاسو نو واپس شئ او اجازت غوختلو يو ډلے

مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُوْلُوْنَ اِنَّ بُيُوْتَنَا عَوْرَةٌ ۛؕ

دَ دوى نه دَ نبى صلى الله عليه وسلم نه دوى ويل يقيناً كورونه زمونږ خالى دى

وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ ۚۛ اِنْ يُّرِيْدُوْنَ اِلَّا فِرَارًا ﴿۱۳﴾

او نه دى هغه خالى دوى نه غواړى مگر تختيدل ۔

مع

س۱۱:۔ دا هم اشاره ده سخت والى دَ دغه حالت ته ليكن دا سے سختے دَ مؤمنانو مخلصانو دَ پاره ابتلاء وى عذاب نه وى او ابتلا سبب دَ اوچت والى دَ درجو دے. او دَ ابتلاء اثر په زړه باندے او په باطنى قوتونو باندے وى او دَ زلزال اثر په ظاهرى اندامونو باندے وى ليكن په دواړو حالتونو كښ مؤمن ثابت قدم وى او خپل دين نه بل طرف ته انتقال نه كوى۔

س۱۲:۔ دا بيان دَ حال دَ منافقانو دے په دغه واقعه دَ احزاب كښ او هغوى ته زجرونه دى او دَ هغوى صفات قبيحه دى دلته مراد دَ مَّرَضٌ نه مرتبه دَ شك ده چه هغه هم يو قسم دَ منافق اعتقادى دے اِلَّا غُرُوْرًا يعنى په وعده دَ نصرت او فتح سره ئے مونږ دَ دين دَ مشرانو نه په دوكه سره را وايستلو اوس مونږ سره امداد نه كوى او دا كلمه دَ كفر ده دا دَ منافق اول قبيح صفت دے۔

س۱۳:۔ په دے ايت كښ زجر دے منافقينو ته او دَ هغوى دوه ډلے ذكر كوى. اوله ډله چه خلق ئے دَ قتال فى سبيل نه واپس كول او دويمه ډله چه پخپله (پاتے په بل مخ)

وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِمْ مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا

او که چرے داخل کړی شی لښکرے په دوی باندے د ټولو طرفونو د مدینے نه بیا او غوختلے شی

الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا ⑭

د دوی نه شرک ضرور او به کړی دوی هغه او حصار به نشی په دے کښ مګر لږ .

د جهاد نه په دروغو عذرونو سره پاتے کیدل. اول قسم لږ کسان وو نو هغوی ته یٔ طائفة اُویل او دویمه ډله ډیره وه نو هغوی ته یٔ فَرِیْقٌ اُویل. او په دے ایت کښ د منافقانو درے قباحتونه یٔ ذکر کړے دی. یَثْرِبَ، د جاهلیت په وخت کښ مدینے ته یثرب ویلے کیدلو ځکه چه د دے اب وهوا خرابه وه او یکښ مرضونه وو او ثراب ملامتیا او خفګان ته ویلے کیږی لکه لا تثریب علیکم الیوم، نو رسول الله صلّی الله علیه وسلّم د دے د پاره دُعا اوغوښتله چه یا الله تعالیٰ د دے نه تبے او مرضونه جحفے ته نقل کړے رهغه وخت جحفه کښ یهودیان اوسیدل) او دیته یٔ مدینه او طابة نوم کیخودلو او بعض روایاتو کښ راغلی دی چه نبی صلّی الله علیه وسلّم د یثرب نوم اغستل د مدینے نه منع اوکړله. لیکن منافقانو د نبی صلّی الله علیه وسلّم خلاف کوؤ د دے وجے نه یثرب لفظ یٔ استعمالوؤ. او بعض مفسرینو ویلے دی چه دا ښار اول چه کوم سړی اباد کړے وؤ د عمالقه نه وؤ او نوم یٔ یثرب بن عمیل وؤ د دے وجے نه د دے نوم یٔ یثرب کیخودلے وؤ. لَا مُقَامَ په پیش د میم سره په معنیٰ د اقامت دے مراد ترینه دلته طاقت د مقابلے دے. فَارْجِعُوْا د میدان جنګ نه واپس شئ یا د دین اسلام نه واپس شئ دین د مشرکانو ته. عَوْرَةٌ، عور عیب او نقصان ته ویلے کیږی یعنی محفوظ نه دی دروازے یٔ نیشته یا دیوالو نه یٔ کوز دی نو دشمن ورته په اسانه سره داخلیدلے شی یا خالی دی د حفاظت کوؤنکو نه.

اِنْ يُّرِيْدُوْنَ اِلَّا فِرَارًا یعنی دوی په دے بهانه سره د کورونو حفاظت نه غواړی بلکه د قتال نه تختیدل غواړی.

۱۴ :- دا هم زجر دے منافقانو ته او د دوی دوه قباحتونه یٔ ذکر کړے دی اشاره ده لکه چه دوی د میدان جهاد نه تختیدلو ته تیار دی دا سے دوی د دین توحید نه واپس کیدلو ته هم تیار دی. وَلَوْ دُخِلَتْ اشاره ده چه لښکرے د کافرانو مدینے ته په احزاب کښ داخل شوے نه وے. الْفِتْنَةَ د دے نه مراد شرک کول یا د مؤمنانو په مقابله کښ جنګ کول دی بِهَا دا ضمیر راجع دے فتنے ته مراد ترینه اجابت د فتنے دے یعنی په قبلولو د فتنه کښ دوی حصار ید ل نه کوی بلکه زر یٔ قبلوی یا

وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ

او يقيناً دوی وعده کړے وه دَ الله تعالیٰ سره دَ دے نه مخکښ چه نه به ګرځوی

الْاَدْبَارَ وَكَانَ عَهْدُ اللّٰهِ مَسْئُولًا ﴿۱۵﴾ قُلْ

شاګانے او ده وعده دَ الله تعالیٰ تپوسلے شوے . ته اُوایه

لَّنْ يَّنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ اِنْ فَرَرْتُمْ مِّنَ

چرے نفع به درنکړی تاسو ته تختیدل که چرے تختته کوئے تاسو دَ

الْمَوْتِ اَوِ الْقَتْلِ وَاِذًا لَّا تُمَتَّعُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۶﴾

مرګ یا دَ وژلو نه او دغه وخت مزے به درنکړے شی مګر لږ وخت .

قُلْ مَنْ ذَا الَّذِیْ يَعْصِمُكُمْ مِّنَ اللّٰهِ اِنْ

ته اُوایه څوک دے چه تاسو به بچ کړی دَ الله تعالیٰ نه که چرے

اَرَادَ بِكُمْ سُوْٓءًا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ؕ وَلَا يَجِدُوْنَ

او غواړی په تاسو باندے مصیبت یا اوغواړی په تاسو باندے رحمت (نو څوک به ئے بند کړی) او او به نه مومی دوی

دا ضمیر راجع دے مدینے ته یعنی روستو دَ فتنے قبلولو نه به په مدینه کښ حصار نشی بلکه په عذاب باندے به زر هلاک شی .

۱۵ :. په دے ایت کښ هم زجر دے منافقانو ته او بو قباحت ئے (نقض عهد) ذکر کړے دے . لَا يُوَلُّوْنَ الْاَدْبَارَ دَ دے نه روستو تقدیر دَ عبارت دا دے فنقضوا هذا العهد فی غزوة الاحزاب (دا لوظ ئے په غزوه احزاب کښ مات کړو) وَكَانَ عَهْدُ اللّٰهِ مَسْئُوْلًا یعنی وفاء عَهْدُ اللّٰهِ او مَسْئُوْلًا الوفاء بِهٖ یعنی دَ وفاء عهد الله به تپوس کیدے شی او دَ دے جملے فائده دا ده که څوک وهم اوکړی چه دا دوی دَ دے وجے نه دَ دے عهد نه خلاف اوکړو چه دا پوره کول څه واجب نه دی نو جواب اوشو په دغے جملے سره .

۱۶ :. په دے کښ هم زجر او تخویف دے منافقانو ته دَ دعوی په بے لوظے باندے چه هغه شا ګرځول یعنی تختیدل دی . مِنَ الْمَوْتِ اَوِ الْقَتْلِ مراد تر ینه ځائے دَ مرګ او دَ قتل دے لکه دَ میدان جهاد نه تختیدل یا دَ ځائے دَ طاعون او دَ وبا نه تختیدل دا دواړه ګناه دی . او دَ مرګ نه پرے بچ کیدل هم نه کیږی که چرے اجل مقرر وی . وَاِذًا یعنی که چرے څوک او تختی او نیته نه وی نو مرګ خو بیا هم نزدے دے او ژوند لږ دے نو دَ لږے فائدے دَ پاره دَ ډیرو فائدو دَ جهاد نه ځان محروم کول دَ بے عقلو خلقو کار دے .

لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷﴾ قَدْ

ځان لره سوا دَ الله تعالیٰ نه هیڅ کوونکے او نه امدادی ۔ یقینًا

يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ وَالْقَآئِلِيْنَ

پیژنی الله تعالیٰ منع کوونکی (دَ جهاد نه) ستاسو نه او وینا کوونکی

لِاِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ اِلَيْنَا ۚ وَلَا يَاْتُوْنَ الْبَاْسَ

رونړو خپلو ته چه راشئ مونږ ته او نه راځی دوی جنګ کولو ته

اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۸﴾ اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۖۚ فَاِذَا جَآءَ الْخَوْفُ

مګر لږ بُخل کوونکی دی په تاسو باندے نو کله چه راشی ویره

رَاَيْتَهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ

وینے ته دوی لره کوری په تاته اوړی راوړی سترګے دَ دوی

سلا:۔ دا هم زجر دے یعنی که خوک اُوائی چه ډیر کرته انسان او تختی نو دَ مرګ او قتل نه هیچ پاتے شی نو په دے ایت کښ جواب ورکوی چه که چرے الله تعالیٰ دَ دے انسان بل تکلیف او مصیبت او غواړی نو هیڅوک ئے نشی هیچ کولے۔ او په ایت کښ رد دَ شرک فی التصرف دے چه هیڅ ولی بزرګ وغیره مالک دَ نفع او دَ ضرر نه دے اَوْ اَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً" هر کله چه دَ رحمت سره دَ يَعْصِمُكُمْ مناسبت نیشته نو معلومه شوه چه دلته عبارت کښ تقدیر دے یعنی من یصیکم بسوء یا و من یمنعکم رحمته تعالیٰ۔ وَلِيًّا دا متعلق دے دَ یعصمکم سره نَصِيْرًا متعلق دے دَ رحمةً سره۔

سلا:۔ په دے ایت کښ زجر دے منافقانو ته او دَ هغوی درے قباحتونه ئے ذکر کړے دی. مخکښ ذکر شوه چه تیحته کوی دَ جهاد نه اوس ذکر کوی چه نورو خلقو لره منع کوی. قَدْ يَعْلَمُ دا قَدْ دَ پاره دَ تحقیق دے او مقصود په دے کښ زورنه او یره ورکول دی. الْمُعَوِّقِيْنَ چه دَ تابعدارے دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ قتال فی سبیل الله نه خلقو لره منع کوی. هَلُمَّ په لغت دَ اهل حجاز کښ دا لفظ دَ مفرد او تثنیے او جمع دَ پاره یو شان استعمالیږی.

اِلَّا قَلِيْلًا مراد دَ دے نه دَ ریاء او دنیوی مقصد دَ پاره جنګ ته راتلل دی او په دے کښ اشاره ده چه کوم عبادت چه غلط نیّت سره وی نو که ډیر وی نو هم دَ الله تعالیٰ په نیز لږ دے۔

كَالَّذِيْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۚ فَاِذَا
پشان دَ هغه چاچه بےهوشي وربانديے راوستلے شي دَ مرګ دَ وجے نه نو کله چه

ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوْكُمْ بِاَلْسِنَةٍ حِدَادٍ
لاړه شي ويره نو تکليف درکوي تاسو ته په تيزو ژبو سره

اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ؕ اُولٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوْا
حرص کوونکي دي په مال بانديے دغه کسانو ايمان نه دے راوړے

فَاَحْبَطَ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ ؕ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ
نو برباد کړل الله تعالىٰ عملونه دَدوي او دے دا کار په الله تعالىٰ بانديے

يَسِيْرًا ⑲ يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوْا ۚ
آسان . ګمان کوي دوي په ډلو دَ کافرانو بانديے چه هغوي نه دي تلي

وَاِنْ يَّاْتِ الْاَحْزَابُ يَوَدُّوْا لَوْ اَنَّهُمْ بَادُوْنَ
او که چرے راشي دغه ډلے نو غواړي (دا منافقان) چه ارمان دے چه دوي ديره وے

ف ۱۹ :- په دے آيت کښ دَ منافقانو نورېنځه قبايح ذکر کوي اَشِحَّةً جمع دَ شحيح ده. بُخل او حرص ته وائي او دا متعلق دے دَ مخکښ آيت سره چه دوي تاسو منع کوي دَ جهاد نه او بخيله هم نه کوي دا دَ دے وجے نه چه دوي. بخل کوي ستاسو دَ فائدے او دَ خير په باره کښ يعني چه تاسو ته څهٔ خير او فائده اونه رسيږي.

فَاِذَا جَآءَ الْخَوْفُ اه په دے کښ دَ دوي بُزدلے ته اشاره ده مراد الْخَوْفُ نه خبر دَ قِتال او دَ حملے کولو دَ دُشمنانو دے.

كَالَّذِيْ يُغْشٰى اه يعني دَ ځنکدن په وخت کښ دَ سترګو حرکت بے اختياره شي.

سَلَقُوْكُمْ سلق په اصل کښ بسط (اوګدولو) دَ لاس او دَ ژبے ته وائي په طريقه دَ سختئ او تکليف ورکولو سره. مراد دا دے چه تيزے او دَ چالاکے خبرے کوي چه موږ تاسو سره شريک وو نو موږ له په غنيمت کښ حصه راکړئ.

اَشِحَّةً دا په معنىٰ دَ حِرص دے يعني حِرص کوونکي دي په حاصلولو دَ مال بانديے.

فِی الْاَعْرَابِ یَسْاَلُوْنَ عَنْ اَنْۢبَآىِٕكُمْ ؕ وَلَوْ

په بانډو کښې تپوسونه به کولے ستاسو د خبرونو نه او که چرے

كَانُوْا فِیْكُمْ مَّا قٰتَلُوْۤا اِلَّا قَلِیْلًا ﴿۲۰﴾ لَقَدْ كَانَ

وے دوی په تاسو کښې تو جنګ به نه وو کړے دوی مګر لګ . یقینًا شته دے

لَكُمْ فِیْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ

ستاسو دپاره په باره د رسول الله صلّی الله علیه وسلّم کښې نمونه د تابعدارے خائسته هغه چا لره

كَانَ یَرْجُوا اللّٰهَ وَ الْیَوْمَ الْاٰخِرَ وَ ذَكَرَ اللّٰهَ

چه عقیده لری د الله تعالیٰ (د توحید) او د ورځ روستنی او یاد وی الله تعالیٰ لره

كَثِیْرًا ﴿۲۱﴾ وَ لَمَّا رَاَ الْمُؤْمِنُوْنَ الْاَحْزَابَ ۙ قَالُوْا

ډیر . او هر کله چه اولیدل مؤمنانو ډلے د کافرانو دوی اُوئیل

۲ع ۱۶

ت۲۰ :. دا هم زجر دے او په دے آیت کښې د دوی درے قبائح ذکر کوی او په دیکښې هم اشاره ده بزدلے د دوی ته یعنی که دوی ته اُوئیلے شی چه دشمنان لاړل نو دوی د ډیرے یرے د وجے ته دا نه منی - یَوَدُّوْا لَوْ اَنَّهُمْ بَادُوْنَ فِی الْاَعْرَابِ یعنی اول کرتے چه احزاب راغلل نو دوی بعضِ کسانو شرکت اوکړو د مؤمنانو سره د وجے د بے خیرئے نه او که چرے دوباره احزاب راغلل نو دوی به د ډیرے یرے د وجے نه مدینه هم پریږدی بانډو ته به لاړشی - یَسْاَلُوْنَ عَنْ اَنْۢبَآىِٕكُمْ دا هم د منافقت د وجے نه یعنی تپوسونه کوی چه غنیمت مؤمنانو حاصل کړو ډے د دے دپاره چه حصّه تربینه اوغواړی یا د دے دپاره چه بیا به په مؤمنانو باندے احسان واچوی چه مونږ خو ستاسو تپوسونه کول ستاسو د حال نه مونږ ځان خبر ساتلو - اِلَّا قَلِیْلًا دلته هم مراد د قلیل نه ریاکاری ده مخکښې آیت (ت۱۸) کښې د جهاد نه د غیر حاضرے حالت مراد وو په دے آیت کښې د حاضرے وخت مراد دے -

ت۲۱ :. دا څلورم خطاب دے مؤمنانو ته او تاکید دے په تابعدارئے د نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے او رد دے په منافقانو باندے چه هغوی په جهاد کښې شرکت نه کوؤ او چا چه شرکت کوؤ هم په اخلاص سره نه وو نو په دے کښې رد د هغوی دے چه نبی صلّی الله علیه وسلّم په جهاد کښې شرکت په اخلاص سره کوی د هغه تابعداری اوکړئ په دے آیت کښې په اتباع د رسول صلّی الله علیه وسلّم ډیر تاکیدات دی اول حرفِ لام،

# هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَصَدَقَ اللّٰهُ

دا هغه خبره دے چه وعده کړیده موږ سره الله تعالیٰ او رسول دَهغهٔ او رشتیا ویلی دی الله تعالیٰ

دویم قد ، دریم کان چه دلته په دوام باندے دلالت کوی څلورم لفظ دَ فِیْ چه داخل دے په رسول باندے یعنی فِیْ اَمْرِهٖ وَنَهْيِهٖ ئے نه دے ویلے اشاره ده چه دَ نبی په ذات کښ (یعنی دَ هغه صورت او سیرت ته ، او امرونواهی کول یا پریخودل ، رفتار گفتار هرڅه ته شامل دے ) ستاسو دَپاره تابعداری کول دی. پنځم لفظ دَ رَسُوْلُ اللّٰهِ دے یعنی دهٔ دَ الله تعالیٰ پیغام راوړے دے نو دَ دهٔ اقتداء دا دَ الله تعالیٰ دَ حکم اطاعت دے . شپږم لفظ دَ اُسْوَةٌ دے . دالفظ ځکه خاص دے په هغه اقتداء پورے چه په هغے کښ برابری وی یعنی پوره تابعداری کوی او په هغے کښ دَ زړه علاج او تسلی وی ځکه چه اسی کښ معنیٰ دَ علاج او دَ دواهم پرته ده یعنی دَ نبی صلی الله علیه وسلم پوره اقتدا لازم ده او دا رنګ دَ هغهٔ اقتداء کول دَ زړونو دوائی او تسلی هم ده اووم لفظ دَ حَسَنَةٌ ، یعنی فائده منده په دنیا او آخرت اتم لفظ دَ لِمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ دا بدل دے دَ لَكُمْ نه یعنی په چاکښ چه دا صفتونه وی نو هغهٔ به ضرور اقتداء دَ نبی صلی الله علیه وسلم کوی یعنی په ایمان بالله والیوم الاخر او په ټولو عباداتو کښ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم اقتداء به کوی یا دا (لِمَنْ كَانَ) متعلق دے په حَسَنَةٌ پورے یعنی فائده او ثواب دَ اقتداء دَ هغه چا دَپاره ده چه عقیده دَ هغهٔ په الله تعالیٰ او آخرت باندے وی . يَرْجُوا په معنیٰ دَ یرے او په معنیٰ دَ عقیدے او دَ یقین دے اُمید نه دے مراد ځکه چه صرف په امید سره درجه دَ ایمان نه حاصلیږی . نهم وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ . لسم ذِكْرَ اللّٰهِ كَثِيْرًا ، او مراد دَ ذکر نه تمام عبادات دی ځکه چه ذکر دَ ټولو عبادتونو نه افضل عبادت دے . دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړے شو چه کوم یو بنده افضل او اوچت درجے والا دے په نیزد دَ الله تعالیٰ په ورځ دَ قیامت ، هغهٔ اوفرمائیل "چه ذکر کوونکی دَ الله تعالیٰ نارینه او زنانه "، اُوویلے شو چه یا رسول الله دَ غازی فی سبیل الله نه هم غوره دی هغهٔ جواب اوکړو "که غازی په خپله توره باندے مشرکان او کافران داسے اُووهی چه دَ هغه توره ماته شی او دَ وینو نه ککړه شی بیا هم ذکر کوونکے دَ هغهٔ نه افضل دے " (مشکوٰة ص۲۱۵)

او كَثِيْرًا دَ دے نه مراد ذکر دے په شرعی شرطونو سره چه په طریقه دَ اخلاص او په تابعدارئے دَ سنت سره او سرهٔ دَ فهم دَ معنے سره وی داسے ذکر اګرچه لګ وی لیکن دَ الله تعالیٰ په نیز ډیر دے نو کوم ذکر چه دَ بدعت په طریقے سره وی لکه په چغو سره ذکر کول او دَ ځان نه تخصیص کول ریا تے په یل مخ)

وَرَسُوْلُهٗ وَمَا زَادَهُمْ اِلَّآ اِيْمَانًا وَّتَسْلِيْمًا ﴿۲۲﴾

او رسول دَهغه او نه زياتوي دوي لره مگر ايمان او تابعداري كول.

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ

بعضِ دَ مؤمنانو نه سړي دي چه پوره كړے ده هغه وعده چه كړيده الله تعالىٰ

عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ وَمِنْهُمْ

سره. نو بعضِ دَ دوي نه هغه دي چه پوره يُے كړو حاجت خپل او بعضِ هغه دي

دَ وخت او دَ حال دَ هغے يا ذكر مفرد (يعني صرف الله الله) يا چه په معنے ياند ے نه پوهيږي نو دا ذكر غير مقبول دے لكه چه بعضِ تشريح تفسير روح المعاني كښ دَ سلا آيت دَ لاندے كړے ده. نو حاصل دَ آيت دَ لِمَنْ كَانَ يَرْجُوْ اه نه دا دے چه څوك ايمان په الله تعالىٰ او په ورځ دَ آخرت لري او عمل دَ الله تعالىٰ دَ پاره كوي نو دَ دے رسول تابعداري او اقتداء دے كوي. او دَ ذكر په لفظ سره يُے دَ دے وج نه راوړو چه څوك ذاكروي نو دَ هغهٔ زړهٔ بيداروي نو دَ دے وج نه تابعدارئ دَ رسول الله صلّى الله عليه وسلّم ته تيار وي او څوك چه غافل وي نو هغهٔ په تابعدارے كښ سست وي. په سورة ممتحنه سـ۴ كښ اقتداء دَ ابراهيم عليه السّلام او دَ هغهٔ دَ ملگرو صرف په براءت دَ مشركانو كښ ذكر كړے ده ,, او سورة ممتحنه سـ۶ كښ ذكر الله كثيراً نه دے ذكر كړے ځكه چه دا امت دَ ابراهيم عليه السّلام په اقتداء دَ ټولو اعمالو باندے مكلف نه دے.

سـ۲۲: دا ذكر دَ حال او دَ تثبيت دَ مؤمنانو دے په مقابله دَ حال دَ منافقانو كښ او په دے كښ دَ مؤمنانو درے صفات دي. هٰذَا اشاره ده هغه حال ته چه په سـ۱۰ كښ تير شويدے او مراد دَ دے نه مصيبتونه راتلل دي په مؤمنانو باندے دَ پاره دَ ابتلاء لكه سورة بقره سـ۲۱۴ سورة العمران سـ۱۴۲ سورة عنكبوت سـ۲ كښ.

وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ دا په مقابله دَ قول دَ منافقانو كښ دے چه په سـ۱۲ كښ تير شوے دے. وَمَا زَادَهُمْ اه په دے كښ اشاره ده چه دا قول دَ مؤمنانو صرف دَ ژبے نه نه دے په شان دَ منافقانو بلكه په زړه او په اندامونو باندے دَ هغے اثر موجود دے. او آيت دليل دے چه په ذكر كولو سره ايمان كښ زياتے او مضبوطوالے راځي.

مَّنْ يَّنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا ﴿۲۳﴾ لِّيَجْزِيَ اللّٰهُ

چه انتظار کوی او دوی نه دے بدل کړے (دین دَ الله تعالیٰ) په هیڅ بدلولو. دَ دے دپاره چه بدله ورکړی الله تعالیٰ

الصّٰدِقِيْنَ بِصِدْقِهِمْ وَيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ

رشتینو خلقو ته په سبب دَ رشتیاؤ دَ هغوی عذاب ورکړی منافقانو ته

اِنْ شَآءَ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

که چرے اوغواړی یا توفیق دَ توبے به ورکړی هغوی ته یقیناً الله تعالیٰ دے

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۲۴﴾ وَرَدَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

بخنه کوونکے رحم کوونکے . او واپس کړل الله تعالیٰ کافرانو لره

۲۳ : دا دَ مؤمنانو څلور صفات دی اولے دا صفتونه دَ صحابه کرامو دی بیا چه څوک دَ هغوی تابعدار وی. رِجَالٌ په دے لفظ کښ دَ هغوی کمال رجولیت ته اشاره ده. صَدَقُوْا مراد دَ دے کلک کیدل په وعده او په هغے باندے وفاء کول دی چه هغه وعده دَ قتال کولو فی سبیل الله ده او نورو ټولو احکامو شرعیو ته شامل ده. فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ، نحب نذر ته وائی او مراد تر ینه مرګ دَ شهادت دے او موت ته ئے دَ دے وجے نه نذر اُویل چه هغه صحابه کرامو دا شهادت په ځان باندے نذر منلے وؤ یا دَ دے وجے نه چه مرګ په هر نفس باندے داسے لازم دے لکه نذر چه لازم وی - یا دا چه نحب اجل دَ موت ته ویلے کیږی یا قضٰی نحبه نه مراد کوشش صرف کول دی دَ عهد په وفا کولو کښ او مصداق دَ دے په صحابه کرامو کښ حمزه او مصعب او انس بن نضر رضی الله عنهم دی او نورو شهیدانو دَ بدر او اُحد ته هم شامل دے. وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ مراد دا چه دوی کوشش کوی دَ مرګ دَ شهادت په حصول کښ لکه باقی صحابه کرام شول. وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا دا جمله عامه ده عهد او ټول دین دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته شامله ده. معلومه شوه چه کوم صحابه کرام وو نو هغوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په دین کښ هیڅ بدعت نه دے جوړ کړے او دین دَ هغه ئے نه دے پریخودے او کوم چه مرتد دی نو هغه (په تعریف شرعی) کښ صحابه نه دی.

۲۴ : دا متعلق دے په مخکښ ذکر کړے شوے عملونو دَ صحابه کرامو پورے او خصوصاً وَمَا بَدَّلُوْا پورے او غوره دا ده چه لام دَ پاره دَ عاقبت دے او بِصِدْقِهِمْ کښ سبب دَ جزا ذکر کړے دے او صدق نه مراد تیر شوی اعمال دَ صحابه کرامو دی. او مُنٰفِقِيْنَ نه مراد هغه څوک دی چه دَ ذکر کړے شوے صفاتو دَ صحابه نه خلاف وی. او مراد دَ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ نه توفیق دے دَ توبے کولو دَ منافقت نه -

بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوا خَيْرًا ۚ وَكَفَى اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ

سره دَ غصے دَ هغوی نه چه نه یئے وه حاصل کړے هیڅ فائده او بس کړه الله تعالی مؤمنانو لره

الْقِتَالَ ۚ وَكَانَ اللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزًا ﴿٢٥﴾ وَأَنْزَلَ

دَ جنګ کولو نه او الله تعالی دے قوت والا زور آور - او راکوز یئے کړل

الَّذِينَ ظَاهَرُوهُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ

هغه کسان چه مدد یئے دَ هغوی سره کړے وُو دَ کتابیانو نه

مِنْ صَيَاصِيهِمْ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ

دَ قلعګانو دَ هغوی نه او واچوؤ په زړونو دَ هغوی کښ

الرُّعْبَ فَرِيقًا تَقْتُلُونَ وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا ﴿٢٦﴾

هیبت یو ډله تاسو وژله او قید کوله تاسو بله ډله.

**۲۵**:- دا بیان دَ جزاءِ دنیوی دے مؤمنانو لره یعنی دَ دوی دَ صدق دَ وجے نه احزاب دَ کافرانو بغیر دَ مقصده واپس شول ۔ خَيْرًا یعنی خیر دَ دنیا او دَ آخرت یئے حاصل نه کړو۔ وَكَفَى اللَّهُ الْقِتَالَ یعنی سیلئ او ملائک په کافرانو باندے راغلل نو هغوی یئے اوزغلول او قتال کولو دَ مؤمنانو ته څه حاجت پاتے نشو۔

**۲۶**:- دا هم په جزا کښ داخل دے چه الله تعالی دَ مؤمنانو سره امداد اوکړو په غزوه دَ بنی قریظه کښ هر کله چه بنو قریظه دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره لوظ مات کړو او دَ نورو کافرانو سره یئے په غزوهٔ خندق کښ ملګرتیا اوکړه ، نو نبی صلی الله علیه وسلم ته حکم راغے چه دَ بنو قریظه سره جنګ دَ پاره لاړ شه هغوی دَ یرے نه په خپلو قلعګانو کښ پټ شول او مؤمنانو دَ دوی پنځویش ورځے محاصره اوکړه آخری دوی تنګ شول او رضا شول په فیصله دَ سعد بن معاذ رضی الله عنه باندے نو هغه فیصله اوکړه چه ځوانان دے قتل کړے شی ، او بچی او ښځے دے قید کړے شی او نبی صلی الله علیه وسلم دَ دهٔ دَ فیصلے تائید اوکړو نو په هغه فیصله باندے عمل اوکړے شو. فَرِيقًا تَقْتُلُونَ دَ دے فریق انتخاب یئے مخکښ اوکړو نو دوی خاص کړے شو دَ پاره دَ قتل کولو، دَ دے وجے نه فَرِيقًا یئے دلته مخکښ ذکر کړو او باقی پاتے شول دَ پاره دَ قید کولو نو په هغے کښ تقدیم دَ فریقًا ته ضرورت نه وُو.

وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ

او درکړے دہ تاسو تہ زمکہ دَ هغوی او کورونو دَ هغوی او مالونو دَ هغوی

وَأَرْضًا لَّمْ تَطَئُوهَا ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ

(او دربہ کړی) داسے زمکہ چہ تاسو قدم نہ دے ایخودلے پہ هغے باندے او اللّٰہ تعالیٰ دے پہ هر

شَيْءٍ قَدِيرًا ﴿٢٧﴾ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ

څیز باندے قدرت والا۔ اے نبی اُوایہ خپلو بیبیانو تہ

إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا

کہ چرے تاسو غواړئے ژوند دنیوی او ښائیست دَ هغے

فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا

نو راشئے چہ سامان درکړم او رخصت کړم تاسو لره پہ رخصتے

جَمِيلًا ﴿٢٨﴾ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ

ښائسته سره۔ او کہ چرے تاسو غواړئے اللّٰہ تعالیٰ لره او رسول دَ هغہ لره

ف۲۷:۔ دا هم پہ جزا کښ داخل دے۔ یعنی تیرشوی ایت کښ غلبہ پہ نفسونو دَ کتابیانو کافرانو باندے ذکر کړے شوہ نو پہ دے ایت کښ غلبہ دَ هغوی پہ مالونو باندے ذکر کوی۔ او مراد دَ دے نہ غنیمتونہ دَ بنی قریظہ دی۔ اَرْضَهُمْ مراد دَ دے نہ باغونہ او پټی دی۔ وَاَمْوَالَهُمْ مراد دے تہ دَ دوی څاروی نقد او وسلے او سامانونہ وغیرہ دی وَاَرْضًا لَّمْ تَطَئُوهَا مراد دَ دے نہ وعدہ دہ دَ غنائمو دَ خیبر یا ټولو غنیمتونہ دَ مسلمانانو چہ تر قیامتہ پورے وی او داسے پہ سورۃ فتح ف۲۰ کښ هم دی۔

ف۲۸:۔ دَ دے ایت نہ تر ف۳۴ پورے دریم باب دے پہ دے کښ درے خطابات نبی صلّی اللّٰہ علیہ وسلّم تہ ذکر کوی ف۲۸ ف۳۷ ف۳۸ او څلور خطابات بیبیانو دَ رسول اللّٰہ صلّی اللّٰہ علیہ وسلّم تہ دَ ف۳۱ تر ف۳۴ پورے دوہ خطابات عامو مؤمنانو تہ پہ ف۳۶ ف۴۰ کښ او ذکر دَ بشارت دے پہ ذکر دَ لس صفتونو سره پہ ف۳۵ کښ۔

پہ دے (ف۲۸) کښ تهم خطاب دے نبی صلّی اللّٰہ علیہ وسلّم تہ۔ او مراد دَ دے نہ دا دے کہ بیبیانے دَ دعوت دَ دین پہ کار کښ مانع جوړیگی نو دَ هغوی پریښودل ضروری دی لیکن دعوت دَ حق بہ نہ پریښودے کیږی۔ او ربط دا دے چہ هرکلہ دَ دشمنانو حال ذکر کړے شو چہ هغوی دَ دعوتِ حق پہ لار کښ رپاتے پہ بل مخ)

وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ

او کور روستنے تو یقینا اللہ تعالیٰ تیار کړیدے ښائسته عمل کوؤنکو لره

مقابله او مخالفت کوؤنکے وؤ نو اوس حال دَ قریبي ملګرو (بیبیانو) ذکر کوی او دیته ایت دَ تخییر ویلے کیږی یعنی ښځے ته اختیار ورکول چه دَ خاوند نه جدائی غواړے او که نه غواړے ستا اختیار دے نو په دے کښ قول صحیح دا دے چه په دے سره هیڅ طلاق نه واقع کیږی هاں که په جواب کښ اُوائی چه ما ځان غوره کړے یعنی جدائی م خوښه ده نو په دے کښ اختلاف دے دَ سلف صالحینو چه څه رنګ طلاق واقع کیږی. او دَ دے ایت دَ نزول سبب دا وؤ چه هرکله نبی صلّی اللہ علیه وسلّم دَ زینب رضی الله عنها سره نکاح اوکړو دَ پاره دَ دے چه رسم دَ جاهلیت ختم شی په باره دَ تحریم دَ ښځے دَ متبنیٰ کښ نو نورے بیبیانے دَ غیرت دَ بنتوب دَ وجے نه رچه دا طبعی امر دے) نبی صلّی الله علیه وسلّم نه راجمع شوے او دَ ډیرے نفقے مطالبه ئے شورو کړله نو نبی صلّی الله علیه وسلّم ترینه خفه شو او اوئیلے چه څه یوه میاشت تاسو ته نه نزدے کیږم او په دغه ورځو کښ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ سورلے نه راغورځیدلے وؤ نو اړخ ئے زخمی شویوؤ او خپه ئے اوږیدلے وه نو په بالاخانه کښ ځانله اوسیدلو، هرکله چه دا ایت دَ تخییر نازل شو او میاشت دَ یوکم دیرشو ورځو پوره شوه نو نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ بالاخانے نه راکوز شو او دا ایاتونه ئے بیبیانو ته پیش کړل نو هغوی په جواب کښ اُوئیل چه مونږ الله تعالیٰ او رسول او اخرت خوښوؤ دَ دے په باره کښ احادیث صحیحه راغلی دی.

لِاَزْوَاجِكَ دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ بیبیانو تعبیر ئے په ازواج سره کړے دے دا دلیل دے چه هغوی دَ هغهٔ سره پوره موافق وے او په دغه وخت کښ دَ هغهٔ نهه بیبیانے وے پنځه قریشیے وے ۱ عائشه لور دَ ابوبکر رضی الله عنهما ۲ حفصه لور دَ عمر رضی الله عنهما. ۳ ام حبیبه لور دَ ابو سفیان رضی الله عنهما ۴ ام سلمه رضی الله عنها لور دَ ابو امیه ۵ سوده رضی الله عنها لور دَ زمعه. او څلور غیر قریشیے وے ۶ زینب رضی الله عنها لور دَ جحش دَ اسد قبیلے ۷ میمونه رضی الله عنها لور دَ حارث دَ هلال قبیلے ۸ صفیه رضی الله عنها لور دَ حی بن اخطب دَ خیبر کتابیه ۹ جویریه رضی الله عنها لور دَ حارث دَ بنو مصطلق قبیلے. اَلْحَيٰوةَ الدُّنْيَا مراد دَ دے نه ترقی دَ دُنیا ده په اعتبار دَ ډیر نفقے او مالونو سره. وَزِيْنَتَهَا مراد دَ دے نه ښائسته لباس او کالی وغیره دی. فَتَعَالَيْنَ لفظ دَ تَعَالَ په اصل کښ دلالت کوی چه ډیرے ته کوز طرف ته رابللے کیږی یا دَ کوز نه بر طرف ته رابللے کیږی او اکثر په معنیٰ دَ صرف حاضریدلو سره

مِنكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٢٩﴾ يَٰنِسَاءَ النَّبِيِّ مَن يَأْتِ

چه تاسو کې ثواب لوے. اے بیبیا تو دَ نبی (صلی الله علیه وسلّم) چاچه راتلل اوکړه

مِنكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُضَٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ

ستاسو نه په بدئ ښکاره سره دوچندا په ورکیدے شی هغې ته عذاب

ضِعْفَيْنِ ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿٣٠﴾

دوچندا او دے دا کار په الله تعالیٰ باندے آسان.

استعمالیږی. اُمَتِّعۡکُنَّ مراد ترینه متعه دَ مطلقا تو ده چه په سورة بقره ۲۳۶ کښ ذکر ده. وَاُسَرِّحۡکُنَّ تسریح په اصل کښ آزاد پریخودلو ته وائی لکه څاروی صبائی وخت صحرا ته پریخودل دَ څرے دلو دَپاره مراد ترینه طلاق دے بغیر دَ رجوع کولو نه.

۲۹:- دا دَ تخییر دویم طرف دے. تُرِدۡنَ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ مراد دَ دے نه رضا او طاعت کول دَ دے دواړو دی. وَالدَّارَ الۡاٰخِرَةَ مراد دَ دے نه جنت دے چه په طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم سره حاصلیګی. لِلۡمُحۡسِنٰتِ مراد دَ دے نه دوام او همیشه پاتے کیدل دی په دغه دویمه اراده باندے تر مرګه پورے. مِنۡکُنَّ مِنۡ بیانیه دے مراد ترینه ټولے بیبیانے دَ پیغمبر دی لیکن دَ دوی دَ تخویف دَپاره ئے مِنۡ ذکر کړے دے او هرکله چه دا حکم دَ امت ټورو بیبیانو ته هم شامل دے او دَ نبي صلی الله علیه وسلّم بیبیانے دَ هغوی نه بعض دی نو دَ دے وجے نه ئے هم مِنۡ ذکر کړے دے.

۳۰:- دا خطاب دے بیبیا تو دَ نبی صلی الله علیه وسلّم ته را او بنعم خطاب دَ ټولے امت دَ هرکله چه دوی الله تعالیٰ او رسول صلی الله علیه وسلّم او جنّت لره غوره کړو نو اوس دوی ته هغه امور ذکر کوی چه په هغې باندے دَ عمل کولو په سبب سره رضا دَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم او جنّت حاصلیږی. په دے آیت کښ تاکید دے په اجتناب دَ هر فحشاء سره که قول وی او که عمل وی نافرمانی دَ خاوند، بد اخلاقی، دنیا پرستی وغیره. مُّبَيِّنَةٍ یعنی دَ هغې ناکاره والے شرعًا او عقلًا دواړه ښکاروی هیڅ احتمال دَ جواز په کښ نه وی. ضِعۡفَیۡنِ لفظ دَ ضعف هم دلالت کوی په دوچندا کیدلو باندے لیکن تثنیه دَ تکرار دَ تاکید دَپاره ده. اشاره ده چه دَ چا مرتبه اوچته وی نو دَ هغه جرم هم اوچت شمیرکیږی او عتاب او عذاب ئے هم زیات وی. وَکَانَ ذٰلِکَ عَلَی اللّٰهِ یَسِیۡرًا په دے کښ رپاتے په بل مخ)

وَمَن يَقْنُتْ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ

او چاچه تابعداری کوله ستاسو نه دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه

وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَا أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ

او عمل ئې کوؤ دَ سنت موافق نو ورکوو موږ هغې ته ثواب دَ هغې دوچنده

وَأَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾ يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ

او تیار کړے ده موږ هغې لره روزی عزت والا ۔ اے بیبیانو دَ نبی

لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ إِنِ اتَّقَيْتُنَّ

نه ئې تاسو پشان دَ هیچا دَ نورو زنانوؤ نه که چرے تاسو تقویٰ لرئې

فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي

نو جوئیل دَ خبرے مهٔ کوئې نو طمع به اوکړی هغه څوک

اشاره ده چه نسبت دَ دے بیبیانو نبی صلی الله علیه وسلم ته په وخت دَ گناه کولو کښې بچ کوؤنکے دَ عذاب نه نه دے صحیح حدیث کښې راغلی دی "من لم یسرع به عمله لم یسرع به نسبه" یعنی هرکله چه څپل عمل کښې کوتاهی وی نو په نسب سره کمال نه حاصلیږی.

۳۱: دَ زیادت دَ عذاب نه روستو زیادت دَ ثواب دَ هغوی ذکر کوی لیکن په اعتبار دَ عمل صالح سره نه په نسب سره او دا بشارت دے. يَقْنُتْ مراد دَ دے نه اطاعت قلبیه دے او درجه دَ نیت ده - وَتَعْمَلْ نه مراد اعمال ظاهریه دی په شرط دَ صالحیت یعنی په اتباع دَ سنت سره.

**فائده:** په مقام دَ اجر کښې نسبت الله تعالیٰ ته په نُّؤْتِهَا کښې او په مقام دَ عذاب کښې مجهول ذکر کول په يُضَاعَفْ سره دلیل دے چه رحمت دَ الله تعالیٰ غالب دے په غضب باندے.

رِزْقًا كَرِيمًا، مراد دَ دے نه رزق دَ جنت دے په تیز دَ اکثرو مفسرینو څکه چه مراد دَ کریم نه بے کړاوه او فائدے والا چه هیڅ ضرر او نقصان پکښې نه وی، او دا سے رزق صرف په جنت کښې به وی. او بقاعی او خطیب شربینی رزق دَ دُنیا او آخرت دواړه مراد کړیدی او مراد دَ کریم نه برکت والا دے، او دَ "یرزقه من حیث لا یحتسب" په طریقه باندے دے.

فِي قَلْبِهٖ مَرَضٌ وَّقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿۳۲﴾

په زړه د هغه کښې مرض دے او وايئ ويئا د شرع موافق.

وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ

او اوسئ په کورونو خپلو کښې او مه ښکاره کوئ ډول سنګار

۳۲:۔ دا دويم خطاب دے بيبيانو ته او په دے کښې بيان دَ ادب دَ ويئا کولو او دَ خبرو کولو دے۔ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ، دا تفريع ده په تيرشوی خطاب باندے چه هرکله په عذاب او په ثواب کښې فرق ثابت شو نو معلومه شوه چه په حال او مرتبه کښې فرق دے۔ او ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے په معنیٰ دَ دے کښې چه " نه دے قدر ستاسو په نيز زما پشان دَ قدر دَ نورو زنانو" ستاسو مرتبه او ثواب په نيز زما دَ نورو نه زيات دے۔ اَحَدٍ، لفظ دَ احد ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو، چه دا لفظ شامل دے يو، دوه او جماعت ته او مذکر او مؤنث ته يعنی نه ئے تاسو پشان دَ هيڅ يو زنانه او نه دَ جماعت دَ زنانو پشان په مرتبه او عزت کښې۔ ليکن شرط دَ فضيلت نسبت نه دے بلکه تقویٰ دَه دَ دے وجه نه ئے اِنِ اتَّقَيْتُنَّ ذکر کړو او مراد دَ تقویٰ نه په دے تير شوے دوه اياتونو باندے عمل کول دی۔ فَلَا تَخْضَعْنَ دا تفريع ده دَ لوے شان دَ دوی چه مخکښې بيان کړے شو يعنی په ويئا کښې نازونزاکت خوږوالے مه پيدا کوئے په داسے طريقه چه دَ هغے نه دَ مخاطب (فاسق) سړی په زړه کښې بد اثر پيدا شی۔ فَيَطْمَعَ تعبير په طمع سره ئے دَ دے وجے نه او کړو چه په اصل کښې دَ بيبيانو دَ نبی صلّی الله عليه وسلّم دَ طرف نه دَ دے خواهش پيدا کولو هيڅ سبب نيشته۔ مَرَضٌ مراد دَ دے نه فسق وفجور او ميلان دَ سړی دَ ښځو سره خبرے کول او شوق دَ مجالست دَ هغوی۔ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا په دے کښې اشاره ده چه دَ مخکښې نهی مطلب دا نه دے چه بد اخلاقی او کنځل او کړئے بلکه داسے ويئا کوئے چه په هغے سره مقصد دينی يا دنيوی معلوم شی او نور بد اثار ترينه پيدا نشی۔ او ايت کښې دا هم داخل ده چه منافقانو خلقو به دَ بيبيانو دَ نبی صلّی الله عليه وسلّم نه تپوسونه کول چه نبی صلّی الله عليه وسلّم دَ زينب سره نکاح ولے کوی (دا خو دَ دوی دَ رواج نه خلاف وه) نو بيبيانو ته ادب او خودلے شو چه داسے کوزه خبره او نکړئے چه دَ منافق په زړه کښې دا طمع پيدا شی چه دا بيبيانے هم دَ نبی صلّی الله عليه وسلّم نه مخالف دی يعنی په خبرو کښې دَ نبی دَ عمل نه هيڅ خفګان او مخالفت مه ښکاره کوئے بلکه قول معروف او کړئے يعنی داسے اُوائے چه نبی صلّی الله عليه وسلّم باندے هيڅ اعتراض نيشته هغهٔ هيڅ کار دَ الله تعالیٰ دَ حکم نه بغير نه کوی۔

الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ وَأَقِمْنَ الصَّلَوٰةَ وَآتِينَ

پخوانۍ دَ جاهلیت زوړ او پابندي کوئ دَ مونځ او ورکوئ

الزَّكَوٰةَ وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ

زکوٰة او تابعداري کوئ دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه یقینًا غواړي الله تعالیٰ

لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ

چه لرے کړي ستاسو نه پلیتي اے کورنۍ دَ نبي صلی الله علیه وسلم او پاک کړي تاسو

تَطْهِيرًا ﴿٣٣﴾ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ

په پوره پاک والي سره۔ او یادوئ هغه چه لوستلے کیږي په کورونو ستاسو کښې

۳۳ :۔ دا بل خطاب دے بیبیانو ته، مخکښې قولي آداب ذکر وو اوس عملي آداب ذکر کوي. وَقَرْنَ په دے لفظ کښې دوه قِراء تونه دي (زیر دَ قاف او زور دَ قاف) چه په زیر سره وي نو غوره داده چه دَ وقار نه اغستے شوے دے او معنیٰ داده چه وقار او اطمینان کوئ په خپلو کورونو کښې اگرچه دا هم جائز ده چه دَ قرار نه واغستلے شي. او چه په زور سره وي نو دَ قرار نه اغستلے شوے دے چه په اصل کښې إقْرَرْنَ وُو زور دَ اولنۍ رَ نقل شو او قاف ته ورکړے شو او دَ اجتماع ساکنین دَ وجے نه یو رَ حذف شوه او همزه دَ عدم حاجت دَ وجے نه هم حذف شو نو قَرْنَ پاتے شو یعنې قرار او نیسئ په خپلو کورونو کښې، تینګے شئ په کورونو کښې بغیر دَ حاجت شرعي دَ کور نه بهر مه اوځئ لکه چه حدیث دَ سوده رضی الله عنها کښې راغلے دي چه هغه تفلي حج او عمرے دَ پاره هم دَ کور نه وتلے نه وه او ویل یې چه مونږ ته الله تعالیٰ فرمائیلے دي (و قرن في بیوتکن)۔ وَلَا تَبَرَّجْنَ تبرج معنیٰ دَ خپل زیب و زینت او کالي ښکاره کول او په گفتار او رفتار کښې نازښکاره کول دي. الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ، دَ دے نه مراد یو خاص زمانه نه ده بلکه دَ اسلام نه رواندے په هره زمانه کښې چه بے دیني تیره شویده هغے ته جاهلیت اولیٰ ویلے کیږي. او دَ اولیٰ په مقابله کښې په حالت دَ اسلام کښې دَ جاهلیت طریقے جوړول دا دویم جاهلیت دے. یا دلته اولیٰ دا سے لفظ دے چه مقابل نه غواړي عرب کله اولیٰ صرف زوړ ته وائي. او تبرج دَ جاهلیت اولیٰ دا وُو چه زنانه په سر او مخ ښکاره کړے وُو او بازارونو کښې او دَ سړو په رواندے به گرځیدله چابه لاسونه او مټے هم ښکاره کړیوے او دَ لارے په مینځ کښې به روانے وے نارینو ته به یې لار نه پریخودله لوپټه به یې نه اچوله یا به یې او گوپاندے

مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ وَالْحِكْمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

دَ اياتونو دَ الله تعالیٰ او حديث دَ نبی نه يقيناً الله تعالیٰ

هسے اويزانه كړے وه او چه بازار ياګرځے ته په تلله نو ځان په ئے خائسته كړو. نو افسوس دے په نن مسلمانانو ښځو باندے چه دا ټول كارونه دَ جاهليت ئے شورو كړے دی بلكه دَ هغے نه زيات شوے دی او ديته ګناه نه ويلے كيږی (والله المستعان و الی المشتكی). وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ هر كله چه دَ ناكاره اعمالو نه منع او كړه اوس په خائسته اعمالو سره امر وركوی او دَ دے نه معلومه شوه چه دَ زنانو دَ مونځو نو اصلی ځائے كورونه دی دَ دے وجے دَ قرن فی بيوتكن نه روستو ئے ذكر كړو. وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ په دے كښ بشارت دے چه الله تعالیٰ به په تاسو باندے مالی وسعت راولی نو زكوٰة به وركوئے او اكثر مال دَ زنانه دَ هغے زيورات وی نو معلومه شوه چه دَ هغے په كالو كښ زكوٰة فرض دے. وَاَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ دا تعميم بعد التخصيص دے يعنی ټولو او امرو باندے عمل كول او دَ ټولو منهياتو نه بچ كيدلو ته شامل دے او دا رنګ اشاره ده چه مخكښ بيان كړے شوے عملونو كښ اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول شرط دے. اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ الخ په دے كښ دَ تير شوے ذكر كړے شوؤ عملونو فائده بيانوی او دَ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ مفعول پټ دے (يعنی العمل منكم بهذه الاحكام) يعنی غواړی الله تعالیٰ ستاسو نه عمل كول په تير شوے احكامو باندے. لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ دا لفظ شامل دے باطلے عقيدے او اعمالو او اخلاقو دَ فسق و فجور او طريقے دَ منافقت ته هم ځكه چه منافقانو ته ئے اِنَّهُمْ رِجْسٌ توبه ۹۵ كښ ويلے دی او رجس عذابونو دَ دنيا او آخرت ته هم شامل دے. اَهْلَ الْبَيْتِ دَ لغت په لحاظ سره دَ دے معنیٰ ده لائق دَ شپے تيرولو نو اصل مصداق دَ دے ښځه (زوجه) ده لكه سورة هود ۷۳ كښ زوجه دَ ابراهيم عليه السّلام مراد ده او دلته هم اول صرف بيبيانو دَ نبی صلّی الله عليه وسلّم ته خطابات ذكر شويدی تو معلومه شوه چه اهلِ بيت نه اول بيبيانے مراد دی بيا روستو اولاد وغيره ته شامل دے، ځكه چه دويمه معنیٰ دَ اهلِ بيت دا ده چه كور ته دَ راتلو حق لری او دا صريح رد دے په شيعه ګانو باندے چه هغوی بيبيانے دَ رسول الله صلّی الله عليه وسلّم دَ اهلِ بيت نه خارج ګڼړی او دا دَ دوی جهل دے هاں كه رسول الله صلّی الله عليه وسلّم، حَسن او حُسين او فاطمه او علی رضی الله عنهم ته اهلِ البيت ويلے دی نو په دے كښ اشاره وه ديته چه لفظ دَ اهلِ بيت صرف بيبيانو پورے مه خاص كوئے. وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْرًا مخكښ ئے سلبی فائده ذكر كړه او دا ثبوتی فائده ده يعنی په دغه احكامو باندے عمل كول دوه (پاتے په بل مخ)

لَطِيۡفًا خَبِيۡرًا ﴿۳۴﴾ اِنَّ الۡمُسۡلِمِيۡنَ وَالۡمُسۡلِمٰتِ

باریک ځیزونه وینی او خبردار دے. یقیناً مسلمانان سړی او مسلمانانے زنانه

وَالۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَالۡمُؤۡمِنٰتِ وَالۡقٰنِتِيۡنَ وَالۡقٰنِتٰتِ

او مؤمنان سړی او مؤمنانے زنانه او تابعداری کوؤنکی سړی او تابعداری کوؤنکے زنانه

وَالصّٰدِقِيۡنَ وَالصّٰدِقٰتِ وَالصّٰبِرِيۡنَ وَالصّٰبِرٰتِ

او رشتیا ویونکی سړی او رشتیا ویونکے زنانه او صبر کوؤنکی سړی او صبر کوؤنکی زنانه

وَالۡخٰشِعِيۡنَ وَالۡخٰشِعٰتِ وَالۡمُتَصَدِّقِيۡنَ وَالۡمُتَصَدِّقٰتِ

او عاجزی کوؤنکی سړی او عاجزی کوؤنکی زنانه او صدقه ورکوؤنکی سړی او صدقه ورکوؤنکی زنانه

وَالصّٰٓئِمِيۡنَ وَالصّٰٓئِمٰتِ وَالۡحٰفِظِيۡنَ فُرُوۡجَهُمۡ

او روژه نیوؤنکی سړی او روژه نیوؤنکی زنانه او بچ ساتونکی عورتونو خپلو لره سړی

فائدے دی اوّل دَ رجس او رزائیلو نه بچ کیدل او دویم دَ طهارتِ باطِنیه او فضائیلو حاصلیدل او دا لوے فضیلت دے دَ اهلِ بیتو دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په شرط دَ عمل کولو سره په مخکښنی حکمونو باندے لیکن دَ دے نه مراد عصمت نه دے لکه چه شیعه ګان وائی۔

۳۴:۔ دا بل خطاب دے بیبیانو دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ته او هر کله چه دَ اعمالو بِنا په علم باندے ده او بغیر دَ علم نه عمل غلط وی دَ دے وجے نه په دے کښ دَ علم ترغیب ورکوی۔ او نصاب دَ علم ئے ذکر کړے دے مِنۡ اٰيٰتِ اللّٰهِ چه قرآن کریم دے۔ وَالۡحِكۡمَةِ مراد ترینه سنّت او حدیث دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دے وَاذۡكُرۡنَ مراد دَ دے نه لوستل او درس وتدریس کول دی۔ فِیۡ بُيُوۡتِكُنَّ په دے کښ اشاره ده چه درسګاه دَ زنانه دَ پاره دننه کمره او کوټه ده او دا لفظ متعلق دے په واذکرن پورے یا متعلق دے په یتلی پورے۔ لَطِيۡفًا خَبِيۡرًا په دے کښ اشاره ده چه الله تعالٰی پیژنی هغه څوک چه اهل دی دَ زوجیت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ پاره او کوم اعمال او احکام چه دَ دوی دَ شان سره مناسب دی او چه کوم اسباب دی دَ پاره دَ طهارت او دَ بچ کیدلو دَ رجس او پلیتئ نه۔

**فائده**:۔ دَ ۳۳ نه تر دے پورے اګرچه خطاب بیبیانو دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ته دے لیکن په دے احکامو سره زنانه دَ امت هم تبعًا مکلف دی ځکه چه اعلٰی ته حکم وی نو هغه ادنٰی ته هم شامل وی۔

وَالْحٰفِظٰتِ وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ

او بچ ساتونکي زنانه او يادوونکي الله تعالى لره ډېر او يادوونکي زنانه

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۳۵﴾

تيار کړې دے الله تعالى دَدوى دَپاره بخشش او ثواب لوے۔

ف ۳۵: په دے ايت کښ بشارت دے په جمع کولو دَلس صفاتو خاوندانو سره او هرکله چه تير شوے اياتو کښ احوال دَبيبيانو دَنبي صلى الله عليه وسلم ذکر کړو او هغوى ته ئے خاص بشارت ذکر کړو نو په دے ايت کښ دَ عامو نارينو او زنانو صفات او بشارت ذکر کوى او په دے کښ اشاره ده چه دا صفتونه په بيبيانو دَنبي صلى الله عليه وسلم کښ هم موجود وو۔ اول صفت اسلام يعنى هغه نارينه او زنانه چه په تابعدارئ دَ الله تعالى او دَرسول الله صلى الله عليه وسلم کښ عقيدةً او قولاً او عملاً پوره داخل وى۔ دويم صفت ايمان هرکله چه اسلام کله صرف ظاهرى انقياد ته ويلے کيږى نو په دے صفت سره ئے واضحه کړه چه انقياد باطنى پکښ پوره شته دے نو معلومه شوه چه په دے ايت کښ اسلام خاص دے او ايمان عام دے ځکه چه ايمان سره کله عمل وى او کله نه وى او اسلام سره په شرعى معنىٰ کښ ضرور ايمان قلبى وى او دا مغايرت رَدَ خصوص او عموم) دَ عطف دَپاره پوره دے۔ درَيم صفت قنوت دے دلته قنوت په معنىٰ دَ اخلاص دے يعنى کله په عمل يا دعوىٰ دَ ايمان کښ اخلاص نه وى نو دا صفت ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو۔ څلورم صفت صدق دے هرکله چه قنوت کله صرف طاعت ته ويلے کيږى اګرچه په دَروغو سره وى يا سکوت ته ويلے کيږى نو په صدق سره ئے ښکاره کړه چه په طاعت کښ صدق ملګرے دے۔ او سکوت دَ صدق ته نۀ کوى بلکه دَ دروغو نه ساکت دے اشاره ده چه دروغ ويل دَ مسلمان صفت نشى کيدے۔ پنځم صفت صبر دے هرکله چه صدق کښ دوام او هميشه والے ضرورى دے او چه رښتيا هميشه ويلے کيږى نو مصيبتونه او تکاليف پکښ راځى نو دَ هغے دَپاره ئے علاج صفت دَ صبر ذکر کړو۔ شپږم صفت خشوع ده او تفصيل دَ هغے په تفسير دَ سورة مؤمنون کښ ذکر شوے دے هرکله چه صبر بعض وخت دَ انسان طبيعت وى يا دَ کمزورئ دَ وجے نه صبر کوى نو خشوع ئے ذکر کړه يعنى سبب دَ صبر تواضع ده الله تعالى ته په زړه او اندامونو سره۔ اووم صفت تصدق کول په مال سره فرضى او نفلى هرکله چه دَ مالدارئ دَ وجے انسان دَ خشوع دَ صفت نه اکثر خالى وى بلکه تکبر کوى نو دَ هغے علاج ئے ذکر کړو چه راپاتے په بل مخ)

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ

او نه دی مناسب مؤمن سړی لره او مؤمنې زنانه لره کله چه فیصله کړیده الله تعالیٰ

وَرَسُوْلُهٗٓ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ

او رسول دَ هغه دَیو څیز دا خبره چه وی دِ دوی لره خوښه خپله

تصدّق په مال سره سبب او دلیل دَ خشوع دے. اتَم صفت صوم روژے نیول هرکله چه تصدّق بالمال کله بغیر دَ جذبهٔ ایثار نه وی او کله تصدّق کولو کښ نفسانی برخه وی نو دَ هغې دَ پاره یې صوم ذکر کړو دَ پاره دَ دے چه ایثار پیدا شی او دَ نفس هیڅ حظ (برخه) رانشی. نهم صفت حفظ الفروج دے هر کله چه مقصد دَ روژے نیولو کسر (ماتول) دَ شهوت دی نو دَ هغې نتیجه یې ذکر کړه چه خپل ځان دَ بد کارئ نه ساتل بلکه خپل عورتونه دَ بے ځایه ښکاره کولو نه. بچ ساتل. لسَم صفت ذکر الله دے هرکله چه دَ دے اعمالو سبب او باعث او خاص طور باندے دَ حفظ الفروج سبب دَ الله تعالیٰ ذکر کښ مشغولیدل دی نو ځکه په ذکر سره توجه الله تعالیٰ ته او کنټرول دَ اندامونو او دَ ژبے او دَ زړه حاصلیږی نو دا صفت یې په اٰخر کښ ذکر کړو او په سلا ایت کښ دَ ذکر کثیر بعض تفسیر ذکر کړیشوے کړے دی چه چا ټول کارونه خپل الله تعالیٰ ته اوسپارل نو هغه په المسلمین کښ داخل دے او چا چه اقرار اوکړو چه الله تعالیٰ زما رب دے او محمّد صلّی الله علیه وسلّم زما رسول او زړهٔ یې دَ ژبے نه خلاف نه وی نو هغه په المؤمنین کښ داخل دے او چا چه دَ الله تعالیٰ طاعت اوکړو په فرض کښ او نبی صلّی الله علیه وسلّم طاعت یې اوکړو په سنتو کښ نو هغه په القانتین کښ داخل دے او چا چه خپلے خبرے دَ دروغو نه. بچ اوساتلے نو هغه په والصادقین کښ داخل دے او چا چه صبر اوکړو په طاعاتو باندا او په مصیبتونو باندے نو هغه په الصابرین کښ داخل دے او چا چه مونځ کوؤ په داسے طریقه چه خپل ښی طرف ته او کس طرف ته څوک نه پیژنی نو دے په الخاشعین کښ داخل دے او چا چه هره هفته کښ یو درهم خیرات کوؤ نو دے په المتصدقین کښ داخل دے او چا چه په هره میاشت کښ ایام بیض روژے نیولے نو هغه په الصائمین کښ داخل دے او چا چه خپل عورت دَ حرامو نه. بچ اوساتلو نو هغه په الحافظین فروجهم کښ داخل دے او چا چه په پنځو مونځونو همیش والے کوؤ نو په الذاکرین کښ داخل دے او دَ بعضے سلفو صالحینو نه نقل دہ چه کوم اذکار او دُعاګانے په سنّت سره په مختلفو اوقاتو

أَمْرِهِمْ ۗ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ

په کار د دوی کښ او چا چه خلاف او کړو د حکم د الله تعالیٰ او د رسول د هغه نه نو یقینًا

ضَلَّ ضَلَالًا مُّبِينًا ﴿٣٦﴾ وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِي

ګمراه شو په ګمراهئ ښکاره سره. او کله چه ویل تا هغه چا ته

أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ

چه نعمت کړے دے الله تعالیٰ په هغه باندے او نعمت کړے تا په هغه باندے او ساته

عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللَّهَ وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ

د ځان سره بی بی خپله او ویره کوه د الله تعالیٰ نه او پټه ساتله تا په زړه خپل کښ

کښ ثابت دی په هغې باندے چه خوک همیشګیری کوی نو هغه په الذاکرین الله کثیرا کښ داخل دے۔

**فائده:** په دے صفتونو کښ درے صفتونه قلبی دی ایمان، قنوت، خشوع، دا عبادات قلبیه دی. او درے عبادات بدنیه ظاهریه دی اسلام (عام دے ټولو عبادتونو ته)، او صبر او صوم، او په دے کښ دوه عبادات لسانیه دی صدق او ذکر. او یو عبادات مالیه دے تصدق کول او یو عبادت د ترک المنکرات دے یعنی حفظ الفروج۔ مَّغْفِرَةً دا دلیل دے چه په دے عباداتو کښ هر عبادت سره ګناهونه بخلے کیږی. وَأَجْرًا عَظِيمًا دا دلیل دے چه هر یو عبادت سبب د لوے ثواب دے۔

۳۶:- په دے آیت کښ خطاب دے ټولو مؤمنانو نارینو او زنانو ته یعنی د الله تعالیٰ او د رسول د فیصلے او د نص په مقابله کښ خپله یا د بل چا رائے او اختیار مه چلوئ دا عصیان او ګمراهی ښکاره ده. او د مخکښ آیت سره ئے ربط دا دے چه تیر شوی صفات هله حاصلیږی چه د نص د قرآن او حدیث نه خلاف په بله رائے او قول باندے د عمل کولو نه ځان بچ کړیشی. لفظ مؤمن او مؤمنة د پاره د تعمیم د دے حکم دے. إِذَا قَضَى اللَّهُ هغه فیصلو او حکمونو ته شامل دے چه په قرآن کریم کښ دی. وَرَسُولُهُ او فیصلو او حکمونو ته شامل دے چه په سنت صحیحه سره قولاً او عملاً ثابت وی۔ أَمْرِهِمْ دا ضمیر راجع دے مؤمن او مؤمنة ته د وجه د عموم د هغې نه ځکه چه نکره په سیاق د نفی کښ واقع ده یا ضمیر راجع دے الله تعالیٰ او رسول ته.
وَمَنْ يَعْصِ دلته د عصیان نه مراد خپل رائے او اختیار مقدم کول دی په نص د قرآن او د سنت باندے۔ ضَلَالًا مُّبِينًا په مبین کښ اشاره ده (پاتے په بل مخ)

(پاتے په بل مخ)

مَا اللّٰهُ مُبۡدِیۡهِ وَتَخۡشَی النَّاسَ ۚ وَاللّٰهُ اَحَقُّ

هغه خبره چه الله تعالی ښکاره کول او ویره کوله ته د خلقو نه او الله تعالی ډیر حقدار دے

اَنۡ تَخۡشٰهُ ؕ فَلَمَّا قَضٰی زَیۡدٌ مِّنۡهَا وَطَرًا

چه د هغه نه ویره اوکړے نو هرکله چه پوره کړو زید د هغې نه حاجت

زَوَّجۡنٰکَهَا لِکَیۡ لَا یَکُوۡنَ عَلَی الۡمُؤۡمِنِیۡنَ

نو په نکاح سره مونږ درکړه تا ته د پاره د دے چه نه وی په مؤمنانو باندے

حَرَجٌ فِیۡۤ اَزۡوَاجِ اَدۡعِیَآئِهِمۡ اِذَا قَضَوۡا

تنګسیا په باره د نکاح کولو د بیبیانو د متبنٰی ګانو د دوی کښ هر کله چه پوره کړی دوی

مِنۡهُنَّ وَطَرًا ؕ وَکَانَ اَمۡرُ اللّٰهِ مَفۡعُوۡلًا ﴿۳۷﴾

د هغوی نه حاجت او دے حکم د الله تعالی پوره کړے شوے.

چه د دۀ په ضلال باندے یل دلیل ته حاجت نیشته بلکه عمل په خلافِ نص باندے دلیل د دۀ د ګمراهئ دے.

---

۳۷:. دا خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلّم ته ځکه چه لفظ د ان تخشاه او زوجنٰکها کښ خطاب هغۀ ته دے. ربط د مخکښ ایت سره دا دے چه هرکله تابعداریٔ د رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته ترغیب بیان شو نو په دے ایت کښ د هغۀ د تابعدارے فائدے بیانوی چه هغۀ د حرج نه بچ کیدل په تابعداریٔ د رسم شرکی کښ چه حرمت د ښځۀ د متبنٰی دے. او په دے ایت کښ د زید بن حارثه بعضے حالات ته اشاره ده هغۀ دا چه زید بن حارثه په وړوکوالی کښ د مور سره روان وُو په سفر باندے نو بد معاشانو په لاره کښ هغۀ لره د مور نه په زور سره واخستلو او د عکاظ میلے ته یٔے راوستلو او ویل یٔے چه دا مریٔے دے د خرڅ د پاره نو حکیم بن حزم چه وکیل تجارت وُو د خدیجة رضی الله عنها هغۀ د دوی نه په څلور سوه درهم باندے واخستو او د خدیجه رضی الله عنها سره اوسیدلو بیا چه د نبی صلی الله علیه وسلّم د خدیجة رضی الله عنها سره نکاح اوشو نو هغې زید نبی صلی الله علیه وسلّم ته او بخلو، په دغه زمانه کښ د زید پلار وغیره د هغۀ په طلب کښ ګرځیدل نو مکے معظٰمے ته راغلل نو زید یٔے د نبی صلی الله علیه وسلّم سره اومندلو نو د هغۀ نه یٔے طلب کړو هغۀ اوفرمائیل چه د زید نه تپوس اوکړئ که څوک سره په ځپله خوښه ځی نو ځه یٔے نه منع کوم

# مَا كَانَ عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيمَا

نه دے وی په نبي صلّی الله علیه وسلّم باندے تنګسیا په رسولو دَه ته حکم کښ

نو هغهٔ اُویل چه څه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په مقابله کښ پلار او رونړه ته خوښوم نو بیا نبی صلّی الله علیه وسلّم هغهٔ ته اُویل چه ماتهٔ ازاد کړے او دَ هغهٔ وخت دَرواج په موافق سره یٔ اُویل چه زید زما ځوئے شو یعنی متبنیٰ یٔ ترینه جوړ کړو دَ هغے ته روستو به دهٔ ته زید بن محمّد (صلّی الله علیه وسلّم) ویلے کیدلو. بیا نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ زید نکاح دَ زینب بنت جحش رضی الله عنها سره اوتړلو. لیکن دَ دوی دَ کورنئ تعلق پوره جوړ رانغے نو زید اوغوښتله چه زهٔ دے له طلاق ورکوم نو رسول الله صلّی الله علیه وسلّم هغهٔ لره دَ طلاق ورکولو نه منع کړو.

او رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته په وحی سره معلوم شوے وه چه روستو دَ طلاق ورکولو دَ زید ته نبی صلّی الله علیه وسلّم به دَ دے سره نکاح کوی. او په نکاح کولو کښ دَ منافقانو او مشرکانو دَ طرف نه دا بدنامه وه چه دَ ځوئ دَ ښځے سره یٔ نکاح اوکړو نو دَ دے بدنامے ته نبی صلّی الله علیه وسلّم یریدلو نو هغهٔ ته یٔ اُویل چه دے لره طلاق مه ورکوه. لیکن هغهٔ طلاق ورکړو او عدت یٔ تیر شو نو الله تعالیٰ دَ زینب نکاح دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم سره اوکړلو. أَنْعَمَ اللَّهُ په توفیق ورکولو دَ ایمان او په صحبت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم. وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ په ازادولو سره او په ځوئ جوړولو سره. أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ یعنی هغهٔ ستا نه مشوره طلب کړه په باره دَ طلاق دَ هغے کښ او دَ زوج نوم زینب رضی الله عنها وو. یعنی اګرچه په تا باندے بوج او تکلیف په وی لیکن دَ هغے سره ګذاره کوه. وَاتَّقِ اللَّهَ یعنی دَ هغے حقوق پوره اداکوه. وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ کوم څیز چه الله تعالیٰ ښکاره کړو هغهٔ نبی صلّی الله علیه وسلّم په زړهٔ کښ ساتلو او الله تعالیٰ خو دا ښکاره کړه چه هرکله زید طلاق ورکړو زینب رضی الله عنها ته او عدت یٔ هم تیر شو نو الله تعالیٰ دَ هغے نکاح دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم سره اوکړو. نو معلومه شوه چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په زړه کښ دا خبره وه دَ دے وجے نه چه الله تعالیٰ ورته دَ مخکښ نه خبر رالیږلے وؤ. وتَخْشَى النَّاسَ مراد دَ دے نه خشیتِ اعتقادی نه دے (چه په عقیده دَ تعظیم او تعبّد سره یره کوی ځکه دغه خو صرف دَ الله تعالیٰ نه کیدے شی لکه چه ولم یخش الا الله (توبه ۱۸) کښ مراد دہ) بلکه مراد دَ خلقو دَ ملامتیا او دَ طعنو نه ځان بچ کول دی ځکه چه دلته مفسرین دوه معنے کوی اول دا چه تا حیا کوله دَ خلقو نه. دویم دا چه یره کوله تا رپاتے په بل مخ)

# فَرَضَ اللّٰهُ لَهٗ ؕ سُنَّةَ اللّٰهِ فِى الَّذِيْنَ خَلَوْا

چه فرض کړیدے الله تعالیٰ په دهٔ باندے پشان دَ طریقې دَ الله تعالیٰ په هغه کسانو کښ چه تیر شویدی

دَ ملامتیا دَ خلقو نه. او وَتَخْشَى النَّاسَ علت دے دَ اَمسِك علیك دَپاره چه تا هغهٔ ته ویل چه طلاق مه ورکوه دا دَ دے وج چه یریدے دَ خلقو دَ طعن نه که تا ورته ویلي وے چه طلاق ورکړه او بیا دِ په نکاح باندے اغستله نو خلقو به ویل چه دائې دَ ځان دَپاره دَ هغهٔ دَ نکاح نه آزاده کړله یا علت دے دَ تخفي في نفسك دَپاره او بیائې هم دغه مطلب دے. وَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَاهُ، تفسیر سراج المنیر کښ ویلي دی چه دَ دے دا مطلب نه دے چه نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ الله تعالیٰ نه یره نه کوله بلکه حدیث صحیح کښ راغلي دی انا اخشاکم لله واتقاکم له بلکه معنیٰ دا ده چه دا سے حالاتو کښ چه یو طرف ته دَ خلقو نه یره کول وؤ او بل طرف ته دَ الله تعالیٰ نه ویره وی نو په دے کښ په دَ الله تعالیٰ نه یره کول مخکښ وی په یره کولو دَ خلقو باندے. (تنبیه) بعض مفسرینو په دے مقام کښ دا سے قصے لیکلے دی چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ شان سره نه خائیږی یعنی په زړه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم کښ محبت دَ زینب پیدا کیدل او زړه کښ دا تمنا کول چه زید زینب له طلاق ورکړی او زهٔ یې په نکاح سره واخلم وغیره نو دَ هغې په باره کښ په دے ایت کښ پخپله تردید موجود دے اول دا چه اَمْسِكْ عَلَيْكَ یې ویلي دی نو که دَ نبی دا سے محبت او تمنا وے نو پکار وو چه هغهٔ ته یې ویلي وے چه طلاق ورکړه. دویم مَا اللّٰهُ مُبْدِيْهِ که دَ رسول په زړه کښ دا محبت او تمنا وے نو ضرور الله تعالیٰ په هغهٔ ښکاره کړے وے ځکه چه الله تعالیٰ دَ هیچا نه یره نه کوی. دریم زَوَّجْنٰكَهَا لِكَىْ لَا .. اه که دَ هغهٔ محبت وے نو الله تعالیٰ به فرمائیلي وے زَوَّجْنَاكَهَا لِاَنَّكَ تُحِبُّهَا، (ستا دَ محبت دَ وج نه مِ په نکاح سره درکړه). دا رنګ محققینو مفسرینو هم په دغه قصّه باندے رد کړے دے تفسیر ابن کثیر کښ ویلي دی "چه ذکر کړیدی ابن ابی حاتم او طبری بعض آثار دَ سلف نه مونږ دَ هغې نه ځځکرځوؤ پس نه یې ذکر کوؤ". او تفسیر قرطبی کښ لیکلي دی چه بعضو مفسرینو روایت کړے دے چه نبی صلّی الله علیه وسلّم په ښځه دَ زید باندے مئین شو او بعضو بکواس کوؤنکو ویلي دی چه عاشق شو نو دا دَ هغهٔ چا نه صادریږی چه دَ نبی دَ عصمت نه جاهل وی یا سپک والے کوی دَ حرمت دَ نبی. بیا تفسیر قرطبی یو سوال ذکر کړیدے چه هرکله نبی صلّی الله علیه وسلّم ته معلومه وه چه زینب به دَ زید نه ضرور جدا کیږی نو بیا یې ورته ولے اُویل چه امسك علیك زوجك دا خو تناقض دے؟

مِنْ قَبْلُ ؕ وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَّقْدُورًا ﴿۳۸﴾

دَدهٔ نه مخکښ او دے حکم دَ الله تعالیٰ تقدیر مقرر کړېشوے

جواب ئے ذکر کړے دے چه دا دَ نورو مقاصدو صحیحو دپاره حجت قایمول وو عاقبت دَ خبرے پیژندل لکه چه الله تعالیٰ ته دَ یو کس باره کښ علم وی چه دے ایمان نه راوړی او بیا هم ورته دَ ایمان راوړلو امر کوی. فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا دَ زید رضی الله عنه دا ډیر لوے منقبت دے چه دَ هغهٔ نوم په قرآن کریم کښ لوستلے کیږی دَ بل صحابی دا صفت نیشته او علماؤ دَ دے حکمت دا ذکر کړے دے چه هر کله دَ دهٔ نسبت دَ زید بن محمد نه بدل کړیشو زید بن حارثه ته نو په دے سره دَ دهٔ زړه ته ډیر خفګان اورسیدلو نو دَ هغے دَ جبیرے دَ پاره دَ دهٔ نوم ئے په قرآن کښ نازل کړو. وَطَرًا مراد ترینه حاجت دَ یو ځائے کیدلو دَ بی بی سره او بیا طلاق ورکول دی ځکه چه په حدیث دَ مسلم کښ ثابت ده چه نزدیکت نه روستو ئے طلاق ورکړیدے او دے طلاق ورکولو کښ هم دَ زید ضرورت او حاجت پوره کیدل دی دَ دے وجے دَ هغے نه ئے تعبیر اوکړو په وطر سره. زَوَّجْنٰكَهَا دَ دے نه معلومه شوه چه دَ نکاح دَپاره ولی دَ نکاح پکار دے خو دا اختلافی مسئله ده. او په نسبت کښ الله تعالیٰ ته اشاره ده چه دَ دے نکاح الله تعالیٰ په آسمانونو کښ کړے دے لکه چه په حدیث دَ نسائی کښ راغلی دی چه دے به فخر کوؤ په نورو بیبیانو باندے چه الله تعالیٰ زما نکاح په آسمان کښ کړیدے او دا دَ نبی صلی الله علیه وسلم خصوصیت دے چه. لِكَیْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ اه دا لویه فائیده شرعیه ده په نکاح دَ زینب کښ چه هغه رد دَ شرک فی التحریم دے او تردید دَ رسم و رواج دَ مشرکانو دے چه هغوی به دَ متبنیٰ دَ ښځے سره نکاح کول همیشه دَپاره حرام ګڼړل.

س ۳۸ :- دا بل خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته په صیغه دَ غائب سره دَپاره دَ احترام. ربط دا دے هر کله چه نکاح دَ زینب کښ دَ خلقو دَ طعنو نه یره وه نو په دے آیت کښ ترغیب دے چه په دے نکاح کښ فریضهٔ دَ الله تعالیٰ مخلوق ته رسول دی چه هغه دَ رسم شرکی تردید کول دی نو نبی صلی الله علیه وسلم لره نه دی جائز چه په دے کار کښ هغهٔ هیڅ حرج محسوس کړی. اَلنَّبِیِّ مراد دَ دے نه زموږ نبی صلی الله علیه وسلم دے. حَرَجٍ مراد دَ دے نه تنګسیا او خفګان دے په تبلیغ دَ رسالت کښ. فِیْمَا فَرَضَ اللّٰهُ دَ دے نه مراد تبلیغ او دعوت دے چه فرض دے په انبیاؤ باندے لَهٗ په معنیٰ دَ عَلَیْهِ دے یا مراد دَ حرج نه ګناه دے په نکاح دَ زینب رضی الله عنها (پاتے په بل مخ)

الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ وَيَخْشَوْنَهٗ
دا هغه کسان دی چه رسوی پيغامونه دَ الله تعالٰی او ويريږی دَ هغه نه

وَلَا يَخْشَوْنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ
او نه ويريږی دَ هيچا نه سوا دَ الله تعالٰی نه او پوره دے الله تعالٰی

حَسِيْبًا ﴿۳۹﴾ مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَا اَحَدٍ مِّنْ
حساب کوونکے۔ نه دے محمد صلی الله عليه وسلم پلار دَ هيچا دَ

رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ
نارينو ستاسو نه ليکن رسول دَ الله تعالٰی دے او آخری دے

کښې لکه سورة اعراف ۲ کښې او فَرَضَ نه مراد تقدير دَ الله تعالٰی دے دَ دے نکاح دَ پاره دَ نبی صلی الله عليه وسلم، او لَهٗ په خپله معنٰی دے۔ سُنَّةَ اللّٰهِ مراد دَ دے نه طريقه دَ الله تعالٰی ده په ټولو انبياؤ عليهم السلام باندے دَ لرے کولو دَ حرج په تبليغ او دعوت کښې يا مراد دَ دے نه طريقه دَ وسعت ده په باره دَ نکاح کښې په مخکښنو انبياؤ عليهم السلام باندے لکه داؤد او سليمان عليهما السلام شو۔ او سُنَّةَ نه مخکښې حرف دَ کاف حذف دے يعنی کسُنَّة (ريښتان دَ طريقے) يا فعل سَنَّ پټ دے يا اِتَّبِعْ پټ دے۔ قَدَرًا تير شوی آيت کښې مَفْعُوْلًا ذکر کړو ځکه چه هلته مراد نکاح دَ زينب سره وُو او هغه پوره کړے شو او په دے آيت کښې قَدَرًا ذکر کړو ځکه چه فَرَضَ کښې معنٰی دَ تقدير ده۔ او مَقْدُوْرًا دَ تاکيد دَ پاره دے يعنی هيڅ تبديلی او خلاف په هغے کښې نه واقع کيږی۔

۳۹:۔ دا صفت يا بدل دے دَ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ نه او ذکر دَ شان دَ تير شوو انبياؤ دے په درے صفتونو سره۔ ۱ رسول دَ ټولو پيغامونو دَ الله تعالٰی چه په هغے کښې ئے هيڅ کمے زياتے دَ ځان نه نه دے کړے۔ ۲ دَ الله تعالٰی نه يره کول يعنی داخشيت الٰهی سبب دے دَ پاره دَ پوره دين رسولو۔ ۳ او بل چا نه يره نه کول يعنی دَ چا دَ ويرے نه په دين دَ الله تعالٰی کښې هيڅ خيانت، کِتمان، تلبيس نه کول۔ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا دا يره ده هغه کسانو ته چه پيغمبرانو باندے اعتراضونه کوی يعنی الله تعالٰی به دَ دوی سره حساب اوکړی چه په څه سبب سره دوی اعتراضونه کول۔

النَّبِیّٖنَ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمًا ﴿۴۰﴾

دَ پیغمبرانو ته او دے اللہ تعالیٰ په هر خیز باندے علم لرونکے۔

ف :- دا خطاب دے مؤمنانو ته او په دے کښ جوابونه دَ هغه اعتراضونو دی چه خلقو په نکاح دَ زینب رضی اللہ عنها په وجه سره په نبی صلی اللہ علیه وسلم باندے کول۔ اول اعتراض۔ چه دے نبی دَ خپل ځوئ دَ ښځے سره نکاح کړے ده؟

نو جواب اوشو مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ۔ یعنی دَ نبی په نارینه اولاد دکښ سړیتوب یعنی بلوغ ته هیڅ یو نه دے رسیدلے ځکه چه نارینه اولاد دئے په وړوکوالی کښ مړه شوی دی هاں لوڼړه ئے ځلور بلوغ ته رسیدلے وے او واده شوے وے،

او رِجَالِكُمْ کښ اشاره ده چه ستاسو نه هیڅوک دَ هغه ځوئے نشی جوړیدلے، نو پدے کښ نفی دَ حقیقی بالغ ځوئ او مجازی یعنی دَ متبنیٰ دواړو مراد ده۔ دوئیم اعتراض! چه څه ضرورت وو چه ده دَ زینب سره نکاح کوؤ اگرچه اِنکورئے نه ده خو خلق طعنونه کوی؟

جواب اوشو وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ یعنی دا مسئله (چه رد دَ رسم شرکی دے) رَسُول ضروری دی او دِے پیغمبر دے په ده پاندے دا رسول فرض دی۔ دریم اعتراض! څه ضرورت وو چه ده دا خبره رسوله بلکه دَ ده نه روستو به بل پیغمبر راغلے وے نو هغه به رسولے وے؟ جواب اوشو وَخَاتَمَ النَّبِیّٖنَ یعنی دِے آخری نبی دے دَ ده نه روستو بل نبی نه راځی۔ څلورم اعتراض چا ته علم دے چه بل نبی روستو نه راځی کیدے شی چه راشی؟ جواب اوشو وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمًا یعنی اللہ تعالیٰ ته علم دے او هغه دا خبر راکړے دے۔

**فائده**:- دَ آیت دَ مضمون او روندش نه صریح معلومه شوه چه خاتم النبین نه مراد دا دے چه دا آخری نبی دے دَ ده نه روستو بل نبی راتلونکے نیشته او دا رنگ په حدیث صحیح کښ راغلے دی "وانا خاتم النبین لا نبی بعدی" (ابو داؤد) او بل حدیث صحیح کښ دی "وانا العاقب والعاقب الذی لیس بعدہ نبی" او دَ دے نه علاوه ډیر احادیث شته نو معلومه شوه چه نبی صلی اللہ علیه وسلم دَ خاتم معنیٰ په آخر سره کړے ده۔ او دا رنگ په لسان العرب (کتاب دَ لغت) کښ ویلے دی چه "خاتم النبین آخرهم"۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا ﴿۴۱﴾

اے ایمان والو یادوئ الله تعالیٰ په یادولو ډیرو سره

وَّسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ﴿۴۲﴾ هُوَ الَّذِىْ

او پاکی وایئ د هغه صبائی او بیګایئ الله تعالیٰ هغه ذات دے

نو دا آیت قطعی نص دے په دے باره کښ چه زمونږ نبی آخری نبی دے د دهٔ نه روستو بل نوے نبی جوړیدونکے نیشته د دے نه انکار کول د قطعی نص نه انکار کول دی او دا ښکاره کفر دے او د عیسٰی علیه السلام په نزول باندے د آسمان نه احادیث متواتر راغلی دی لیکن د هغهٔ په راتللو سره ختم نبوت ته هیڅ نقصان نه رسی ځکه هغه تو ړمخکنے نبی دے او هر کله چه راشی نو نوے وحی په ورته نه راځی بلکه فیصله په زمونږ د نبی صلی الله علیه وسلّم په شریعت سره کوی۔ او د دے په خلاف کښ د بعض اهلِ علمو لغزشات ته اعتبار نیشته لکه ابن حجر هیتمی په فتاویٰ حدیثیه کښ د ابراهیم ابن النبی صلی الله علیه وسلّم د نبوت امکان ذکر کړے دے لکه چه مفسر آلوسی په هغه باندے رد کړیے۔ او دا رنګ تفسیر قرطبی کښ رد دے په کتاب الاقتصاد د غزالی باندے او مرزا غلام محمد ویلے دی چه خاتم په معنیٰ د مُهر دے یعنی زمونږ د نبی راتلل د نورو پیغمبرانو تصدیق دے اول جواب دا دے چه مخکښ ذکر شوه چه صحیح احادیثو کښے او د لغت په کتابونو کښ خاتم په معنیٰ د آخر دے۔ دویم جواب دا دے که خاتم په معنیٰ د مُهر شی نو مطلب دا دے چه دے آخری نبی دے ځکه چه مُهر په اول یا په مینځ کښ نه وی بلکه په آخر کښ وی او د مبرد قول دا دے چه خاتم فعل ماضی دہ یعنی ختم کړیدہ دے نبی سلسله د نورو پیغمبرانو او نبی د رسول نه عام دے نو هر کله چه ثابت شوه چه دے آخری د انبیاؤ دے او بل نبی د دهٔ نه روستو نشی راتللے نو لازمًا معلومه شوه چه رسول خو بالکل نشی راتللے۔

۴۱ ۴۲:۔ د دے آیت نه تر آخر د سورت پورے څلورم باب دے په دے کښ باقی پنځه خطابات دی نبی صلی الله علیه وسلّم ته ۴۵ ۴۸ ۵۰ ۵۲ ۵۹ کښ او اووه خطابات دی مؤمنانو ته ۴۱ ۴۲ ۴۹ ۵۳ ۵۶ ۶۹ ۷۰ کښ او تخویفات دی په اته آیاتونو کښ ۵۷ ۵۸ ۶۴ ۶۵ ۶۶ ۶۸ ۷۲ کښ او زجر دے منافقانو ته په سوال غیر ضروری باندے په ۶۳ کښ۔

په دے (۴۱ ۴۲) کښ خطاب دے مؤمنانو ته په دوه اوامرو سره۔ ذکر کثیر او تسبیح هر وخت۔ ربط د مخکښ آیت سره دا دے هر کله چه هغه وهمونه او اعتراضونه یې دفع کړل کوم چه په نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے خلقو کول

يُصَلِّيْ عَلَيْكُمْ وَمَلٰٓئِكَتُهٗ لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ

چې پورته کوی شان ستاسو په رحمتونو سره) او ملائیک د هغه په دعاګانو سره دے د پاره چې او باسی تاسو لره د تیارو نه

اِلَى النُّوْرِ ؕ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا ﴿۴۳﴾

رنړا ته او دے په مؤمنانو باندے خاص رحم کوونکے دے۔

نو په دے ایتونو کښ د شکونو او وهمونو د زائل کولو د پاره علاج ذکر کوی۔ ذِکْرًا، دا عام لفظ دے عبادات بدنیه مالیه قلبیه ، لسانیه ټولو ته شامل دے۔ كَثِيْرًا ډیر هغه دے چې په اخلاص د زړه او په سنت طریقے سره وی۔ د ابن عباس رضي الله عنهما نه مفسرینو روایت راوړے دے چې الله تعالیٰ په بندګانو باندے چې کومه فریضه ایخے ده نو د هغے انداز ئے مقرر کړے دے ماسوا د ذکر د الله تعالیٰ نه دویم دا چې دا ئے په هر حالت او په هر ځائے کښ لازم کړے دے په ولاړے په ناسته په ملاسته په شپه او ورځ ، او چه ، دریاب ، صحت ، بیماری په اقامت او سفر کښ وغیرها۔ وَسَبِّحُوْهُ دا خاص ذکر دے روستو د عام نه ۔ اشاره ده چې په ذکرونو کښ روستو د قرآن کریم نه افضل ذکر تسبیح او حمد دے او په دے کښ اشاره ده چې د الله تعالیٰ په هیڅ حکم باندے (او په نکاح سره ورکولو د زینب نبی صلی الله علیه وسلم ته) اعتراض کول جائز نه دی۔ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا د دے دواړو وختونو فضیلت ډیر دے د دے وجے نه ئے دا خاص ذکر کړل نور اوقات هم مراد دی یا مراد د دے نه ورځ او شپه ده او مراد د تسبیح نه سبحان الله ویل په ژبه باندے سره د عقیدے نه او دا رنګ مونځ کول ته شامل دے۔

۴۳: په دے ایت کښ سبب دے د پاره د ماقبل یعنی ذکر او تسبیح د دے وجے نه کوئے چې هغه په تاسو باندے سره د ملائکو نه صلاة رالیږی یا دا نتیجه او تفریع ده یعنی هر کله چې تاسو هر وخت د الله تعالیٰ ذکر او تسبیح کښ مشغول یئ نو الله تعالیٰ په تاسو باندے صلوٰة رالیږی او صلوٰة د الله تعالیٰ او ملائک سبب دے د پاره د وتلو د ظلماتو نه نور ته او هغه بیا سبب دے د پاره د خاص رحمتِ الٰهیه۔

صلوٰة په اصل کښ رعایت او عنایت کول دی او هغه د الله تعالیٰ د طرف نه رحمت کول او نیک ذکر د هغه په بندګانو کښ اشاعت کول او د ملائکو د طرف نه استغفار غوښتل دی ځکه چې ملائک مستجاب الدعوات دی (یعنی د هغوی دُعاګانے قبلیږی) او دا استغفار سبب د رفع درجات دے او د مؤمنانو د طرف نه دُعا غوښتل په الفاظو د صلوٰة سره یا صرف دُعا غوښتل د پاره د رحم د الله تعالیٰ د ظلمات، مراد د دے نه تیارے د منافقت او اعتراضونه او طعنونه کول دی په (پاتے په بل مخ)

تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ ۚ وَاَعَدَّ لَهُمْ

پیشکشی دَ دوی به په هغه ورځ چه ملاقات کوی الله تعالیٰ ته سلام به وی او تیار کړے دے دوی لره

اَجْرًا كَرِيْمًا ﴿۴۴﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ

ثواب عزت والا اے نبی یقینًا لیږلے یئے مونږ ته

شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ﴿۴۵﴾ وَّدَاعِيًا

بیان کوونکے او زیرے ورکوونکے او ویره ورکوونکے او بلنه کوونکے

اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ وَسِرَاجًا مُّنِيْرًا ﴿۴۶﴾

الله تعالیٰ ته په حکم دَ هغه سره او چراغ بلیدونکے۔

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ

او زیرے ورکړه مؤمنانو ته چه یقینًا دوی لره دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه

اهل حق بانددے او کفر و شرک او جهل ته هم شامل دے۔ او نُوْر نه مراد یقین او کامل ایمان او توحید او سنت دے۔ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا، كَانَ دلالت کوی په دوام او استمرار بانددے او لفظ دَ بالمومنین دلیل دے چه سبب دَ رحمت وصف دَ ایمان دے

۴۴:۔ په دے کښ بشارت اخرویه دے۔ تَحِيَّة هغه قول ته وائی چه سبب دَ خوشحالئ دَ مخاطب وی نو هغه دُعا لفظ دَ حَيَّاكَ الله ته شامل دے او السلام علیکم ویلو ته شامل دے او دَ الله تعالیٰ نسبت دَ خائسته صفاتو ته شامل دے۔ په دے ایت کښ مراد الفاظ دَ خوشحالئ دی او دَ سلام نه مراد سلامتیا او مبارکی ورکول په سلامتیا باندے دے.

۴۵ ۴۶ ۴۷ ۴۸ په دے ایاتونو کښ نبی صلی الله علیه وسلّم ته پنځه خطابات دی او دَ نبی صلی الله علیه وسلّم پنځه نومونه ذکر دی۔ شَاهِدًا مراد دَ دے نه شهادت دَ هغه دے په اُمت خپل باندے په رسالت او تبلیغ سره یا مراد دَ دے نه بیان کوونکے دے او دا دواړه معانی لِسان العرب کتاب کښ لیکلے دی۔ دویمه معنیٰ دلته غوره ده ځکه چه روستو دوه صفتونه تشریح دَ بیان کولو دی۔ وَدَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ، مدعی ئے ورته نه دے ویلے ځکه چه مدعی هغه وی که خپله دعویٰ پر بیږدی تو پر نه خودلے شی او هرچه داعی دے نو هغه ته دَ دعوت پر نه خودلو اجازت نیشته۔ بِاِذْنِهٖ په دے کښ اشاره ده چه نبی صلی الله علیه وسلّم دَ ځان نه هیڅ نه دی جوړ کړی۔ سِرَاجًا شمس یا قمر ئے ورته نه دی وئیلی ځکه هغوی چه غائب شی نو بیا ئے فائده دَ رڼا نه وی

فَضْلًا كَبِيْرًا ﴿٤٧﴾ وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ

فضل . لوی دے . او خبره مهٔ منه دَ کافرانو او منافقانو

وَدَعْ اَذٰىهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ

او پریګده ضرر دَ دوی او ځان سپاره په الله تعالیٰ باندے او پوره دے الله تعالیٰ

وَكِيْلًا ﴿٤٨﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَكَحْتُمُ

ذمه وار . اے ایمان والو هر کله چه نکاح اوکړئ

الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ

دَ مؤمنو زنانو سره بیا طلاق ورکړئ تاسو هغوی لره مخکښ دَ

تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ

یو ځائے کیدلو نه دَ هغوی سره نو نیشته تاسو لره په هغوی باندے هیڅ عدت

اوسَراج نه بل څوک خپل ځان دَپاره رڼرا اغستلے شی اګرچه سراج مړ شی لیکن رڼرا ئے باقی وی او دغه شان دَرسول الله صلّی الله علیه وسلّم دے. مُنِيْرًا مراد دا چه رڼرا ئے تیزه اوچمک دار ده که چرے دَ سراج په رڼرا کښ کموالے وی نو دَ انسان طبیعت پرے خفه وی. وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ دا ذکر دَ حال دَ هغه کسانو دے چه دَ سراج منیرنه ئے رڼرا حاصل کړے ده اودَ دے معطوف علیه محذوف دے یعنی ته لحاظ کوه دَ احوالو دَ امت خپل. وَلَا تُطِعِ دا ذکر دَ حال دَ هغه کسانو دے چه محروم دی دَ رڼرا نه. اوهر کله چه په سبب دَ نکاح دَ زینب سرهٔ دَ کافرانو او منافقانو دَ طرف نه (اذٰی) تکلیف ورکول وو نبی صلّی الله علیه وسلّم ته اوپه هغه پسے بد ے خبرے کول ډیر شول نو دلته ئے اوفرمائیل وَدَعْ اَذٰىهُمْ یعنی دَ دوی بد وئیل اوطعنو ته کول په هیڅ کښ مه شماره صبر پرے کوه جواب هم مه ورکوه.

مفسر قرطبی دَ قاضی ابوبکر نه نقل کړیدی چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم اووه شپیته [٦٧] نومونه دی او بل روایت ئے ذکر کړے دے چه دَ هغه یوسل اتیا [١٨٠] نومونه دی لیکن چا چه دَ هغه یوکم سل [٩٩] نومونه لیکلے دی نو دا دوی تشبیه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم کوی دَ الله تعالیٰ سره.

تَعْتَدُّوْنَهَا ۚ فَمَتِّعُوْهُنَّ وَسَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا

چه شمارے تاسو هغې لره نو سامان ورکړئ هغوی لره او رخصت کړئ هغوی لره په رخصتې

جَمِيْلًا ۝﴿٤٩﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّآ اَحْلَلْنَا لَكَ اَزْوَاجَكَ

خائسته سره. اے نبی یقیناً حلال کړے دی مونږ تا لره بیبیانے ستا

الّٰتِيْٓ اٰتَيْتَ اُجُوْرَهُنَّ وَمَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ مِمَّآ

هغه چه ورکړے دی تا مهرونو دَ هغوی. او هغه وینځې چه مالک ئې دے ښے لاس ستا دَ هغه زیاتونه چه

۴۹:- دا خطاب دے مؤمنانو ته. ربط دا دے چه دَ کافرانو او منافقانو پشان مه کیږے په اذیت ورکولو کښ بلکه هغه بیبیانے چه تاسو ترینه هیڅ فائده نه ده حاصل کړې چه په هغوی باندے ستا هیڅ حق هم نه دے پاتے شوے لیکن دَ هغوی سره په احسان کوئ او اذیت به نه ورکوئ نو معلومه شوه چه دَ چا نه تاسو فائده دیتی حاصلوئ هغه ته به په هیڅ طریقه اذیت او تکلیف نه ورکوئ دَ دے وجه نه دلته حال دَ غیر مدخول بها ذکر کړو ځکه چه هغه ادنیٰ درجه ده نو معلومه شوه چه دَ مدخول بها سره به په طریق اولیٰ سره احسان کوئ.

فائدے:- ایت کښ اشاره ده چه طلاق مخکښ دَ نکاح نه نیشته لکه چه روایت دَ جابر رضی الله عنه دے لا طلاق قبل النکاح "نیشته طلاق ورکول مخکښ دَ نکاح نه".

اوکه دا سے اووائي چه هره هغه ښځه که ما ورسره نکاح اوکړو نو هغه دِ په ما طلاقه وی، او دیته دَ کلما طلاق وئیلے کیږی دا مسئله اختلافیه ده په مینځ دَ صحابه کرامو او دَ أئمو مجتهدینو کښ لیکن غوره قول دا دے چه په هغې سره هم طلاق نه واقع کیږی.

دارنګ په دے ایت کښ اشاره ده چه به غیر دَ جماع نه عدت په طلاق سره نه لازمیږی او په بابت دَ وجوب دَ عدت کښ په خلوت صحیحه سره حدیث مرفوع صحیح زما په علم کښ نیشته. اجتهادی مسئله ده.

فَمَتِّعُوْهُنَّ، دا شامل دے نصف مهر ته که چرے مخکښ دَ طلاق نه مهر مقرر کړے وی. اوکه نه وی مقرر نو صرف جوړه جامه، لوپټه، پیزار او پړونے وغیره مراد دے.

او سراح جمیل دا دے که څه ئې ورکړے وی نو دَ حُسنِ اخلاق تقاضا دا ده چه هغه ترینه واپس نه غواړی.

أَفَآءَ اللّٰهُ عَلَيْكَ وَبَنٰتِ عَمِّكَ وَبَنٰتِ

مهربانی کړې ده الله تعالیٰ په تا باندې ر د مال د کافرانو نه) او لونړه د تره ستا او لونړه

عَمّٰتِكَ وَبَنٰتِ خَالِكَ وَبَنٰتِ خٰلٰتِكَ الّٰتِيْ

د ترورګانو ستا او لونړه د ماما ستا او لونړه د ماسي ګانو ستا هغه چه

هَاجَرْنَ مَعَكَ ۫ وَامْرَاَةً مُّؤْمِنَةً اِنْ وَّهَبَتْ

هجرت یې کړې وی تا سره او زنانه مؤمنه که چرې او بخښي

نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ اِنْ اَرَادَ النَّبِيُّ اَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا ۗ

خپل ځان نبی صلی الله علیه وسلم ته که چرې غواړی نبی چه په نکاح سره واخلی هغې لره

خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۭ قَدْ عَلِمْنَا

(دا) صرف تا لره ده نیشته نورو مؤمنانو لره یقینًا پوهه یو مونږه

مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِيْٓ اَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ

په هغه څيز چه فرض کړې دې مونږ په دوی باندې په باره د بيبيانو د دوی کښې او د هغه وينځو کښې چه مالک دی

اَيْمَانُهُمْ لِكَيْلَا يَكُوْنَ عَلَيْكَ حَرَجٌ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ

ښی لاسونه د دوی د پاره د دې چه نه وی په تا باندې تنګسيا او دې الله تعالیٰ

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝۵۰ تُرْجِيْ مَنْ تَشَاۗءُ مِنْهُنَّ وَتُــْٔوِيْٓ

بخښونکې رحم کوونکې ـ (د نمبرنه) روستو کولې شې ته هغه بی بی چه غواړې ته د دوی نه او یو ځائې کولې شې

ن۵۰ :. دا خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته په وسعت د منکوحاتو او د وينځو سره د پاره د دے چه په دين رسولو کښې هغه ته اسانتيا راشی. په دے ايت کښې ئې څلور قسمه ذکر کړيدی اول قسم هغه زنانه چه نبی صلی الله علیه وسلم هغې سره په عوض د مهر سره نکاح کوی يا ئې کړيږے. دويم قسم هغه چه په مالِ غنيمت کښې حاصله شوے وی او بيا ئې ازاده کړے وی او نکاح ئې ورسره کړے وی يا بغير د ازادولو او د نکاح کولو نه په طور د وينزے د هغې نه فائده اخلی لکه صفيه، جويريه، ريحانه رضی الله تعالیٰ عنهن. دريم قسم د پلار د طرف نه خپلوانې يعنی د تره يا د ترور لونړه او د مور د طرف نه خپلوانې يعنی د ماما يا د ماسی لونړه، د اول نه مراد قريشيه دی او د دويم نه مراد د بنی زهره قبيلې دی او هجرت ئې د دے وجے نه (پاتے په بل مخ)

اِلَيۡكَ مَنۡ تَشَآءُ ؕ وَمَنِ ابۡتَغَيۡتَ مِمَّنۡ عَزَلۡتَ

دَ ځان سره هغه چه غواړې، او هغه بي بي چه طلب کوې ته ريو ځايۍ کيدل) دَ هغې دَ هغه قِسم نه چه جدا کړې دی تا ردَ نمبر نه)

فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكَ ؕ ذٰلِكَ اَدۡنٰٓى اَنۡ تَقَرَّ اَعۡيُنُهُنَّ

نو نيشته گناه په تا باندے ، دا ښه نزدے ده چه يخيگی به سترگے دَ دوی

شرط کړيدے چه به غير دَ هجرت نه ايمان ناقص وی او پيغمبر دَ پاره کمالِ ايمان والا پکار ده او بعضِ اهل علمو دا شرط خاص کړے دے په نبی صلّی الله عليه وسلّم پورے او دا قول خطيب شربينی په سراج المنير کښ ذکر کړے دے او بعضو علماؤ ويلے دی چه دا دَ ټولو مؤمنانو دَ پاره دے په دليل دَ ايت ۷۲ انفال سره۔

**فائده:۔** عم (تره) او خال (ماما) ئې مفرد ذکر کړو ځکه چه هغه په معنیٰ دَ جنس دے او عمات او خالات ئې جمع ذکر کړے دی ځکه چه عمهٔ او خالهٔ دَ پاره دَ جنس نه استعماليږی۔ څلورم قسم هغه زنانه چه ځپل ځان نبی صلّی الله عليه وسلّم ته او بخی بغير دَ مهر نه او بغير دَ ولی نه۔ اِنۡ اَرَادَ، دَ دے نه مراد قبلول دی ځکه چه بغير دَ قبلولو نه نکاح نه صحيح کيږی اگرچه په لفظ دَ هبه سره وی، خَالِصَةً لَّكَ يعنی حلال کيدل دَ بے شماره بيبيانو په دے څلورو قسمونو کښ خاص دی په نبی صلّی الله عليه وسلّم پورے يا متعلق دے په څلورم قسم پورے فقط۔ ليکن اول قول غوره دے۔ مِنۡ دُوۡنِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ يعنی نورو مؤمنانو لره زيات دَ څلورو نه بيبيانے نه دی جائز او دا رنگ بغير دَ مهر او دَ ولی نه نکاح دَ يو ښځے سره هم دوی له نه دے جائز۔ او دَ دے ايت دَ لاندے تفسير قرطبی او سراج المنير کښ دَ نبی صلّی الله عليه وسلّم ډير خصوصيات ذکر کړی دی۔

فَرَضۡنَا عَلَيۡهِمۡ۔ په باره دَ ازواجو کښ په مؤمنانو باندے مَهر او گواهان دَ نکاح او وَلی دَ نکاح فرض دے او په باره دَ وينزو کښ نفقه شرط ده۔

لِكَيۡلَا يَكُوۡنَ، دا متعلق دے دَ احللنا يا دَ خالصةً سره او دا حکمت دے دَ کثرة زوجاتو دَ نبی صلّی الله عليه وسلّم يعنی دَ بيبيانو په ډير والی سره دَ ډيرو خاندانونو سره مصاهرت (سخرگنی) پيدا شی تو دَ دين تبليغ اسان شی بله دا چه دا بيبيانے به عامو زنانو ته دَ دين پوهه ورکوی خاص طور سره په هغه مسئلو کښ چه دَ نارينه نه پردے زنانه دَ هغې تپوس نشی کولے۔

**فائده:۔** بعض منکرينو دَ رسول صلّی الله عليه وسلّم په باره کښ ويلی دی چه دا نبی ډير شهوت والا وؤ دَ دے وجے نه ډيرے ښځے ئې کړے وے؟ جواب دا دے چه اگرچه دَ نبی صلّی الله عليه وسلّم شهوت دَ څلورو زرو نارينو

وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَآ اٰتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ؕ

او نه په خفه کیږی او رضا به وی په هغه څه چه ته- ورکوے دوی ته دا ټولے

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِىْ قُلُوْبِكُمْ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

او الله تعالیٰ عالم دے په هغه څه چه په زړونو ستاسو کښ دی او دے الله تعالیٰ

عَلِيْمًا حَلِيْمًا ﴿۵۱﴾ لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنْۢ بَعْدُ

پوهه او صبر والا- نه دی حلال ستا دپاره زنانه روستو دَ دے نخلورو قسمونو نه

سره برابر وؤ رلکه چه بعض احادیثو کښ ذکر دی) لیکن سرهٔ دَ دے نه په نهو ازواجو باندے اکتفاء کول دَ هغهٔ دَ عفت او صبر دلیل دے خو دَ ډیر والی دَ بیبیانو حکمت دَ تبلیغ دَ دین نه حرج لرے کول دی۔

۵۱ :- دا دَ مخکښ خطاب سره متعلق دے یعنی هغه ایت کښ فراخی په باره دَ نکاح کښ دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَپاره ذکر کړے شوه او س په دے ایت کښ فراخی په باره قَسَم دَ بیبیانو دَ هغهٔ کښ ذکر کوی دَپاره دَ دے چه په نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے حرج نه وی۔ قسم، دَ ازواجو په عام مؤمنانو باندے واجب دے یعنی که دَ یو سړی دَیو نه ډیرے بیبیانے وی نو په حقوق اداکولو کښ به عدال کوی او په شپه تیرولو کښ به هم مساوی حصه هر یوے لره ورکوی هاں نزدیکت حسبِ خواهش دے په هغے کښ مساوات امکان نه لری لکه چه دَ زړه بے اختیاره محبت کښ برابری هم دَ انسان دَ وس نه بهر ده۔ په نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے قسم ر دَ دے ایت په تقاضا) واجب نه وو لیکن سرهٔ دَ دے نه به هغهٔ اهتمام دَ قسم کوؤ۔ تُرْجِىْ، مراد دا دے که نمبر دَ یو بی بی روستو کوے نو تا لره اختیار دے۔ وَ تُؤْوِىْٓ، مراد دا چه یو بی بی ځان ته بے نمبره راغواړے نو هم ستا اختیار دے۔ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ، مراد دا دے که یوه بی بی تا دَ نمبر نه ویستلے وی او بیا ئے په نمبر کښ داخلول غواړے نو هم ستا اختیار دے۔ لکه سوده رضی الله عنها خپل نمبر عائشه رضی الله عنها ته بخلے وؤ او د نمبر نه وتلے وه۔ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى، په دے کښ فائدے بیانوی چه هر کله په تا باندے قسم واجب نه دے او سرهٔ دَ دے نه دَ هغوی حقوق برابر اداکوے نو په دے کښ درے فائدے دی اوله فائده دا چه اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ یعنی هر کله چه ته په خپله رضا دَ هغوی حق اداکوے نو هغوی په خوشحاله وی۔ تَقَرَّ ماخوذ دے دَ قرار نه یعنی دَ خوشحاله انسان سترګے په ځائے ولاړے وی ډیرے نه اوړی راوړی او دَ غمژن سترګے ډیرے اوړی راوړی یا ماخوذ دے دَ قر مقابل دَ حر (ګرمی) نه (پاتے په بل مخ)

وَلَآ اَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ اَزْوَاجٍ وَّلَوْ اَعْجَبَكَ

او نه دی جائز چه بدلے کړے په دوی سره نورے (قسمونه) بیبیانے اګرچه خوشحاله دې تالره

حُسْنُهُنَّ اِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

خائست دَ هغوی سوا دَ هغے نه چه مالک دے خ لاس ستا او دے الله تعالیٰ

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ رَّقِيْبًا ﴿۵۲﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

په هر خیز باندے نګهبان ۔ اے ایمان والو

ع ۶

یعنی دَ خوشحاله انسان سترګے یخ وی او دَ غمژن سترګے ګرمے وی ۔ دویمه فائده وَلَا يَحْزَنَّ یعنی که څه وخت جدا شی نو خفګان به نه ورځی ۔ دریمه فائده وَيَرْضَيْنَ یعنی که نه لرحق ادا کوے نو هم به رضا وی یعنی وائی به چه زما خو په دۀ باندے څه زور یا وجوب نیشته ۔ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۔ په دے کښ اشاره ده دَ زړه بے اختیاره محبت ته چه دَ یوے بی بی سره زیات وی او بلے سره کم وی لیکن په حقوقو کښ فرق نه کوی نو په دے کښ هیڅ مواخذه نیشته لکه زیات محبت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دَ عائشه رضی الله عنها سره وو ۔

۵۲ :۔ دا بل خطاب دے نبی صلّی الله علیه وسلّم ته ۔ دَ دے ایت دَ حکم په باره کښ اختلاف دے یو قول داد دے چه دا منسوخ دے او محکښ (۵۰) ایت یئے ناسخ دے مقصد دادے چه کوم وخت دا ایت نازلیدلو نو دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په نکاح کښ نهه بیبیانے وے نو اوبلے شوچه دَ دے نهو نه زیاتے بیبیانے تالره جائز نه دی او دا رنګ دَ دوی په بدل کښ هم نه دی جائز نو بیا څه موده روستو (۵۰) ایت نازل شو چه تاله هر څومره بیبیانے چه کوے نو جائز دی، په دے قول باندے دا اعتراض دے چه ناسخ منسوخ کښ قاعده داده چه منسوخ مقدّم وی او ناسخ مؤخر وی او دلته خو برعکس دے جواب دادے چه دلته تقدیم تاخیر په ترتیب دَ لیکلو کښ دے په نزول کښ نه دے ۔ دویم قول دادے چه دا ایت منسوخ نه دے بلکه مراد دَ ایت دادے چه دَ دغه څلورو قسمونو نه (کوم چه ۵۰ کښ ذکر شویدی) علاوه نور قسمونه تاله جائز نه دی بلکه یهودیه، نصرانیه، مجوسیه، وثنیه او چه مؤمنه وی خو هجرت یئے نه وی کړے او نه اعرابیه او نه غریبه او دا قول نقل کړے دے خطیب په سراج المنیر کښ عکرمه نه او ضحاک او ابی بن کعب او ابو صالح او مجاهد ۔ مِنْۢ بَعْدُ یعنی سوا دَ دغه څلورو قسمونو نه

لَا تَدۡخُلُوۡا بُيُوۡتَ النَّبِيِّ اِلَّاۤ اَنۡ يُّؤۡذَنَ

مهٔ ننوځئ کورونو دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم مګر هغه وخت چه اجازت اوکړېشی

لَـكُمۡ اِلٰى طَعَامٍ غَيۡرَ نٰظِرِيۡنَ اِنٰٮهُ ۙ وَلٰـكِنۡ

تاسو ته دَپاره دَ خوراک نه یه یئ انتظار کوؤنکی دَپخیدلو دَ خوراک لیکن

اِذَا دُعِيۡتُمۡ فَادۡخُلُوۡا فَاِذَا طَعِمۡتُمۡ فَانْتَشِرُوۡا

کله چه او بللے شئ نو ورننوځئ نو کله چه خوراک اوکړئ نو خواره شئ

وَلَا مُسۡتَاۡنِسِيۡنَ لِحَدِيۡثٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكُمۡ

( او نه به اساریګے ) مینه کوؤنکے دَ خبرو کولو یقینًا دا کار

كَانَ يُؤۡذِى النَّبِىَّ فَيَسۡتَحۡىٖ مِنۡكُمۡ

دے چه خفه کوی نبی صلّی الله علیه وسلّم لره نو حیا کوی ستاسو نه

وَاللّٰهُ لَا يَسۡتَحۡىٖ مِنَ الۡحَـقِّ ؕ وَاِذَا

او الله تعالیٰ حیا نه کوی دَ بیان دَ حق نه او کله چه

سَاَلۡتُمُوۡهُنَّ مَتَاعًا فَسۡـئَلُوۡهُنَّ مِنۡ وَّرَآءِ

غواړئ دَ دوی نه سامان نو غواړئ تر یته شا ته

حِجَابٍ ؕ ذٰ لِكُمۡ اَطۡهَرُ لِقُلُوۡبِكُمۡ

دَ پردے نه ، دا طریقه ښهٔ پاک ساتونکے ده زړونو ستاسو

---

وَلَاۤ اَنۡ تَبَدَّلَ بِهِنَّ ، مراد دَ تبدیل نه دا دے چه یوه بی بی طلاقه کړی او دَ هغې په بدله کښ دَ بلے سره نکاح اوکړی. او دا رنګ دَ عرب جاهلیت طریقه داوه چه دَ یو بل سره به ئے بیبیانے بدلولے.

رَقِيۡبًا ، عالم چه هر وخت حالاتو ته نظر کوی چه دَ هغه نه پرده او پټیدل هم نه کیږی. نو دَ دے خطاب حاصل دا دے چه دَ دے اقسامو نه علاوه په نکاح کولو سره دعوت دَ دین کښ تنګسیا راځئ وسعت نه راځئ دَ دے وجه نه منع دی.

وَقُلُوْبِهِنَّ ؕ وَمَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ

او زړونو د دوی لره او نه دی جائز تاسو لره چه خفه کړئ رسول الله لره

وَلَآ اَنْ تَنْكِحُوْٓا اَزْوَاجَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖٓ اَبَدًا ؕ

او نه په نکاح کوئ د هغه د بيبيانو سره روستو د مرګ د هغه نه هيچرے ،

اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا ﴿۵۳﴾

يقينًا دا په نيز د الله تعالیٰ لوے ناکاره کار دے .

س۵۳ :- دا خطاب دے مؤمنانو ته - په دے ايت کښ اته نواهي او اوامر ذکر دی او دا اداب د طعام د دعوتِ وليمے او د ضيافت دی د نبی صلی الله عليه وسلّم په کورونو کښ او عمومًا د نورو مسلمانانو په کورونو کښ هم - او دا رنګ مسئله د حجاب (پردے) ده - او په اول کښ مقصد دا دے چه نبی صلی الله عليه وسلّم د دعوت و تبليغ په کار کښ مشغول دے نو بے فائدے مجلسونو سره د هغه اوقات مه ضائع کوئ. او دا رنګ چه بے پردے کښ هر څوک کورته داخليږی نو په دے سره هم د انسان زړه ته خفګان رسيږی او د دين د دعوت په کار کښ لوے حرج پيدا کيږی. تفصيل د ادابو دا دے اول ادب په صيغه د نهی سره چه د نبی صلی الله عليه وسلّم کورونو ته بے د اجازت نه مه داخليږئ، او دا حکم د عامو مؤمنانو په باره کښ هم دے لکه سورۃ نور ۲۷ کښ ذکر شويدی او تخصيص د طعام کښ اشاره ده چه اجازت نه د دخول هم بغير د سخت ضرورت نه مه غواړئ - دويم ادب غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰىهُ ، دا په طريقه د نهی سره دے يعنی دومره وختی (د وخت نه مخکښ) مه داخليږئ چه طعام پوخ شوے نه وی او تاسو د هغې په انتظار کښ ناست يئ او په دے کښ کور والا ته هم تکليف دے او دا مخکښ تلل د مدعو انسان په حرص د خوراک باندے دليل دے اِنٰىهُ، اِنا مصدر دے په معنیٰ د پخيدو سره دے - دريم ادب وَلٰكِنْ اِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا ، يعنی بغير د دعوت نه هم په طريقه د طفوليت سره مه داخليږئ ځکه چه بغير د دعوت نه د چا طعام خوړل ګناه دے حديث کښ يئ د هغه تشبيه د سارق او مغير (لوټ کوونکی) سره ورکړے ده - څلورم ادب فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا يعنی د خوراک د فراغت نه روستو زر واپس کيدل او خوريدل پکار دی د استراحت د پاره حصاريدل نه دی جائز - پنځم ادب وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ دا عطف دے په غير ناظرين باندے يعنی روستو د خوراک نه د ګپ شپ د پاره هم مه حصاريږئ -

إِنْ تُبْدُوْا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوْهُ فَإِنَّ اللّٰهَ كَانَ

که چرے ښکاره کوئ تاسو څه څیز یا ئې پټ کوئ نو یقیناً الله تعالیٰ په

بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۵۴﴾ لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِيْٓ

هر څیز باندے ښه پوهه دے. نیشته ګناه په دوی (زنانو) باندے په

دَ عائشه رضی الله عنهانه روایت دے چه دا دَ درونبارو او دَ ناراستو په رد کښ دے او په دے کښ دَ داعی او دَ مدعو دَ دواړو دَ وخت دَ ضایع کولو نه بچ کیدل دی. إِنَّ ذٰلِكُمْ اه، دا علت دَ پاره دَ تیر شوے احکامو دے. وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيِیْ، استحیاء صفت دَ الله تعالیٰ دے دَ هغهٔ دَ شان سره مناسب بغیر دَ تشبیه او دَ تاویل نه، دا صفت کله ثبوتی راځی لکه حدیث کښ وارد دی چه "ان الله تعالی حیی کریم" او کله سلبی خصوصی راځی لکه په دے جمله کښ. شپږم ادب وَإِذَا سَأَلْتُمُوْهُنَّ مَتَاعًا اه، یعنی که دَ بیبیانو دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم یا دَ نورو زنانو نه څه ضروری تپوس کوئ یا څه ضروری څیز ترینه غواړئ نو دَ دیوال او دَ دروازے دَ شا نه نه غواړئ او دَ دے نه معلومه شوه چه په کور باندے دروازه یا پرده لګول ضروری دی او واجب دی. او دا ایت په باره دَ نزول دَ حجاب کښ دے تفسیر قرطبی کښ ویلے دی چه لفظ دَ مَتَاعًا عام دے دنیوی او دینی ټولو ضروریاتو ته شامل دے نو معلومه شوه چه دَ ضرورت دَ وجے نه دَ پردو زنانو سره خبرے کول جائز دی. ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ دا ئې فائده دَ شپږم ادب ذکر کړه او اطهر ئې ځکه اوئیل چه کله که یو انسان متقی دَ یو زنانه سره محتاج خبرے کوی کیدے شی چه زړه کښ ئې څه وسوسه راشی لیکن چه محتاج نه وی نو زړونه دَ دواړو به دَ وسوسو نه بالکل پاک وی. اووم ادب وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ، یعنی په هیڅ طریقه نبی صلّی الله علیه وسلّم ته تکلیف مه ورکوئ. اتم ادب وَلَا أَنْ تَنْكِحُوْا أَزْوَاجَهٗ اه، یعنی هغه زنانه چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په نکاح کښ وی دَ هغهٔ تر وفات پورے او دَ هغهٔ دَ وفات نه روستو هم دَ هغوی سره نکاح کول حرام دی او بعض اهلِ علمو شرط لګولے دے چه صرف هغه بیبیانے چه نبی صلّی الله علیه وسلّم ورسره دخول کړے وی او دَ دے یو وجه داده چه دوی اُمهات المؤمنین دی او دویمه وجه داده چه دا به بیبیانے وی دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په جنّت کښ دریمه وجه دا ده چه زوجه خو دَ اخری خاوند سره به وی په جنت کښ او څلورمه وجه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم احترام او شرافت دے. نو معلومه شوه چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په وفات سره نکاح دَ هغه نه دے منقطع شوے لیکن دَ دے نه دلیل نیول دَ هغهٔ په حیات باندے (چه هغه ته حیاتِ دنیویه باطل پرست خلق وائی) دا ناجائز دی.

س۵۵:- دا ایت متعلق دے دَ تیر شوی ایت سره یعنی کوم منهیات (پاتے په بل مخ)

آبَآئِهِنَّ وَلَآ اَبْنَآئِهِنَّ وَلَآ اِخْوَانِهِنَّ وَلَآ

په باره دَ پلارانو دَدوی او نه په ځامنو دَ دوی او نه په ورنړو دَدوی او نه

اَبْنَآءِ اِخْوَانِهِنَّ وَلَآ اَبْنَآءِ اَخَوٰتِهِنَّ وَلَا

په ورېرونو دَ دوی کښې او نه په خوریونو دَ دوی کښې او نه

نِسَآئِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ وَاتَّقِيْنَ اللّٰهَ

په زنانه مؤمنو کښې او نه په هغه چا کښې چه مالک وی ښی لاسونه دَ دوی او ویره دِ کوی دَ الله تعالیٰ نه

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ شَهِيْدًا ﴿۵۵﴾

یقیناً الله تعالیٰ په هر څیز باندے حاضر ناظر دے.

چه په دغه ایت کښې بیان شول په هغې باندے عمل کول یا خلاف کول که ښکاره وی اوکه پټ وی نو الله تعالیٰ په هغې باندے خبردے جزا یا سزا به ورکوی۔

۵۵:۔ هرکله چه مخکښې ایت کښې حجاب کول دَ زنانه فرض شول یعنی نارینه به حجاب ته دننه نه ورداخلیږی نو په دے ایت کښې دَ هغې نه دَ بعضِ کسانو استثناء ذکر کوی. یعنی دا مذکوره کسان دَ پردے دننه په حال دَ خلوت کښې داخلیدے شی پلار که نسبی وی اوکه رضاعی وی. ځوئے که نسبی وی اوکه رضاعی وی دارنګ رور او رواره او خوریئے اوعامے زنانه مسلمانانے او دَ کافروزنانو نه به پرده کوی. او مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ، نه وینزے مراد دی او دَ بعض اهل علمو په نیز مریئان په کښې هم داخل دی دَ وجے دَ کثرتِ طواف نه (یعنی خدمت دَپاره تلل راتلل)۔

فائده ع ۱:۔ رواره ئې په خوریئُ باندے مخکښې ذکر کړو ځکه چه پلار دَ رواره محرم دَ ښځې دے او پلار دَخوریئُ محرم دَ ښځې نه دے۔

فائده ع ۲:۔ ترونه او ماماګان ئې نه دی ذکر کړی. دَ اکثر اهلِ علمو په نیز هغوی هم په دے کښې داخل دی اشارةً ځکه چه بنی الأخ (رواره) محرم دے دَ ترور دَ پاره نو تره هم محرم شو دَ ویرے دَپاره او بنی الاخت (خوریئے) محرم دے دَ ماسی دَپاره نو ماما هم محرم شو دَ خورزے دَپاره او دَ بعضِ په نیز باندے تره او ماما په دے حکم کښې داخل نه دی لکه چه سخر او ښزے وغیره هم په دے کښې داخل نه دی۔

فائده ع ۳:۔ فرق په مینځ دَ دے ایت او دَ ایت سورة نور ۳۱ په مضمون کښې دا دے چه په سورة نور کښې دَ هغه کسانو ذکر کول مقصد دے چه هغوی ته زینت ښکاره کول جایز دی برابره خبره ده که خلوت کول ورسره

إِنَّ اللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ ۚ

یقینًا اللہ تعالیٰ او ملائیک دَ هغه صلوٰة (درود) وائي په نبی صلی الله علیه وسلّم باندے

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ صَلُّواْ عَلَيْهِ وَسَلِّمُواْ

اے ایمان والو صلوٰة وائي په هغه باندے او سلام وائي

تَسْلِيمًا ﴿٥٦﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُؤْذُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ

سلام پوره۔ یقینًا هغه کسان چه خفه کوی الله تعالیٰ او رسول دَ هغه

جائزوی او که نوی جائز او په دے ایت کښ مراد هغه کسان دی فقط چه خلوت کول ورسره جائز دی او دوی لر دی په نسبت دَ هغوی سره۔

۵۶:۔ دایل خطاب دے مؤمنانو ته په دے ایت کښ ذکر کوی عزت او شرافت او منزلت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم په ملاء اعلیٰ کښ او دغه عزت فرض کوی په ملاء ادنیٰ باندے دَ دے دَپاره چه هیڅوک دَ هغهٔ نبی دَ ذات او دَ هغهٔ دَ بیبیانو په باره کښ هیڅ ناکاره فکر هم په زړه کښ رانولی داتائید دے دَ تیر شوی حکم۔ صلاة دَ الله تعالیٰ په نبی باندے رحمتِ خاصه کول، عزت ورکول، دَ گناهونو ته معصوم ساتل، او مغفرت کول او لوئے درج ورکول دی او صلاة دَ ملائیکو دَ هغهٔ دَپاره دُعاګانے غوښتل دَ هغهٔ اعزاز او احترام کول او مغفرت طلب کول دی۔ او دَ دے دواړو ته یو مشترک حال ته هم صلاة ویلے کیږی چه دَ هغې ته تعبیر کیدے شی په (اعتنا بالشان) سره یعنی عظمت شان دَ هغهٔ او شاباشے او آفرین ویل په هغهٔ باندے۔ صَلُّوا عَلَيْهِ داصیغه دَ امر ده په فرضیت باندے دلالت کوی او په فرضیت دَ درود کښے درے اقوال دی اول داچه په عمر کښ یو ځل فرض دے دویم داچه دَ موځ په آخره قعده کښ فرض دے دریم داچه دَ هغهٔ دَ نوم سره ویل فرض دی۔ او مراد دَ دے نه صرف دُعا نه ده بلکه هغه الفاظ دَ درود مراد دی په دلیل دَ روایت دَ کعب بن عجره او ابوحمید الساعدی او نور صحابه کرامو رضی الله عنهم سره نقل دی چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه تپوس کړے شوے وو په وخت دَ نزول دَ دے ایت کښ چه سلام کول خو مونږ ته رستا نه) پیژندلے دی یعنی السلام علیك ایها النبی ورحمة الله وبرکاته لیکن صلوٰة به په تا باندے په کومه طریقے سره وایو نو هغهٔ ورته تعلیم ورکړو دَ هغه الفاظو کوم چه په آخره قعده کښ لوستلے کیږی۔ (تنبیه) الفاظ دَ درود به هغه معتبر وی کوم چه په (پاتے په بل مخ)

لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَاَعَدَّ لَهُمْ

لعنت کړے دے په دوی باندے الله تعالیٰ په دنیا او اخرت کښ او تیار کړے دے د پاره د دوی

عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿۵۷﴾ وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ

عذاب ذلیلوونکے. او هغه کسان چه خفه کوی مؤمنان سړی

صحیح احادیثو سره نقل وی ذکوموالفاظوچه نقل نیشته لکه درودتاج درود لکهی یا الصلوٰة علیك یارسول الله نو دَدے لوستل منع دی ځکه چه بناءَ عبادانو او اذکارو په نقل او په اتباع باندے ده. دارنگ کوم احادیث چه صحیح نه دی نو دَ هغے الفاظو نه هم ځان ساتل ضروری دی په دے مقام کښ امام قرطبی په خپل تفسیر کښ دَ ابن عربی نه ډیر مفید کلام نقل کړے دے چه دَ هغے معنیٰ داده، ابن عربی وائی "دَ دے روایاتو نه بعض ضعیف دی او اصح هغه دے چه امام مالک رحمة الله روایت کړے دے نو په هغے باندے اعتماد کوئے او نور روایتونه چه په هغے کښ زیادت دَ لفظ رحمت وغیره راغلے دے دَ درود سره قوی نه دی او یقینًا لازم دی په خلقو باندے چه نظر ډِکوی په باره دَ دین کښ لکه چه نظر کوی په مالونو کښ او دوی نه اخلی په تجارتونو کښ عیبناک اشرفی بلکه غوره ګوی کړه اشرفی نو دارنگ نشی اغستلے کیدے په روایاتو کښ مگر هغه چه صحیح ثابت وی دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه سند دَ هغے دا ځکه چه داخل نشی په دروغو کښ په نبی صلی الله علیه وسلم باندے، نو دے به په فضیلت لټوی او اُلټه به په نقصان بلکه خسران مبین کښ پریوځی" (انتهی). سَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا مراد دَدے نه تحیه د اسلام ده چه السلام علیك ایها النبی ورحمة الله وبرکاته او دارنگ داخل دی په دے کښ تابعداری کول دَ هغهٔ او دَ هغهٔ ځایسته صفتونه کول. او په سلام کښ ئے تاکید په تسلیمًا سره ذکرکړو مراد ترینه تسلیم شرعی دے او په صلوا کښ ئے تاکید ذکر نه کړو ځکه چه هلته تاکید موجود وؤ په مخکنے جملے سره چه ان الله وملائکته یصلون علی النبی نو بیا تاکید ته ضرورت نیشته.

۵۷:- په دے ایت کښ تخویف دے په عدم احترام دَ الله او دَ رسول سره روستو دَ ذکر کولو دَ احترام د هغهٔ نه. ایذا دَ الله تعالیٰ نسبت کول دی هغهٔ ته دَ ولد او دَ شریک او دَ ښځے او توصیف دَ هغهٔ دَ صفتونو او اسماؤ سره لکه چه یهودیانو ویل ید الله مغلولة، ان الله فقیر. او دارنگ هر قسم شرک کول او دَ هغه دَ صفتونو نه انکار کول او دَ هغهٔ تشبیه کول دَ مخلوق سره، او مخالفت کول (پاتے په بل مخ)

وَالْمُؤْمِنٰتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوْا فَقَدِ احْتَمَلُوْا

او مؤمنې زنانه په غیر د جرم نه چه دوی کړے وی نو یقیناً پورته کړه دوی (په ځان باندے)

بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿۵۸﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ

بد نامه او ګناه ښکاره - اے نبی اُووایه

دَ هغهٔ دَ اوامرو او دَ نواهی ته هم شامل دے۔ او حدیث دَ ابو هریره رضی الله عنه کښې دی چه هغه څوک الله تعالیٰ ته کنځل کوی چه دَهر ته یعنی زمانے ته دَ خیر او دَ شر نسبت کوی نو دا دَ ربوبیت صفت ورکوی دهر ته۔ او رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته ایذاء ورکول په اقوالو سره دا ده چه هغهٔ ته ساحر، کاهن، شاعر، مجنون وغیره وائی او دا رنګ دَ هغهٔ صفتونه دَ الله تعالیٰ سره مشابه کوی یا په هغهٔ باندے اعتراضونه او طعنونه کوی۔ او ایذاء په اعمالو کښې دا ده چه په اُحد کښې دَ هغهٔ سر مبارک او مخ مبارک او غاښ مبارک زخمی کړے او مات کړے وُو او په مکه کښې دَ هغهٔ دپاسه یې لری او کلیے دَ څناورو اچولے وے او دَ هغه نوره بے عزتی یې کړے وه او دا رنګ ایذاء په عملونو کښې دَ هغهٔ دَ سنّت طریقے نه خلاف کول او دَ هغهٔ په سنّت باندے دَ بل عالم، شیخ، استاد، پیر وغیره طریقے مخکښې کېښول دی۔

فِي الدُّنْيَا اشاره ده چه په دنیا کښې به دَ دوی نه داسے کارونه کیږی چه اسباب دَ لعنتونو به وی۔

۵۸:۔ په دے کښې هم تخویف دے په تکلیف رسولو سره مؤمنانو ته که سړی وی او که زنانه وی۔ اذیت دَ اهلِ ایمان په اقوالو او افعالو دواړو سره حرام دے اقوال دا دی کنځل کول، توهین کول، غیبت کول، بهتان تړل په هغوی باندے، دَ نسب په وجه سره سپکول وغیره او افعال دا دی وهل دَ هغوی، هغوی ته سپک کتل۔ په مؤمنانو زنانو پسے ګرځیدل او هغوی ته کتل دَ هغوی بے پردے کول وغیره۔ قرطبی ویلے دی چه الله تعالیٰ اذیت دَ الله او دَ رسول کفر ګرځولے دے او اذیت دَ مؤمنانو یې ګناهِ کبیره ګرځولے دے۔ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوْا په دے کښے اشاره ده چه دَ مؤمنانو نه کله کله داسے جرم اوشی چه دَ هغې قولی یا فعلی تعزیر یا حد ورکولے شی. په دے ایت کښې لوئے تخویف دے شیعګانو او روافضو او دشمنانو دَ صحابه کرامو ته چه خه په اعتماد کولو سره په موضوعی او ضعیف تاریخی روایتونو سره په پیغمبر او صحابه کرامو پسے بد رد وائی۔

لِّاَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ

بیبیانو خپلو ته او لونړو خپلو ته او بیبیانو دَ مؤمنانو ته

يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ۭ ذٰلِكَ

چه راوېزان کړی دَ ځان دَپاسه دَ لویو پړونو خپلو نه دا ډیره

اَدْنٰٓى اَنْ يُّعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ

نزدے دہ چه دوی به او پیژندلے شی نو ته به شی تنګولے او دے الله تعالیٰ

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۵۹﴾ لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ

بخنه کوونکے رحم کوونکے. که چرے منع نه شول منافقان

۵۹:. دا بل خطاب دے نبی صلّی الله علیه وسلّم ته. هرکله چه دَ اذیت دَ ایمان والو نه منع اوکړے شوه اوس دَ دفع دَ اذیت دَپاره طریقه ذکرکوی او دا مختص دے په زنانو پورے یعنی په وخت دَ سترکولو دَ زنانو کښ منافقان فاسقان به دوی ته اذیت نشی ورکولے لکه چه په دے ایت فَلَا يُؤْذَيْنَ کښ ئے (سبب) ذکر کړے دے. بیبیانے دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په وخت دَ وفات دَ هغهٔ کښ نهه وے. او لونړه دَ هغهٔ زینب، رقیه، ام کلثوم، فاطمه رضی الله تعالیٰ عنهن وے. يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ دا حکم په هغه وخت کښ دے چه دوی دَ خپل حاجت او دَ ضرورت دَپاره دَ کور نه بهر اوځی. مفسر قرطبی لیکلے دی چه دَ جاهلیت په وخت کښ به دَ زنانو مخونه ښکاره وؤ او بهر به ضرورت دَپاره وتلے نو په دے ایت کښ حکم اوشو چه مخونه به پټه وی. او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه قرطبی او خطیب شربینی او نورو مفسرینو روایت کړے دے چه طریقه دَ جلباب (پړونے) اغوستلو دا ده چه ټول سر او مخ او بدن ترخپو پورے په پټ ساتی صرف یوه سترګه به ښکاره وی او بل روایت کښ دواړه سترګے ئے ویلے دی. معلومه شوه چه دَ مخ پټول هم واجب دی. او جلباب برابره خبره دَه که پړونے وی یا بورقه وی یا اوګد قمیص وی خو چه سر او مخ او خپے پټوی. ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يُّعْرَفْنَ یعنی دَ ستر په سبب سره به پیژندلے کیږی چه دا ښځه اصیله او شریفه زنانه ده، ویټزه او فاحشه ښځه نه ده نو هیڅوک به ئے نشی تنګولے.

وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْمُرْجِفُوْنَ

او هغه کسان چه په زړونو د دوی کښ مرض دے او دروغ خبر خوروونکی دی

فِي الْمَدِيْنَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُوْنَكَ

په مدینه کښ نو ضرور اوبه لمسوم تالره د دوی جنګ ته بیا به نشی اوسیدے دوی تاسوسره

فِيْهَآ اِلَّا قَلِيْلًا ۞ مَّلْعُوْنِيْنَ ۚ اَيْنَمَا ثُقِفُوْٓا

په هغے کښ مګر لږ. لعنت به کړے شوے وی کوم ځائے چه او موندلے شی

اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا ۞ سُنَّةَ اللّٰهِ

او به نیولے شی او اوبه وژلے شی په وژلو سره. پشان د طریقے د الله تعالیٰ

فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ

په هغه کسانو کښ چه تیر شوے دی د دوی نه مخکښ، او چرے اوبه نه مومے ته طریقه

اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ۞ يَسْـَٔلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ۭ

د الله تعالیٰ لره بدلی. تپوس کوی ستا نه خلق په باره د قیامت کښ

۶۰ تا ۶۱ تا ۶۲ په دے ایاتونو کښ زجر او تخویف دنیوی دے منافقینو ته د یارہ د تاکید د تیر شوی حکم. المنافقون دا درے ایتونه عطف د صفت دے په صفت باندے او ذات یو دے یعنی منافقان چه د هغوی په عقیده کښ نفاق دے یعنی کفر دے او د هغوی په زړونو کښ مرض دے یعنی میلان پردو ښځو ته او د هغوی تنګول او هغوی پسے دروغ پراپیګنډے کونکی دی یعنی د مؤمنانو د پریشان کولو د یارہ غلط خبرونه خوروی یا په مؤمنانو باندے د بدنامے لګولو خبر خوروی نو دا ټول صفتونه د اهل نفاق دی. لَنُغْرِيَنَّكَ ضرور مسلط به کړو تالره د دوی په قتال کولو او تیزی، ترغیب او امر به در کړو تاته د دوی په قتلولو سره.

سُنَّةَ اللّٰهِ یعنی چاچه د انبیاؤ مخکښنو ارجاف کړے دے په هغوی باندے ئے طعنونه اعتراضونه کړے دی نو الله تعالیٰ هغوی مغلوب ملعون کړی دی او د دنیا عذابونه ئے ورکړے دی. په دے ایاتونو کښ ئے تخویف مؤکد کړے دے په اووه طریقو سره.

قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَمَا يُدْرِيْكَ

ته اُوايه يقينًا علم دَ هغې دَ الله تعالیٰ سره دے او څه خبر تا له خبر درکولے شي

لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا ﴿۶۳﴾ اِنَّ اللّٰهَ

ر په باره دَ قيامت کښ) يقينًا قيامت دے نزدے . يقينًا الله تعالیٰ

لَعَنَ الْكٰفِرِيْنَ وَاَعَدَّ لَهُمْ سَعِيْرًا ﴿۶۴﴾

لعنت کړے دے په کافرانو باندے او تيار کړے دے دوی له او لمبو والا

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا اَبَدًا ۚ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۶۵﴾

هميشه به وی دوی په هغې کښ هميشه نه به مومی . بچ کوونکے او نه امدادی .

۶۳ :. دا هم زجر دے منافقينو ته . هرکله چه دوی په عذاب سره او يرولے شول نو دوی دَ قيامت په باره کښ تپوسونه شوروکړل دَپاره دَ تلبيس اچولو په مؤمنانو باندے او دَپاره دَ چپ کولو دَ نبی صلی الله عليه وسلّم دَجواب نه . وَمَا يُدْرِيْكَ په دے کښ استفهام انکاری دے او مفعول حذف دے معنیٰ دا "څه شے خبر درکولے شي په باره دَ وخت دَ قيامت کښ" . يعنی سوا دَ الله تعالیٰ نه هيڅوک تا ته وخت دَ قيامت نشی خودلے . لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا دا مستقل کلام دے قريبا مذکر صيغه ده ځکه چه مراد دَ دے نه فی زمن قريب دے او دا ظرف زمان دے او امام بخاری وئيلی دی چه دا لفظ واقع شی دَپاره دَ مؤنث په طريقه دَ توصيف يا اخبار نو دا به مؤنث وی يعنی قريبة او کله چه واقع شی په طريقه دَ ظرف يا بدل نو مذکر به راځی . فائده :. کوم ځائے چه وما يدريك ذکر کړے وی نو هلته علم نه وی ورکړے شوے لکه وخت دَ قيام ساعة او کوم چه ما ادراك ذکر کړے شوے وی نو هلته علم ورکړے وی لکه احوال او هيبتونه دَ قيامت .

۶۴ ۶۵ ۶۶ ۶۷ ۶۸ په دے آيتونو کښ تخويف اخروی دے په اته طريقو سره . لعنت ، سعير ، خلود ، ابد ، لا يجدون وليا ، ولا نصيرا ، ارمان په اطاعت دَ الله او رسول پسے . براءت دَ الهۀ باطلو نه .

تُقَلَّبُ ډير اړول راړول لکه غوښه چه ږوتلے شی . اَطَعْنَا اللّٰهَ وَاَطَعْنَا الرَّسُوْلَ هرکله چه دَ دے سورت مقصد ترغيب اطاعة الله والرسول وو نو دَ هغې په مناسبت سره ئې دا تخويف ذکر کړو . او دا تمنا په دے سبب سره ده چه دَ دوی يقين راغے چه نجات صرف په اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه کښ دے .

يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ

په دغه ورځ کښې اړولے راړولے به شي مخونه د دوی په اُور کښې وائي به دوی

يٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا اللّٰهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا ﴿٦٦﴾ وَقَالُوا

هائے ارمان دے چه تابعداری کړے وے مونږ د الله تعالیٰ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم ۔ او وائي به دوی

رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا

اے ربه زمونږه یقیناً مونږ تابعداری کړے وه د سردارانو خپلو او غټانو خپلو نو ګمراهان ئے کړو مونږ

السَّبِيلَا ﴿٦٧﴾ رَبَّنَآ آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ

د حق لارے نه ۔ اے ربه زمونږ ورکړے دوی ته دوچنه د عذاب نه

وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا ﴿٦٨﴾ يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ

او لعنت اوکړه په دوی باندے لعنت لوے ۔ اے ایمان والو

سَادَتَنَا مراد د دے نه هغه پیران او ملایان دی چه دوی ته ئے دعوت د کفر او شرک او بدعاتو ورکړے وُو او دوی د هغوی تقلید کړے وُو ۔ كُبَرَآءَنَا مراد تربینه اقتدار والا دی چه په رعیت کښې ئے د فسق و فجور او خلاف د کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم نه احکام او قوانین جاری کړے وی او رعیت د هغوی تابعداری کوی ۔ فَأَضَلُّونَا دغه تقلید سبب او ګرځیدو د منع د اتباع د حق نه ۔ السَّبِيلَا الف لام په کښې عهدی دے لار د توحید او د سنت مراد ده ۔ ایت اګر چه صریح دے په تقلید کولو د ګمراهانو کښې لیکن دلالۃً په کښې هغه تقلید شخصی داخل دے چه یو عالم خطا شویوی اجتهاداً او مقلّد د هغهٔ ته معلوم شی چه دا قول د دهٔ خلاف دے د قرآن او سنّت نه یعنی بے دلیله دے لیکن بیا هم هغه قول نه پریږدی نو دا هم تقلید مذموم دے ۔ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ ممکښې د دے سبب ذکر کړو چه دوی خو بخپله هم ګمراهان وو او مونږ ئے هم ګمراهان کړے وو نو دوه ګناهونه شول ۔ لَعْنًا كَبِيرًا هر کله چه د عا مو ګمراهانو د پاره عام لعنت وُو چه په ۶۴ کښې ذکر شوید ے نو د دوی د پاره ئے د خاص لعنت دُعا اوکړه چه هغه لوے او ډیر لعنت دے ۔

امَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَىٰ فَبَرَّأَهُ اللَّهُ

مه کیږئ پشان دهغه کسانو چه تکلیفونه ئې رسول موسٰی علیه السلام ته ورکړی وو نو پاک کړو هغه لره الله تعالیٰ

مِمَّا قَالُوا وَكَانَ عِندَ اللَّهِ وَجِيهًا ﴿٦٩﴾

دهغې نه چه دوی ویل او دے وو په نیز د الله تعالیٰ محترم عزتمند -

۶۹: دا بل خطاب دے مؤمنانو ته ۔ هرکله چه ذکر شوه سزا د اذیت ورکونکو نبی صلی الله علیه وسلّم ته او معلومه شوه چه دا عادات د کافرانو او د منافقانو دی نو اوس منع کوی مؤمنانو لره د ایذاء د رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه او د تشبیه د یهودیانو نه ۔ لَا تَكُونُوا مه کیږئ په اذیت ورکولو کښ دے رسول ته ۔ یعنی دځ نه اذیت مه رسوئ لکه چه منافقانو ورته اذیت ورکړے وو چه "زینب سره نکاح کول دا د زنگور سره نکاح کول دی"۔ او نبی صلی الله علیه وسلّم صدقات تقسیم کول نو ذوالخویصره ویلے وو "اے محمد! انصاف کوه په تقسیم کښ انصاف د او نکړو"۔ بل روایت کښ دی دوی اویل ما ارید بها وجه الله، او د دے قسم نور طریقے د اذیت هم دی. كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَىٰ - ایذا موسٰی علیه السّلام ته یهودو چه انکار او کړو دوی د قتال نه او اویل "اذهب انت وربك فقاتلا انا هٰهنا قاعدون"، او دے ته اشاره ده په سورة صف ۵ کښ ۔ دویمه ایذاء دا وه چه په هغهٔ باندے ئې بدنامه لګولے وه چه دهٔ خپل رور هارون علیه السّلام قتل کړے دے ۔ دریمه هغه ده چه امام بخاری حدیث د ابوهریره رضی الله عنه نقل کړیدے چه موسٰی علیه السّلام د بنی اسرائیلو نه جدا په تنهائی کښ غسل کوؤ او دوی به په یوائے غسل کوؤ نو دوی اویل چه موسٰی علیه السلام زمونږ نه جدا د دے وجے نه لاهی چه دهٔ باندے مرض د اُدرة (خصیے پرسیدل) دے یا په دهٔ باندے مرض د برص (برګې) دے ۔ نو الله تعالیٰ د هغهٔ براءت او کړو د دے بدنامے نه یعنی یو ځل ئې یوائے لامبل او جامے ئې په کڼه باندے کیخودلے نو کڼے هغه جامے او تختولے نو دے ورپسے تیز روان شو او عصا ورسره وه کڼه ئې ټکنیس او دے ورپسے مجلس د بنی اسرائیلو ته اورسید او هغوی اوکتل نو په دهٔ باندے هیڅ مرض نه وؤ او موسٰی علیه السلام هغه کڼه په عصا باندے او هله او کیړے ترینه را واغستلے ۔ په دے باندے سوال دا دے چه موسٰی علیه السلام ولے بربنډ غسل کوؤ او بیا الله تعالیٰ د دهٔ بے عزتی داسے ولے اوکړه چه بنی اسرائیلو ته ئې بربنډ راوستلو؟ جواب دا دے چه په حالت د تنهائی کښ هم تستر کول (پاتے په بل مخ)

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا

اے ایمان والو ویرہ کوئ د اللہ تعالیٰ نه او وائی

قَوْلًا سَدِيدًا ﴿٧٠﴾ يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ

وینا برابر (د شرع سره) نو قبول به کړي تاسو لره عملونه ستاسو

وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ

او بخنه به اوکړي تاسو ته د گناهونو ستاسو او چاچه تابعداري اوکړه د الله تعالیٰ

افضل کار دے ځکه چه ډیر احادیث په دے باندے دلالت کوی او دا استحیاء ده د الله تعالیٰ او د ملائکو نه۔ او انبیاء علیهم السّلام په افضل طریقه باندے عمل کوی نو ظاهره داده چه موسیٰ علیه السّلام د غسل په وخت کښ لنګ استعمال کړے وو او په دا سے لنګ کښ کوم چه په غسل کښ استعمالیږی هم د مرض د برص او اُدره پته لګیدے شی۔

وَكَانَ عِندَ اللَّهِ وَجِيهًا یعنی دوی په دے بدنامو لګولو سره د هغهٔ بے عزتی کول غوښتل لیکن هغهٔ د الله تعالیٰ په تیز باندے عزتمند وؤ نو د دا سے شخص عزت هیڅوک نشی کمولے۔ وَجِيهًا چه مرتبه ئے اوچته وی دُعا کانے ئے قبلیږی۔ محبوب وی عزتمند وی۔

ن:- دا آخری خطاب دے مؤمنانو ته په تقویٰ سره لکه چه اول خطاب د نبی صلّی الله علیه وسلّم د سورة په اول کښ په تقویٰ سره وؤ او تقویٰ جامع لفظ دے هغه احکام چه د د دے سورت په خطابا تو کښ دی په هغه ټولو باندے عمل کولو ته شامل دے۔ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا یعنی د نبی صلّی الله علیه وسلّم او د نکاح د زینب او د نورو بیبیانو او لونړو د نبی صلّی الله علیه وسلّم او د عامو مؤمنانو سړو او ښځو په باره کښ د شرع موافق قول کوئ د پاره د دے چه هغوی ته اذیت اونه رسیږی او دا رنګ دا لفظ شامل دے کلمے د لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ او نورو کلمانو شرعیو ته۔

وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿۷۱﴾ اِنَّا عَرَضْنَا

او دَ رسول دَ هغه نو يقينًا كامياب شو په لويه كاميابۍ سره - يقينًا موتږ وړاندې كړه

الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ

ذمه وارى په اسمانونو باندې او زمكه باندې او غرونو باندې

فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا وَ

نو هغوى ځان بچ كړو دَ خيانت كولو نه او او يريدل دَ خيانت دَ هغې نه او

حَمَلَهَا الْاِنْسَانُ ؕ اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا جَهُوْلًا ﴿۷۲﴾

دَ پوره كولو دَ هغې نه (خيانت كولو نه په هغې كښ) انسانانو يقينًا دغه انسان ډير ظالم او جاهل دے۔

۷۱:- دا دَ تقوىٰ او دَ قول سديد دوه فائدې ذكر كوى۔ يُصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ مراد دے نه په عملونو كښ حسن پيدا كول او عملونه قبلول دى۔ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ اختتام دَ احكامو كښ ئې دا جمله ذكر كړيده ځكه چه دَ ټولو اساس اطاعت دَ الله او دَ رسول دے۔

۷۲:- هر كله چه په سورت كښ آداب، اخلاق او احكام بيان شول او هم دا امانت دَ الله تعالىٰ دے په ذمه دَ انسان باندې نو اوس زجر ذكر كوى هغه انسان ته چه په دې امانت كښ خيانت كوى۔ دا رنګ تير شوى آيت كښ دَ اطاعت كوونكو حال ئې ذكر كړے دے نو اوس دَ خيانت كوونكو حال ذكر كوى۔ په دے آيت كښ يو اشكال دے هغه دا دے چه انسان امانت دَ الله تعالىٰ پوره كړو او قبول ئې كړو نو پكار وؤ چه دَ هغه مدح او تعريف ئې كړے وے ليكن هغه ته ئې لوے ظالم او ډير جاهل اوويل او هر كله چه مراد دَ انسان نه خاص آدم عليه السلام شى بيا خو ډيره بعيده ده چه هغه ته ظلوم او جهول ويلے كيږى دَ دے يو جواب دا كړے شوے دے چه اِنَّهٗ ضمير دغه انسان ته نه دے راجع بلكه بل خيانت ګر انسان ته راجع دے ليكن دا جواب دَ بليغ كلام سره مناسب نه دے دويم جواب دا كړے شويدے چه آدم عليه السلام ته ظلوم جهول په معنىٰ لغوى سره ويلے شويدى ليكن دا هم مناسب نه دے غوره جواب دا دے چه امانت نه مراد يو مناسب ذمه دارى ده۔ اسمانونه چه الله تعالىٰ دَ كوم كارونو او فائدو دَ پاره جوړ كړل او دا رنګ زمكه او غرونه او انسان هم نو دوى دَ پاره امانت (ذمه وارى) او احكام شرعيه دى چه هغه دَ دوى مناسب دى نو اسمانونو او زمكے

لِّيُعَذِّبَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ

دپاره د دے چه عذاب ورکړی الله تعالیٰ منافقانو سړو او منافقو زنانو ته

وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ وَيَتُوْبَ اللّٰهُ

او مشرکانو سړو او مشرکو زنانو ته او توفیق د توبے ورکوی الله تعالیٰ

عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

مؤمنانو سړو او مؤمنو زنانو ته او دے الله تعالیٰ

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۷۳﴾

بخنه کوونکے رحم کوونکے۔

او غرونو دا او منل لکه سورة حٰم سجده ۱۱ او سورة حج ۱۸ کښ دی او انسانانو کښ اکثریت په خپل امانت کښ نقصان اوکړو نو دے ظالم او جاهل دے بیا په دے توجیه سره حَمل په معنیٰ د خیانت کولو دے دا رنګ تفسیر قرطبی او نورو مفسرینو د زجاج نه نقل کړے دے یعنی حمل د روند بوج پورته کولو ته وائی او امانت کښ چه خیانت اوشی نو د روند بوج تر پیه جوړشی. او د دے وجے نه په روستو ایت کښ اول ئے د خیانت والو عذاب ذکر کړے دے. او حسن بصری نه هم قرطبی روایت کړے دے چه حملها الانسان نه مراد کافر او منافق دے د مطلق انسان یا آدم علیه السّلام مراد نه دے او ظلوم جهول د مبالغ صیغے دی د کافر او منافق سره مناسب دی.

۷۳:- دا د امانت په باره کښ د دواړو جانبینو نتیجے ذکر کوی. متعلق دے په حمل پورے یعنی د خیانت کولو نتیجه داده چه خیانت کوونکو له به عذاب ورکوی چه چا پټ خیانت کړے وی هغه منافقان دی او چا چه ښکاره کړے وی هغه مشرکان دی۔

وَيَتُوْبَ اللّٰهُ متعلق دے په مقدر پورے یعنی بعض انسان خیانت نه دے کړے نو خیانت نه کول سبب د توبے دے یعنی الله تعالیٰ په هغه باندے رحم کوی او د زیات ترغیب د پاره ایت ئے ختم کړو په غَفُوْرًا رَّحِيْمًا باندے۔

تمّ تفسیر سورة الاحزاب بتوفیق الملك الوهاب

سُورَةُ سَبَا ۳۴ مَكِّيَّةٌ ۵۸ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۵۴ رُكُوْعَاتُهَا ۶

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ

ټول صفتونه د خدائي ثابت خاص الله تعالی لره دي هغه ذات دے چه د هغه په اختیار کښ دي هغه څيز چه په اسمانونو کښ دي

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سورة سبا

فائده: د دے سورت نه تر اخره د قرآن کریم پورے څلورمه حصّه ده په الحمد لله سره شورو ده او په دے حصّه کښ رد د شفاعة قهریه او د هغے د تفریعاتو چه رد د شرک فی العبادة والدعاء دے ذکر کوی او ذکر د احوالو د قیامت او د احوالو د هغے دے په تفصیل سره او په دے حصه کښ دولس بابونه دی اول باب کښ درے سورتونه دی سبا ، فاطر او یٰس په دے سورتونو کښ رد د شفاعة قهریه په عقلی او نقلی دلیلونو سره رد کوی۔

**ربط** د دے سورت د ماقبل سره په ډیر وجوهو سره دے اوله وجه داده چه تیر شوی سورت کښ ترغیب ورکړو اطاعت د الله تعالی او د رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته نو په دے سورت کښ رد شدید دے د هغوی په مخالفینو او معرضینو باندے او د هغوی عذاب او د هغوی قبائح ذکر کوی دویمه وجه داده چه په هغه سورت کښ شان او عزت د رسول ﷺ ذکر کړو نو په دے کښ اثبات د رسالت د هغهٔ دے په دفع د شبهاتو سره د توحید او رسالت نه۔ دریمه وجه داده چه د سورة احزاب په اخر کښ تخویف د عذاب د منافقانو او مشرکانو ذکر کړے وو نو په دے کښ علّت د عذاب ذکر کوی۔

**دعوی د دے سورت**۔ اثبات د مقاصدو څلورو دے توحید او رسالت او صداقت د قرآن او اثبات د اخرت دے، اثبات د توحید دے په رد د څلور طریقو د شرک سره او په نقلی دلیلونو سره د انبیاؤ او ملائکو او جناتو یعنی اثبات د عجز د هغوی او په رد د څلورو قسمونو د شرک فی العلم او فی التصرف او فی العبادة او فی الدعاء دے او په ذکر د نولس ۱۹ اسماء حسنیٰ د الله تعالی سره۔ او اثبات د رسالت دے په ۲۸ کښ او په دفع د شبهے سره په ۳۴ ۳۵ کښ او په ذکر د طریقو

وَمَا فِى الۡاَرۡضِ وَلَهُ الۡحَمۡدُ فِى الۡاٰخِرَةِ ؕ

او هغه څه چه په زمکه کښې دی او خاص هغه لره هم دا صفتونه دی په آخرت کښې

وَهُوَ الۡحَكِيۡمُ الۡخَبِيۡرُ ① يَعۡلَمُ مَا يَلِجُ

او هغه حکمتونو والا خبردار دے. عالم دے په هغه څه چه ورننوځی

دَ تعلیم سره چه په اول کښې لفظ دَ قل راغلی دے. او اثبات دَ صداقت قرآن په ۶ او په تخویف سره منکرینو ته په ۳۱ او په زجر سره په ۴۳ کښې او اثبات دَ قیامت دے په قسم سره په ۳ او په زجر سره منکرینو ته په ۷ او په ۴۹ کښې او په ذکر دَ احوالو دَ قیامت سره.

**خلاصه دَ سورت:** چه دا سورت تقسیم دے څلورو بابونو ته اول باب ترستا پورے دے په ۵ کښې اول دعوٰی دَ توحید دَ او په هغے عقلی دلیلونه په ۱ ۲ کښې بیا اثبات دَ قیامت په قسم سره په ۳ کښې بیا بشارت او تخویف په ۴ ۵ کښې بیا اثبات دَ صداقت دَ قرآن په دلیل نقلی سره په ۶ کښې بیا زجر منکرینو دَ قیامت او دَ رسول ته په ۷ ۸ بیا تخویف دنیوی په ۹ کښې ذکر کړے دے.

## تفسیر

۱:- په دے کښې دعوٰی دَ توحید ده او په هغے کښې دلیل عقلی دَ توحید دے دَ تصرف. وَلَهُ الۡحَمۡدُ فِى الۡاٰخِرَةِ اول الحمد لله حمد دَ دنیا ته اشاره ده نو ورپسے حمد دَ آخرت ذکر کړے دے یعنی په آخرت کښې به هم ټول بندګان خاص الله تعالیٰ دَ پاره حمد وائی لکه سورة زمر ۷۵ کښې او دارنګ آخرت کښې ټول نعمتونه او تصرفات او اختیارات صرف دَ الله تعالیٰ دَ پاره دی.

وَهُوَ الۡحَكِيۡمُ یعنی تقسیم دَ نعمتونو الله تعالیٰ دَ حکمت مطابق کړے دے.

الۡخَبِيۡرُ یعنی دَ هرچا په ظاهر او باطن باندے خبر دے نو حقدار دَ هر نعمت پیژنی.

**فائده:-** سورة فاتحه کښې حمد په نعمتونو دَ دنیا او دَ آخرت باندے ذکر کړے دے بیا په سورة انعام کښې نعمتونه دنیویه دَ ایجاد ته اشاره ده او سورة کهف کښې نعمتونو دنیویه دَ ابقاء (تربیت) باندے حمد ذکر کړے دے او س په سورة سبا کښې نعمتونه اخرویه دَ ایجاد ته اشاره ده دَ دے وجے نه الاخرة ئے ذکر کړو او د دوستو دریم ایت کښې اثبات دَ آخرت ئے ذکر کړے دے او سورة فاطر کښې به حمد په نعمتونو اخرویو دَ ابقاء ذکر کوی.

فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ

په زمکه کښې او په هغه څه چه را اوځي د هغې نه او په هغه څه چه راکوزيږي د اسمان نه

وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۚ وَهُوَ الرَّحِيمُ الْغَفُورُ ۞

او په هغه څه چه ورخيژي اسمان ته او هغه رحم کوونکے بخنه کوونکے دے۔

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ ۖ

او وائي هغه کسان چه کفر ئے کړے دے نه راځي مونږ ته قيامت ،

قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ ۖ

ته اُوايه هاں قسم دے په رب زما راځي به قيامت ، عالم دے الله تعالىٰ په ټولو غيبو باندے

لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ

نشي پټيدلے د هغه نه په وزن د يو ذرے په اسمانونو کښې

وَلَا فِي الْأَرْضِ وَلَا أَصْغَرُ مِنْ ذَٰلِكَ

او نه په زمکه کښې او نيشته وړوکے د دے نه

س۲ :- دا دويم دليل عقلي دے اول دليل د تصرف دے او دا دليل علمي دے ځکه چه تصرف بغير د علم نه نشي کيدلے۔ او په دے دليلونو سره اثبات د توحيد او اثبات د قيامت دواړه مقصود دي۔ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ اوبه ، تخم ، مالونه او مړي او غيره مراد دي وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا اوبه ، معدنيات ، بوټي اوني وغيره مراد دي۔ وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وحي ، ملائک ، اوبه وغيره مراد دي وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ملائک، نيک اعمال اوکلمات طيبه وغيره مراد دي۔ هرکله چه احوال د زمکے مونږ ته نزدے دي نو هغه ئے مخکښې ذکر کړل دويم دا چه تخم په زمکه کښې واچولے شي نو روستو باران ته محتاج وي۔ يَعْرُجُ فِيهَا د فيها په راوړلو کښې اشاره ده قبوليت د اعمالو ته چه د ننه اسمان ته ورخيژي که اليها ويلے وے نو صرف رسيدل به مراد وے او دا سے په سورة حديد سے کښې هم شته۔

وَهُوَ الرَّحِيمُ دا ټول نعمتونه دليل د رحمت د هغۀ دے او منتهیٰ د رحمت مغفرت دے ځکه ئے الغفور وروستے ذکر کړے دے۔

وَلَآ اَكْبَرُ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝۳ لِّيَجْزِيَ

او نه لوی مګر په کتاب ښکاره کښ دی. دَدې دَپاره چه بدله ورکړی

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ؕ اُولٰٓئِكَ

هغه چاته چه ایمان ئې راوړے دے او عمل ئې کړے دے دَ سنت موافق دغه کسان

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ۝۴ وَالَّذِيْنَ

دوی لره بخشش او رزق عزت والا دے. او هغه کسان

سَعَوْ فِيْٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ

چه کوشش کوی په ایاتونو زمونږ کښ مقابله کوونکی دغه کسان دوی لره

عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ۝۵ وَيَرَى الَّذِيْنَ

عذاب دے دَ سخت عذاب نه درد ناک. او عقیده لری هغه کسان

ت ۳:- روستو دَ ذکر دَ اٰخرت نه په ۳ کښ زجر دے منکرینو دَ هغی نه او دَ هغی اثبات کوی په قسم کولو سره په خپل ذات باندے او دا دریم سورت دے چه په هغی کښ قسم دے په ذات دَ رب باندے په باره دَ قیامت کښ۔ عٰلِمِ الْغَيْبِ صفت دَ رب دے یعنی عالم دے په ارواحو او په اجسام او دَ هغې په اجزاؤ اګرچه بعض ټکړے دَ ذرے په مقدار وی او بعضے دَ هغې نه غټې ټکړے وی او بعضے دَ هغې نه نرے ټکړے وی ذَرَّةٍ نرے سور میږے دے چه په نظر باندے په مشکله سره راځی او دَ عربو په نیز دَ وړوکوالی دَ پاره دَ دۀ مثال پیش کیږی۔ فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ یعنی صرف عالم نه دے بلکه په لوح محفوظ کښ لیکلے هم دی۔

ت ۴:- په دے ایت کښ بشارت دے او ذکر دَ علت دَے دَپاره دَ قیامت۔ اولنا تینکم پټ دے۔ په ایت کښ ایمان او عمل صالح ذکر کړے دے تو جزاء کښ ئې هم (مغفرت او رزق کریم) دواړه په ترتیب سره ذکر کړل۔ كَرِيْمٌ یعنی دَ فائدې و نه ډک دے هیڅ نقصان په کښ نیشته او په حاصلولو کښ ستړے ولے هم نیشته او حساب پکښ هم نیشته۔

ت ۵:- دا تخویف اخروی دے هغه چاته چه دَ ایاتونو دَ الله تعالیٰ سره مقابله کوی فِيْٓ اٰيٰتِنَا په باطلولو دَ ایاتونو کښ او په تحریف دَ هغې کښ او مُعٰجِزِيْنَ قید دے دَ سَعَوْ دَپاره۔ یعنی کوشش دَ هغې دَ ایزده کولو نه کوی بلکه مقابله ( پاتے په بل مخ )

أُوتُوا الْعِلْمَ الَّذِيٓ أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ

چه ورکړے شوي دي علم ته هغه کتاب نازل کړے شوے دے تاته ستا د رب د طرف نه

هُوَ الْحَقَّ ۙ وَيَهْدِيٓ إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ⑥

هغه حق دے او هدايت کوي لارے د زور آور او ستائيلے شوي ذات ته.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ

او وائي کافران (ريو بل ته) آيا او ښايو موږ تاسو ته

رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ۙ

داسے سړے چه خبر درکوي تاسو ته چه هر کله ذرے ذرے شئ تاسو په پوره ذرے کيدلو سره

إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ⑦ أَفْتَرَىٰ

يقيناً تاسو به په نوي پيدائش کښ يئ. آيا جوړ کړيدي

کوونکی دی یا عاجز کوونکی دی الله تعالیٰ لره دَ راتیولو دَ دوی نه په خپل گمان کښ. هر کله چه دَ عذاب مختلف قسمونه وو دَ دے وجے نه دلته يئ مِنْ لفظ راوړے

سـ٦ :- دا دليل نقلی دے دَ اهل کتابونه په مقابله دَ مُعَاجِزِيْنَ کښ يعنی دوی مصدِّقين (تصديق کوونکی) دی. وَيَرَى عطف دے په لِيَجْزِيَ باندے يا دَ سره (مستانف) کلام دے او دا غوره خبره ده او رويت نه مراد رويتِ عملی دے.

الَّذِيٓ أُنْزِلَ مفعول اول دے او هُوَ الْحَقَّ مفعول ثانی دے. الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَ دے نه مراد توحيد والا دی که کتابی وی او که غير کتابی وی. يَهْدِيٓ فاعل دَ دے قرآن دے يا الله تعالیٰ دے.

سـ٧ :- په دے کښ زجر دے په انکار دَ قيامت باندے سره دَ انکار دَ رسول نه. رَجُلٍ يئ مجهول ذکر کړو دَ پاره دَ استهزاء او مسخرے.

كُلَّ مُمَزَّقٍ مصدر ميمی مفعول مطلق دے دَ پاره دَ مبالغے يعنی پوره ذرے چه يوه ذره هم دَ بلے ذرے سره يو ځائے پاتے نشی يا صيغه دَ ظرف ده يعنی هر ځائے دَ ذرے کيدلو ته دا ذرات او رسيږی.

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ ؕ بَلِ الَّذِيْنَ

په الله تعالیٰ باندے دروغ (په قصد سره) یا په دهٔ باندے لیونتوب دے (نو دروغ وائي بے اراده) بلکه هغه کسان

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ فِى الْعَذَابِ وَالضَّلٰلِ

چه ایمان نه لری په اٰخرت باندے په عذاب کښ دی او په ګمراهئ

الْبَعِيْدِ ۝٨ اَفَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

لرے کښ دی۔ ایا نو دوی نه ګوری هغه څه ته چه روان دے د دوی دی

وَمَا خَلْفَهُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ

او روستو د دوی دی چه اسمان او زمکه ده، که چرے اوغواړو مونږ خ به کړو

بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا

دوی لره په زمکه کښ یا به راوغورځوو مونږ په دوی باندے ټکړے

۸: دا هم زجر کښ داخل دے۔

اَفْتَرٰى، دا هم د قال الذین د لاندے داخل دے او یو همزة د باب افتعال په کښ محذوف دے او تقابل په مینځ د دواړه جملو کښ دا دے چه افتراٗ نه مراد دا دے چه سرهٔ د عقل او د قصد نه ئے په الله تعالیٰ باندے دروغ جوړ کړیدی او اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ مقصد دا دے چه عقل پکښ نیشته نو بغیر د قصد او د ارادے نه ئے دروغ ویلے دی یعني دروغ ئے ضرور ویلے دی لیکن یا ئے قصدًا جوړ کړے دی یا بے قصده۔ بَلِ الَّذِيْنَ یعني دغه دواړه نسبتونه غلط او باطل دی بلکه دوی په عذاب کښ به وی په دنیا او اٰخرت کښ او په ګمراهئ کښ دی په دنیا کښ او تباهئ کښ به وی په اٰخرت کښ۔ ضلال په معنیٰ د ضیاع او د تباهئ دے او هغه دُنیا او اٰخرت دواړو ته شامل دے۔ او په دے جمله کښ رد دے د هغوی د قول په لف نشر مرتب سره یعني دوی چه نسبت د افتریٰ کوی صادق او بری ته نو دا دوی د پاره ضرور سبب د عذاب دے۔ او دوی چه عاقل هوښیار ته نسبت د جنون کوی نو دا سبب او علامت د ضلال د دوی دے۔ بَعِيْدِ دا سے ګمراهي چه د حق سره هیڅ مناسبت نه لری او دا سے تباهي چه منتهیٰ ئے نه ده معلوم۔

مِنَ السَّمَآءِ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّكُلِّ

دَ اسمان نه يقينًا په دے کښ ضرور عبرت دے دپاره دَ هر

عَبْدٍ مُّنِیْبٍ ﴿۹﴾ ع وَلَقَدْ اٰتَیْنَا دَاوٗدَ مِنَّا

بنده دَ حق طلبګار ۔ او يقينًا ورکړے دے موږ داؤد عليه السّلام ته زموږ دَ طرفه

فَضْلًا ؕ یٰجِبَالُ اَوِّبِیْ مَعَهٗ وَالطَّیْرَ ۚ وَاَلَنَّا لَهُ

غوره والے رویلے وو موږ) اے غرونو تسبیح وایئ دَ دهٔ سره او تابع کړے وو موږ مارغان او نرمه کړے وه موږ دهٔ لره

الْحَدِیْدَ ﴿۱۰﴾ اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ وَّقَدِّرْ

اوسپنه چه جوړه پوره زغرے او انداز ساته

فِی السَّرْدِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ؕ اِنِّیْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

په یوځائے کولو دَ کړو کښ او عمل کوئ نیک يقينًا زهٔ ستاسو عملونو لره

ركوع ۱

س۹ :. په دے ایت کښ تخویف دنیوی دے هر کله چه تیر شوی ایت کښ دَ عذاب ذکر اوشو نو په دے ایت کښ دَ عذاب دَ قسمونو ذکر کوی۔
مِنَ السَّمَآءِ دا بیان دے دَ مابین ایدیهم ځکه چه دَ انسان دَ ستر کو په وړاندے دے۔
وَالْاَرْضِ دا بیان دَ ما خلفهم دے او مراد دَ مابین ایدیهم او وما خلفهم نه ټول طرفونه دی یعنی په انسان باندے اسمان او زمکے دَ هر طرف نه احاطه کړے ده۔ اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ اه دا لف نشر غیر مرتب دے یعنی دَ زمکے نه عذاب خسف دے او دَ اسمان نه عذاب ټکړے راغورځیدل دی۔
مُنِیْبٍ ، هغه انسان چه حق طرفته ګرځی په دلیل سره او هیڅ ضد تعصب پکښ نه وی او انابت شرط دے دَ پاره دَ تابعدارے دَ دلیل۔
س۱۰ :. دَ دے ایت نه دویم باب دے تر س۲۲ پورے په دے کښ حالات دَ داؤد او سلیمان علیهما السّلام او حال دَ جنانو ذکر کوی دَ پاره دَ دفع دَ شبهاتو په توحید باندے او دلیلونه نقلیه هم دی په بیان دَ احتیاج او دَ عبدیت دَ دوی سره بیا مثال دَ اصحاب سبا ذکر کوی دَ پاره دَ تخویف دنیوی او بیا عداوت دَ شیطان ذکر کوی چه سبب دَ شبهاتو او دَ نزول دَ عذاب دے۔
په دے س۱۰ کښ واقعه دَ داؤد علیه السّلام ده او په دے کښ جواب دَ سوال دے چه دَ داؤد علیه السلام دَ حالاتو نه معلومیږی چه دَ (پاتے په بل مخ)

بَصِيْرٌ ⑪ وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّ

لیدونکے یم ۔ او تابع کړے وه مونږ سلیمان علیه السّلام لره هوا مزل دَ صبائي دَ هغې یو میاشت وُه او

هغهٔ ډیر طاقت او قدرت وو په غرونو او مارغانو او اوسپنه باندے نو معلومه شوه چه دَ حاجت روائۍ قدرت ئې هم لرلو او شفیع قهری هم کیدے شي حاصل دَ جواب داد ے چه غرونه او مارغان تابع کول او اوسپنه نرمول دا ټول کار او قدرت دَ الله تعالیٰ دے دَ داؤد علیه السّلام په هغې کښې اختیار نه وُو دا معجزات دي او دَ نبي قدرت په معجزاتو کښې نه وي او دَ دے وجے نه په دے کارونو کښې الله تعالیٰ ځان ته نسبت کړیدے ۔ اول مقصد په دے واقعه کښې ذکر دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے په ذکر دَ امورِ خلاف دَ عادت نه تو دلیل شو چه الله تعالیٰ په دوباره ژوندی کولو قادر دے ۔ او دا رنګ دا دلیل نقلی دے په توحید باندے۔ فَضْلًا مراد دَ دے نه نبوت او بادشاهي او نور معجزات دي ۔ يٰجِبَالُ دا بیان دَ فضل دے او قلنا په دے کښې پټ دے ۔ اَوِّبِيْ مَعَهٗ ۔ تاويب، رجوع اوګرځیدلو ته وائي مراد دَ دے نه تسبیح ویل دي ۔ وَالطَّيْرَ په دے کښې فعل پټ دے یعنی سخرنا معه الطیر یا عطف دے په محل دَ یاجبال باندے ۔ او جبال او طیر ئې دَ دے وجے نه ذکر کړل چه غرونه ډیر سخت دي او مارغان دَ انسان نه ډیر نفرت کوؤنکي دي لیکن هرکله چه دوی دَ داؤد علیه السّلام مسُخر تیا کوله نو معلومه شوه چه اونے او بوټي وغیره ئې هم تابع وو ۔ لیکن هغه انسانان چه دَ کتو نه ئې زړونه ډیر سخت وي نو هغوی ئې مخالفت کوؤ ۔ وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ دَ غرونو نه ډیر سخت څیز اوسپنه ده نو دَ هغې تسخیر هم ذکر کوی ۔ هرکله چه داؤد علیه السّلام دَ جهاد سره محبت ډیر لرلو او دا رنګ دَ خپل لاس نو کټه ئې خوښه وه نو الله تعالیٰ ورته اوسپنه نرمه کړله بغیر دَ اور او بغیر دَ ټکولو نه په پلکونو او ستګونو سره به ئې دَ هغې نه کړئ جوړه ولے ۔

ـــــــ : ۔ اِنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ دا بیان دَ علت دَ نرم والی دَ او سپنے دے په صیغه دَ امر سره او په دے صیغه کښې اشاره ده چه دا کار ئې په امر دَ الله تعالیٰ سره دَ هغهٔ دَ رضا دَ پاره کولو ۔ سٰبِغٰتٍ نه مخکښې موصوف پټ دے یعنی ذروعًا (زغرے) چه ټول بدن پرے پټیږی ۔ وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ سرد په معنیٰ دَ جوړولو دَ زغرو دے او کړئ په یو بل کښې ورکول دي ۔ او دَ قَدِّرْ دوه معنے دي اوله معنیٰ دا چه کړئ په اندازه جوړوه نه ډیرے فراخ او نه ډیرے تنګے او نه پاتے په یل مخ ـــــــ

رَوَاحُهَا شَهْرٌ وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ وَمِنَ

مزل دَ ماز یگری یو میاشت وُو او بَہیوَلے وه موږ هغه لره چینه دَ تانبے او دَ

الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ

پیریانو نه داسے کسان وو چه کار به یې کوو دَ هغه په مخکښ په حکم

رَبِّهٖ ؕ وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا نُذِقْهُ

دَرب دَ هغه سره او څوک چه به کوږ شو دَ دوی نه دَ حکم زموږ نه او به څکوو موږ هغه ته

مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ﴿۱۲﴾ يَعْمَلُوْنَ لَهٗ

دَ عذاب دَ اور لمبو والا نه ۔ جوړول به دوی هغه لره

ډیرے غټے او نه ډیرے ترے دَ پاره دَ دے چه غښے او توره وریاندے اثر نه کوی او نه په بدن باندے درنے وی او بقاعی ویلے دی چه "په دغه زغرو کښ میخونه نه وو بعضو چه لیدلے وے نو داسے خبرې راکړے دے او دا دَ دے وج نه چه او سپنه نرمه وه نو میخونه وهلو ته حاجت نه ووُ" دویمه معنیٰ داده چه دا کسب دنیوی دے نو دَ دے دَ پاره ورځ او وخت اندازه کړه نو له ورځ په دے مه لګوه بلکه ډیر وخت دَ عمل صالح دَ پاره صرف کړه چه هغه مقصد اصلی دے دَ دے وجے نه وروسته او فرمائیل وَاعْمَلُوْا صَالِحًا او په دے کښ اشاره ده چه داؤد علیه السّلام لوے شان او مرتبے والا ووُ، معجزاتو والا ووُ، لیکن بیا هم مکلف ووُ په عباداتو سره عبد ووُ نو شفیع قهری نشی کیدلے ۔

سٓ ۱۲ :۔ په دے کښ دویمه واقعه ده په جواب دَ شبهه کښ چه دَ سلیمان علیه السّلام بادشاهی په هوا او په جناتو او مارغانو باندے دلالت کوی چه دے دَ لوے تصرف او قدرت مالک ووُ! حاصل دَ جواب داد ے چه دا قدرت دَ الله تعالیٰ ووُ دَ سلیمان علیه السلام په هغے کښ اختیار نه ووُ دَ دے وجے نه الله تعالیٰ ځان ته نسبت کوی او دا رنګ واقعه دلیل نقلی دے په توحید او په بحث بعد الموت باندے وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ ۔ فعل دَ سَخَّرْنَا دَ دے نه مخکښ پټ دے هر کله چه تسخیر صرف دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دے نو ذکر ته یې حاجت نیشته ۔

غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ ۔ قرطبی دَ حسن بصری نه روایت کړے دے چه صبائې به روان شو دَ دمشق نه نو دَ غرمے آرام به یې او کړو په اصطخر کښ او دَ دواړو په مینځ کښ دَ یوے میاشت پیاده مزل دے رپاتے په بل مخ)

مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ

څه به چه هغه غوښتل عبادت خانې او نمونې د آبادې او خانګونه

كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ؕ اِعْمَلُوْٓا اٰلَ

چه پشان د حوضونو وو او دیګونه ولاړ په خپل ځائے پاتے عمل کوئے اے اولاد

دَاوٗدَ شُكْرًا ؕ وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ ⑬

د داؤد علیه السّلام د شکر کولو او لږ دی د بندګانو زما نه شُکر ګذار.

بیا یه د اصطخر نه روان شو نو شپه به یې اوکړه په کابل کښ او دا هم د میاشت مزل دے۔ وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ یعنی تانبه په خپل کان کښ د چینے د اوبو پشان بهیدونکے وه د پاره د آبادئ وغیره په او رباندے ویلے کولو ته ضرورت نه وو او دا هم معجزه وه نو الله تعالیٰ ځان ته نسبت کړے دے۔ وَمِنَ الْجِنِّ عطف دے په الریح باندے یعنی وسخرنا من الجن۔ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بعض عملونه روستو ایت کښ ذکر کوی او بعض په سورة ص ۳۷ کښ ذکر دی۔ بِاِذْنِ رَبِّهٖ په دے کښ اشاره ده چه د هغهٔ سره (سحر) جادو نه وؤ لکه چه یهودیان وائی بلکه د الله تعالیٰ اذن وؤ۔ وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا۔ امر د سلیمان علیه السلام امر د الله تعالیٰ دے من عَذَابِ السَّعِيْرِ مراد ترینه اور د جهنم دے یا مراد په دنیا کښ چه ملائک په دے جناتو باندے مقرر وو چابه چه د حکم د سلیمان علیه السّلام نافرمانی اوکړله نو د اور په چابک (کروړه) باندے به یې وهلو۔

۱۳:۔ په دے کښ تسخیر د جن او د هغوی کارونه ذکر کوی۔ مَحَارِيْبَ۔ محراب په بنی اسرائیلو کښ خاص عبادت خانه د امام او عالم د پاره وه یا مراد ترینه اوچتے آبادئ دی یا مراد ترینه مساجد دی او په دے کښ مسجد بیت المقدس هم داخل دے چه دا هم جناتو جوړ کړے وؤ لیکن محراب زمونږ د زمانے ترینه مراد نه دے۔ وَتَمَاثِيْلَ مراد د دے نه نقش ونګار دے د اونو او بوټو په شکلونو جوړ ولو سره۔ او چا چه ویلے دی چه مراد د دے نه تصاویر د انبیاؤ او بزرګانو وؤ چه دوی به په عبادت خانو کښ کیخودل صرف د رغبت د پاره او دا د دوی په دین کښ جائز وو دا قول صحیح نه دے دلالت کوی د دے په خلاف باندے هغه حدیث صحیح اولٰئك اذامات فيهم الرجل الصالح بنوا على قبره مسجدا وصوروا فيه تلك الصور اولٰئك شرار الخلق عند الله (مشکوٰة) د دے نه (پاتے په بل مخ)

فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلَى

نو هر كله چه فيصله اوكړه مونږ په هغه باندے دَ مرګ نو خبر ورنكړو دوی ته په

مَوْتِهٖٓ إِلَّا دَآبَّةُ الْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنْسَأَتَهٗ

مرګ دَ هغهٔ مګر يو چينجي دَ زمكے (وينه) چه خوړله ئے همسا دَ هغه

فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَنْ لَّوْ كَانُوْا

نو هر كله چه هغه راپريوتلو ښكاره شو حال دَ پيريانو چه كه چرے دوی

معلوميږی چه مسجدونه په قبرونو باندے جوړول او په هغے كښ دَ نيكانو تصاوير جوړول دواړه كارونه دَ شرک او دَ فساد عمل دے۔

وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ جفان جمع دَ جفنه دے لوے خانک (پراټ) ته وائي۔ جواب جمع دَ جوبة دے لوے حوض دَ اوبو ته ويلے كيږی۔ يعنی لښكر او نوكران او ميلمانه به دَ سليمان عليه السّلام ډير زيات وو دَ هغوی دَ خوراک دَپاره لوے لوے لوښی پكار وو۔ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ هر كله چه دَ خانكونو حال ئے بيان كړو نو اوس دَ ديګونو حال بيانوی چه هغه دومره غټ وو چه دَ ځائے نه به چا نه شو خوځولے صرف پخلے به پكښ كيدلو بل طرف ته ئے اوړل او نقل كول ګران كار وو۔

اِعْمَلُوْٓا اٰلَ دَاوٗدَ يعنی دَ لوے حكومت او ډيرو معجزاتو سره هم هغه مكلّف وو په عبديت دَ الله تعالیٰ سره۔ شُكْرًا په دے كښ تفسير سراج المنير شپږ تركيبونه ذكر كړيدی۔ يعنی مكلّف وو په شكر كولو سره۔

وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ۔ شكور ئے په صيغه دَ مبالغے سره دَ دے وجے نه ذكر كړو چه لږ شكر كوونكی خو مشركان او كافران هم دی هغوی هم په حالت دَ اضطرار كښ دَ الله تعالیٰ شكر كوی ليكن چه هر وخت او په هر نعمت او په هر قوت يعنی په ژبه او زړه او اندامونو او مال سره دَ الله تعالیٰ شكر اداكوی نو دا ډير لږ خلق دی دَ دے وجے نه قران كښ دَ مشركانو او ناشكرو او بےعقلو او بے علمو ذكر ئے په لفظ دَ اكثر سره كړے دے۔

يَعْلَمُونَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوا فِي الْعَذَابِ

پوهیدے په غیبو باندے نو ته به وو ایسار شوی په سخت کارونو

الْمُهِينِ ﴿١٤﴾ لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ

ذلیلوونکو کښ . یقینًا وو دپاره د سباوالو په کورونو د هغوی کښ

ف ۱۴ :- په دے ایت کښ ذکر کوی معجزه د سلیمان علیه السلام په دوه طریقو سره اول داچه په دهٔ باندے مرګ راغلے دے د مرګ نه یُے ځان ته شو نه کړو دویم داچه روستو د مرګ نه هیڅ حرکت او اختیار و قدرت په کښ نه وو ځکه چه همسا کمزورے شوه ذدهٔ د ټینګولو نه نو دے په زمکه باندے را او غورځیدلو تو معلومه شوه چه مرده کان د هیڅ امداد او حاجت روائی نه شی کولے د ځان اختیار ته لری نو د بل چا سره به څه امداد اوکړی۔

او دا رنګ په دے ایت کښ ذکر کوی حال د جنّاتو چه دوی هم په غیب باندے نه پوهیږی نو په دے سره جواب د دریم شبهے دے په باره د جنّاتو کښ چه د بعضو خلقو په بنی اسرائیلو او دا رنګ په دے امت کښ هم دا عقیده ده چه پیریان په غیبو باندے خبردی نو په دے ایت کښ د هغوی جواب اوشو چه د سلیمان علیه السّلام د مرګ نه تر یو کال پورے هم دوی خبر نه وو۔ بیا د دے اسباب مفسرینو دوه ذکر کړیدی اول داچه په انسانانو کښ په هغه وخت کښ مشهوره وه چه جنات په غیب باندے پوهیږی نو سلیمان علیه السّلام د خپل مرګ په وخت کښ داسے کار اوکړو او د الله تعالیٰ نه یُے سوال هم اوکړو چه زما مرګ د دوی نه پټ اوساتے د پاره د دے چه د خلقو د زړونو نه دا غلطه عقیده ختم شی۔

دویم سبب دا وو چه سلیمان علیه السلام د جناتو په ذریعه سره د بیت المقدس ابادی کوله اګرچه ابادی د هغه په ژوند کښ ختم شوه لیکن د هغے د اکمال او اتمام باره کښ څه عمل د پیریانو باقی پاتے شوے وو نو دهٔ د الله تعالیٰ نه دُعاء اوکړه چه زما مرګ د جناتو نه یو کال پورے پټ اوساتے د پاره د دے چه دا کار پوره کړی ځکه چه هغوی د سلیمان علیه السّلام د ویرے نه کارونه کول۔ او د نسائی د حدیث صحیح نه معلومیږی چه سلیمان علیه السلام ابادئ د مسجد نه فارغ شوے وو لیکن د هغے متعلق څه اعمال باقی پاتے وو۔ او قرطبی نقل کړے دی چه صحیح سندونو سره ثابت ده چه سلیمان علیه السّلام تر یو کال پورے په همسا باندے ولاړ وؤ۔ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَنْ یو معنی دا ده چه پیریانو ته (پاتے په بل مخ)

اٰيَةٌ جَنَّتٰنِ عَنْ يَّمِيْنٍ وَّشِمَالٍ ۬ كُلُوْا

دليلونه دَ توحيد باغونه وو دَ ښي طرف او دَ ګس طرف نه خورئ

مِنْ رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ بَلْدَةٌ

دَ روزئ دَ رب ستاسو نه او شکر کوئ هغه لره دا ښار ستاسو

طَيِّبَةٌ وَّرَبٌّ غَفُوْرٌ ۝ فَاَعْرَضُوْا فَاَرْسَلْنَا

دَ مزو نه ډک دے او رب بخنه کوونکے دے۔ نو دوی مخ واړوه دَ توحيد نه نو رالوليږل مونږ

خپل حال ښکاره شو چه دوی علم غيب نه لري دويمه معنیٰ دا ده چه انسانانو ته ښکاره شوه په باره دَ پيريانو کښ چه دوی په غيب باندے نه پوهيږي په روستنئ معنیٰ باندے اَنْ لَّوْ كَانُوْا بدل اشتمال دے دَ الجن نه ۔ الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ ، مراد دَ دے نه آبادئ او نور سخت کارونو دی چه جناتو به دَ سليمان عليه السّلام دَ ويرے کول څکه ئې تعبير په عذاب سره کړے دے۔

سبا ۱۵ :۔ دا نمونه ده دَ تخويف دنيوی په حال دَ اهل سبا سره دَ پاره دَ منکرينو روستو دَ جواب دَ شبهاتو نه اوپس دَ دليل نقلی نه ۔ او دا رنګ مخکښ حال دَ هغه بادشاهانو ذکر شو چه شکر ګذار وو اوس حال دَ هغه مالدار و ذکر کوی چه نا شکره وو. لِسَبَاٍ دا نوم دَ مشر دَ قبيلے وؤ چه هغه سبا بن عبد شمس بن يشجب بن يعرب بن قحطان وؤ او دَ هغهٔ نسل ته هم اهل سبا ويلے کيږی۔ بعضے رواياتو کښ راغلی دی چه دَ سبا لس ځامن وو شپږ په يمن کښ آباد وو او څلور په شام کښ۔ فِيْ مَسْكَنِهِمْ په دے لفظ کښ اشاره ده چه دَ دوی په ملک کښ ډير اسباب دَ آرام وو ۔ مفسرينو ويلے دی چه دا دَ صنعاء اليمن نه درے فرسخه مآرب مقام وؤ او بقاعی ويلے دی چه دغه علاقه او صحراء دے صنعاء ته نزدے ده

اٰيَةٌ دليلونه دَ قدرت او دَ توحيد دَ الله تعالیٰ ۔ مَسْكَنٌ او اٰيَةٌ مفرد په معنیٰ دَ جنس سره دے ۔ جَنَّتٰنِ مراد دَ دے نه ډير اقسام دَ باغونو دی صرف دوه نه دی مراد۔ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ ۔ آب وهوا ئې صحت مند وه زهريلی حيوانات پکښ نه وؤ خوره ناکه زمکه پکښ نه وه ۔ وَرَبٌّ غَفُوْرٌ بخنه کوی شکر کوونکو لره اګرچه مالدار وی۔

عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ وَبَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ

په دوی باندے سیلاب دَ بند ترپلے شوی او ورکړو موږ دوی ته په بدل دَ باغونو دَ دوی کښ

جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَىْ اُكُلٍ خَمْطٍ وَّاَثْلٍ وَّشَيْءٍ

نور باغونه چه په هغے کښ بے خوندہ میوے وے او غزان وو او یو قسم دَ

مِّنْ سِدْرٍ قَلِيْلٍ ﴿١٦﴾ ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ

بیرو نه لګے وے. دا سزا ورکړه موږ دوی ته

سا ۱۶ :- په دے ایت کښ ئے سبب دَ عذاب او تفصیل دَ عذاب ذکر کړے دے فَاَعْرَضُوْا دا سبب دَ عذاب دے. بعض روایاتو کښ دی چه دوی ته دیارلس ۱۳ انبیاء راغلی وو او دوی ته ئے توحید بیان کړے وؤ لیکن دوی ترینه مخ اوګرځوؤ.
فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ دا ذکر دَ عذاب دے یعنی دوی یو لوئے بند جوړ کړے وؤ او په هغے کښ بارانی اوبه یا دَ یو سیند اوبه جمع کړے وے او دَ هغے نه ئے نهرونه جُدا کړے وو په هغے سره ئے باغونه فصلونه او به کول او دیته ډیم ویلے کیږی. نو هغه بند (دیوال) کښ سورے اوشو او بند مات شو او اوبه دَ سیلاب په طور سره دَ دوی په باغونو او اباد و باندے راغلے او هر کله چه دا عذابِ الٰهی وؤ نو هغه اوبو کښ زهریلی ماده هم پیدا شوه هغه باغونه ئے بے کاره کړل او دَ هغے میوؤ نه ئے خوګوالے ختم شو او بے خوندہ شوے. اُكُلٍ خَمْطٍ مبرّد وائی چه میوه دا سے حالت ته بدله شی چه اشتها ورته دَ چا نه کیږی نو هغے ته خمط وائی. او ابو عبید وائی هر اونه ازغی داره چه ترخه وی خوړلے کیدے نشی هغے ته خمط وائی. وَاَثْلٍ دا عطف دے په اُکل باندے ځکه چه دَ غز اونه کښ میوه نیشته او دَ هغے لرګے او سورے بے فائدے وی. او په دے کښ بل قسم دے هغے ته طرفاء ویلے کیږی دَ هغے دَ لرګی نه منبر دَ نبی صلی الله علیه وسلّم جوړ کړے شوے وؤ. سِدْرٍ قَلِيْلٍ دا دوه قسمه دی یو ته بیره ویلے کیږی دَ هغے میوه کرکنړے دی او بل قسم ته جاړه ویلے کیږی په هغے کښ ازغی زیات وی او دانے پکښ نوی یا بیکاره وی او په صحرا کښ وی دلته دا روستو قسم مراد دے او هغه هم ډیرے لږے وی ځکه چه شَيْءٍ او قَلِيْلٍ دواړه په کموالی باندے دلالت کوی.

بِمَا كَفَرُوْا ۚ وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ ﴿۱۷﴾

په وجه د کفر کولو د دوی او داسې سزا نه ورکوو موږ مګر ډیر منکر ته.

وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا

او جوړ کړي وو موږ په مینځ د دوی او د هغه کلو کښې چه برکات اچولې دي موږ

فِيْهَا قُرًى ظَاهِرَةً وَّقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ ۭ

په هغې کښې کلي یو بل ته ښکاره او اندازه کړې وو موږ په هغې کښې منزل

سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِيَ وَاَيَّامًا اٰمِنِيْنَ ﴿۱۸﴾

ګرځئ په هغې کښې د شپې او د ورځ په امن سره.

ف ۱۷:- په دې کښې تفسیر د اعرضوا دې یعنی اعراض کفر دې - وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ په دې کښې اشکال دا دې چه د دې جملې نه معلومه شوه چه سزا صرف کافرانو پورې خاص ده مؤمن ته په ګناه کولو هیڅ سزا نه ورکیږي او دا د نورو ایاتونو او احادیثو نه خلاف ده - اول جواب دا دې چه دلته مراد د سزا نه استیصالي (د بیخ کندې) سزا ده لکه چه په اصحاب سبا باندې راغلې وه دغه سزا خاص ده په کافرانو پورې - دویم جواب دا دې چه مجازاة ویلې کیږي پوره سزا ته یعنی هیڅ ګناه ورته معاف نه کړي بلکه د هر ګناه سزا ورکړي دا خاص ده په کافر پورې ځکه چه د مؤمن بعضې ګناهونه په عبادتونو یا په صرف فضل د الله تعالیٰ سره معاف کیږي د هر ګناه سزا نه ورکوي.

ف ۱۸:- په دې ایت کښې ذکر د بل انعام دې په اهل سبا باندې، چه مراد د هغې نه امن دې په سفر کښې چه د یمن نه ترشام پورې په لارې باندې هیڅ تکلیف او یره نه وه او دا رنګ د سفر توښې اوړ لو ته هم حاجت نه وو کلي او ابادي یو بل ته نزدې وو - الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا، مراد د دې نه شام، فلسطین، اردن وغیره وو چه په هغې کښې میوې غلې ډیرې وې اب وهوا ئې هم ښه وه او اوسیدونکي پکښې هم ډیر وو - قُرًى ظَاهِرَةً مراد د دې نه دا دې چه کلي یو بل ته داسې نزدې وو چه د یو کلي نه به مسافر او تلو نو بل کلې به ورته ښکاره کیدلو او هغه کلي به اوچت اباد وو - بعض مفسرینو لیکلي دي چه د یمن (سبا) نه ترشام پورې په لارې باندې څلور زره اووه سوه کلي اباد وو - وَقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ - یعنی د یو کلي نه تر بل کلي پورې د اندازې سفر وو

فَقَالُوْا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا وَظَلَمُوْٓا

نو دوی اُویل اے ربه زمونږ لرے والے راولے په مینځ د سفرونو زمونږ کښې او ظلم اوکړو دوی

اَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَمَزَّقْنٰهُمْ

په ځانونو خپلو باندے نو اوګرځول مونږ دوی قصے د عبرت او ذرے ذرے مو کړل

كُلَّ مُمَزَّقٍ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

په پوره ذرے کولو سره، یقینًا په دے کښې ډیر دلیلونه دی

لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ⑲ وَلَقَدْ صَدَّقَ

هر ډیر صبر ناک شکر ګذار لره. او یقینًا رشتنې اوموندلو

چه مسافر به په هغے کښې نه ستړے کیدوا او نه لوږه تنده وه بلکه د یو کلی نه تربل کلی پورے اته میله یا دولس میله مسافت وو. سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِيَ د شپے په سفر کښې خطره زیاته وی لیکن دوی ته هیڅ خطره نه وه د دے وجے نه لیالی ئے مخکښې ذکر کړو یعنی پوره امن وو.

ف١٩ :- په دے آیت کښې د دوی ناشکری او بیا عذاب ذکر کوی. او د نعمت د بدلیدلو سوال دا سے وو لکه چه بنی اسرائیلو د من او سلوی په بدل کښې د زمکے نباتات غوښتلے وو او کافران مکه د امن په بدل عذاب د الله تعالیٰ غوښتلے وو لکه سورة انفال ٣٢ کښې، نو د دوی دُعاګانے قبولے شوے او هغه کلی او آبادئے کمے شوے او ورانے شوے او د یو بل نه لرے شول. وَظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ یعنی د نعمتونو د الله تعالیٰ ناشکری او کړه نو په ځان ئے هغه نعمتونه بند کړل. فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ. یعنی قصے د عبرت چه خلق ئے په خپلو خبرو کښې په طریقه د مثال سره ذکر کوی. وَمَزَّقْنٰهُمْ یعنی په مختلفو ملکونو کښې تقسیم شول څوک شام ته لاړل څوک عمان ته څوک عراق ته څوک تهامه ته لاړل او عمرو بن عامر چه د اوس او خزرج نیکه وو هغه مدینے منورے ته راغے. صَبَّارٍ شَكُوْرٍ مراد د دے نه مؤمن دے ځکه چه لږ صبر او شکر کله کله کافر او مشرک هم کوی. یعنی څوک چه سره د وسعت او فراخ د مالونو نه د الله تعالیٰ په توحید او اطاعت باندے کلک او پوخ وی او د نعمتونو پوره شکر ګذاروی نو هغه د دے واقعے نه ډیر عبرتونه حاصلولے شی.

عَلَيْهِمْ اِبْلِيْسُ ظَنَّهٗ فَاتَّبَعُوْهُ اِلَّا فَرِيْقًا

په دوی باندے ابلیس گمان خپل نو روان شول په هغه پسے مگر یو ډله

مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲۰﴾ وَمَا كَانَ لَهٗ عَلَيْهِمْ

دَ مؤمنانو نه . او نه دۀ ابلیس لره په دوی باندے

ف ۲۰:- دا بیان دَ سبب دَ حال دَ سبا والو دے یعنی دوی اعراض او ناشکری اوکړه او عذاب وریاندے راغے دا په سبب دَ تابعدارے دَ ابلیس سره وَلَقَدْ صَدَّقَ یعنی وجدہ صادقًا یعنی کوم گمان ئے چه کړے وو هغه ئے رشتنیا او منلو خطا نه شو . صَدَّقَ مقابل دَ خطا دے . عَلَيْهِمْ ضمیر اهل سبا ته راجع دے یا عام انسانانو ته راجع دے . ظَنَّهٗ په دے کښ اشکال دا دے چه ابلیس چه دَ اولاد ادم دَ گمراه کولو دَپاره کوم صیغے استعمال کړے دی هغه ټولے په لام او نون ثقیله سره مؤکد دی لکه سورة اعراف ف ۱۶ ف ۱۴ سورة حجر ف ۳۹ سورة بنی اسرائیل ف ۶۲ سورة نساء ف ۱۱۸ ف ۱۱۹ کښ دلالت کوی په یقین باندے نو ظن ئے وے اویل ؟ جواب دا دے چه په راتلونکے زمانه کښ کوم کار مخلوق کوی هغه یقینی نشی کیدے ځکه چه مخلوق په غیب باندے نه پوهیږی لیکن دَ پوخ عزم او ارادے په وجه باندے هغه صیغه دَ تاکید استعمالوی . فَاتَّبَعُوْهُ دا بیان دَ صدق دے . اِلَّا فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ په دے کښ دوه قولونه دی اول دا چه مِنْ بیانیه دے ټول اهل ایمان مراد دی او اتَّبَعُوْهُ نه مراد تابع کیدل دی په شرک او کفر کښ معنیٰ دا ده چه تابعداری اوکړه دوی دَ ابلیس په شرک او کفر کښ مگر یو ډله چه مؤمنان دی هغوی دغه تابعداری نه ده کړے .
دویم قول دا دے چه مِنْ دَ تبعیض دے بعض مؤمنان مراد دی او اتبعوه نه مراد تابعداری کول په هر قسم گناه کولو کښ ، معنیٰ دا ده چه دوی پوره تابعداری دَ ابلیس اوکړه مگر یو ډلے دَ مؤمنانو نه چه هغوی معصوم او پاک دی او هغه پیغمبران دی . نو دا ایت دلیل دے په عصمت دَ انبیاؤ علیهم السلام باندے ځکه چه هغه فریق چه دَ ابلیس هیڅ قسم تابعداری ئے نه وی کړی دَ انبیاؤ نه سوا بل څوک کیدے نشی او که انبیاء گنهگار ثابت شی نو په انبیاؤ باندے به دَ بل چا فضیلت راشی او دا باطله خبره ده .

مِنْ سُلْطٰنٍ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يُّؤْمِنُ بِالْاٰخِرَةِ

هیڅ زور مګر (مقرر کړے دے موږ) د دے د پاره چه جدا کړو موږ هغه چا لره چه ایمان په آخرت باندے لري

مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِيْ شَكٍّ ۗ وَرَبُّكَ عَلٰى كُلِّ

د هغه چانه چه د هغے نه په شک کښ دی، او ستا رب په هر

شَيْءٍ حَفِيْظٌ ﴿۲۱﴾ قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ

څیز حفاظت کوونکے دے۔ ته اووایه را اوبلے هغه کسان چه ګمان کوئے تاسو معبودان

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۚ لَا يَمْلِكُوْنَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ

سوا د الله تعالیٰ نه اختیار نه لري په قدر د یوے ذرے

فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ وَمَا لَهُمْ

په آسمانونو کښ او نه په زمکه کښ او نیشته دوی لره

۲۱ :۔ په دے سره وهم دفعه کوی یعنی دا وهم خوک او نه کړی چه ابلیس په دے خلقو باندے په خپل اختیار سره مسلط او مقرر دے؟ د سُلْطَانٍ نه مراد تسلط او مقرر کیدل دی دا د ابلیس په اختیار کښ نه وه بلکه الله تعالیٰ مسلط کړو د پاره د امتحان د بنی آدمو او علیهم ضمیر تولو بنی آدمو ته راجع دے نو اِلَّا لِنَعْلَمَ سره تقدیر د عبارت دا دے یعنی لکن سلّطناه علیهم لنعلم الخ۔ یا د سلطان نه مراد حجت دے یعنی د ابلیس د پاره په دے بنی آدمو ګمراه کولو باندے هیڅ حجت نیشته لیکن بے حجته ئے ګمراه کوی۔ یا د سلطان نه مراد ګمراه کول کوی او علیهم ضمیر فریقا من المؤمنین ته راجع دے چه دوی لره نشی ګمراه کولے لکه سورة حجر ۴۲ کښ تیر شویدی۔ لِنَعْلَمَ، فراء بغوی ویلے دی چه دا علم په معنیٰ د تمیز سره دے او علم خو الله تعالیٰ ته د دے نه روان دے شته۔ او هر کله چه اصل مقصد د ابلیس او د دے چه خلقو لره د قیامت په باره کښ شک کښ واچوی (ځکه چه تولو ایمانیاتو او عباداتو دارومدار په عقیده د قیامت کښ دے) نو د دے وجے نه دلته ئے من یؤمن بالآخرة الخ ذکر کړے دے او معلومه شوه چه شک کول د قیامت په باره کښ هم کفر دے۔

فِيهِمَا مِن شِرْكٍ وَّمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ﴿۲۲﴾

په دے دواړو کښې هیڅ برخه او نیشته الله لره د دوی نه څوک مددګار.

سټ ۲۲:. د دے آیت نه تر سټ ۳۴ پورے دریم باب دے په دے کښې د څلورم شبهے جواب دے چه هغه بیان د عجز د ملائکو دے او د شرک د بندولو څلور طریقے ذکر کړے دی. بیا درے طریقے د تبلیغ او تعلیم. بیا د منکرینو د رسالت جوابونه او زجرونه دی بیا تخویف اخروی دے په براءت د الهو باطلو د عابدانو خپلو نه.
په دے (سټ ۲۲) کښې ذکر د طریقے د رد دے په مشرکانو باندے په درے طریقو سره او ربط ئے د مخکښې سره دا دے چه د ابلیس اول تصدیق د ظن دا دے چه انسان ئے په شرک کښې مشغول کړے وی نو د هغوی یوهه کول په دے طریقے سره پکار دی چه قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم او ادعو حکم د پاره د زورنے دے. او د زَعَمْتُمْ مفعول حذف دے (چه دوی الهه دی) یعنی دوی ته رامددشه او ئې د پاره د دے چه تاسو ته نفع درکړی یا درنه تکلیف لرے کړی لکه چه ستاسو خیال دے نو جواب د دے پټ دے چه دوی د دے اختیار او طاقت نه لری د دے وجې نه چه لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ اه هر کله چه حاجتونه د انسانانو د آسمان او زمکې سره تعلق لری د دوی نه بهر نیشته د دے وجې دواړه ذکر کړل.
دا رنګ د دوی الهه بعضے آسمانی دی لکه ملائک او بعضے د زمکې دی.
وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ یعنی که څوک او ائې چه د دے الهو اګرچه ملکیت نیشته لیکن کیدے شی چه الله تعالیٰ ورته حصّه ورکړے وی چه هغه ته حصه دار او برخ والا ویلے کیدے شی نو په دے جملے سره ئې جواب او کړو چه الله تعالیٰ دوی لره هیڅ برخه هم نه ده ورکړے نو دوی به تاسوله څه درکړی؟
وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ یعنی که څوک خیال اوکړی چه دوی به د الله تعالیٰ سره په څه کار او تدبیر د دنیا کښې مدد او ملګرتیا کړے وی د دے وجې نه کیدے شی چه دوی بل چاله څه حاجت پوره کړی نو په دے جملے سره د دے جواب ئې اوکړو او دا سے جواب سورة کهف سټ ۵۱ کښې هم موجود دے.

وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهٗ ؕ

او نفع نه ورکوی سفارش په تیز د الله تعالیٰ مګر هغه چا ته چه اجازت ورکړی دهغه د پاره (دوی به ویره کښ دی)

حَتّٰىٓ اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا ۙ قَالَ

تر هغې پورې چه لرې کړے شی ویره د زړونو د هغوی نه وائی دوی څه اُویل

رَبُّكُمْ ؕ قَالُوا الْحَقَّ ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۲۳﴾

رب ستاسو او بیوائی پورته ملائیک چه اُویل ئې حق او هغه پورته دے ډیر لوے ذات دے۔

س۲۳:۔ په دے کښ رد دے په هغه شبهه خلورمه چه ملائک خو شفیع (قهری) کیدے شی نو دوی د بندګئ حق داردی نو مجرد د ملائکو ذکر کوی او دا رنګ د مشرکانو د څلورمے عقیدے رد دے دوی وائی چه دا الهه اګرچه پخپله هیڅ ملکیت نه لری لیکن زمونږ حاجتونه په الله تعالیٰ باندے مجبورًا پوره کوی په طریقه د سفارش کولو سره الله تعالیٰ د دوی د محبت یا محوریزے (عظمت) نه مجبوره شی د جواب حاصل دادے چه بغیر د اذن د الله تعالیٰ نه د دوی سفارش کول نیشته او نه ئې فائده شته او د الله تعالیٰ عادتِ کریمه دادے چه د مشرکانو د پاره د سفارش کولو اذن چالره نه ورکوی۔ وَلَا تَنْفَعُ په دے کښ نفی د اثر او د فائدے د شفاعت ده ځکه چه مقصد د شفاعت غوښتونکو نفع ده لیکن مراد تر بینه نفی د شفاعت ده۔ حَتّٰىٓ اِذَا فُزِّعَ الخ۔ دا حال د شفعاؤ دے په وخت د نزول د اذن د شفاعت کولو کښ۔ یعنی دوی لره چه کوم وخت اذن د شفاعت ورکیدے شی نو دوی به په دغه وخت کښ په ډیر فزع او هیبت کښ وی د وجے د عظمت د الله تعالیٰ نه نو هر کله چه (لږ ساعت روستو) دا هیبت د دوی د زړونو نه لرے کړے شی نو دوی به هغه ملائکو نه تپوس اوکړی څوک چه دوی لره اذن د الله تعالیٰ (رارسوی چه الله تعالیٰ څه حکم اوکړو نو هغه ملائیک به دوی ته اووائی چه (الحق) یعنی د مؤحدینو د شفاعت د پاره ئې اذن اوکړو۔ دویمه توجیه دادہ چه دا حال د ملائکو دے په دنیا کښ، هر کله چه الله تعالیٰ څه حکم نازلوی نو دا ملائک په ډیر هیبت کښ وی نو هر کله چه دا هیبت د دوی د زړونو نه لرے کړے شی نو لاندنی ملائک د بره ملائکو (حکم راوړونکو نه) تپوس اوکړی چه الله تعالیٰ څه حکم اوکړو نو هغوی ورته اووائی چه (الحق) (البته دے حق حکم۔ او هم دا رنګ حدیث د ابو هریره رضی الله عنه مرفوع امام ترمذی (روایتے په بل مخ)

قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

ته اُوایه څوک روزی درکوی تاسو ته دَ آسمانونو نه او دَ زمکے نه

قُلِ اللّٰهُ وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى

ته اُوایه الله تعالیٰ او یقیناً څه یا تاسو ضرور په هدایت باندے یو

اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۴﴾ قُلْ لَّا تُسْـَٔلُوْنَ

یا په ګمراهئ ښکاره کښې . ته اُوایه تپوس نشی کیدے ستاسو نه

نقل کړیدے ـ حاصل دَ دواړه توجیهاتو دادے چه شفاعت کوؤنکی خو بیر عاجز دی ویره کوؤنکی دی دَ الله تعالیٰ نه نو دوی به څرنګه شفاعتِ قهریه (بے اجازته) اوکړیشی لکه چه مشرکان ئې عقیده لری ـ فُزِّعَ دا فعل په معنیٰ دَ سلب الماخذ دے یعنی اُزِیل الفزع (لرے به کړے شی هیبت) ـ

س ۲۴: روستو دَ رد کولو دَ طریقو دَ شرک ته الزامی او اعتراقی دلیل ذکر کوی په رد دَ مشرکانو چه دَ رزق انتظام کوؤنکے صرف الله تعالیٰ دے تو بیا دَ هغهٔ نه سِوا دَ نورو نه ولے حاجتونه غواړئ ؟

قُلِ اللّٰهُ یعنی دوی به دَ عناد دَ وجے نه چپ وی دَ جواب کولو نه ، نو ته ورته جواب اوښایه ـ

وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ داطریقه دَ تعلیم او تبلیغ ده یعنی مشرکان چه اوائی چه مونږ او تاسو یو شان یو هیڅ فرق نیشته یا اوائی چه دا اختلافی مسئلے دی مونږ به دے اختلافی خبرو کښې برخه نه اخلو تو جواب ئې دادے چه داسے نه ده بلکه دا دواړه فریقه دَیو بل سره متضاد دی یو فریق په هدایت او بل په ګمراهئ کښې دے یعنی دا اصولی اختلاق دے فرعی اختلاق نه دے په دے کښې به تاسو ضرور یو طرف ته کیږئ ـ

(تنبیه) دَ هدایت سره ئې علیٰ ذکر کړو او دَ ضلال سره فی ، اشاره ده چه هدایت والا اوچت وی او کلک وی په هدایت باندے او ګمراهئ والا ډوب او غرق وی په تیارو دَ ګمراهئ کښې ـ

عَمَّآ اَجْرَمْنَا وَلَا نُسْـَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۵﴾

دَ هغه چه موږ جرم کړے دی او نه به پوښتنه وشی ستاسو نه دَ هغه عملونو چه تاسو کوئے.

قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا

ته اُووايه جمع به کړی موږ لره رب زموږ بيا به فيصله اوکړی په مينځ زموږ کښ

بِالْحَقِّ ط وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيْمُ ﴿۲۶﴾ قُلْ

په حقه سره او الله تعالی ښۀ فيصله کوونکے دے پوره عالم دے. ته اُووايه

اَرُوْنِيَ الَّذِيْنَ اَلْحَقْتُمْ بِهٖ شُرَكَآءَ

اوښائے ماته هغه کسان چه يو ځائے کړے دی تاسو دَ الله تعالی سره شريکان

كَلَّا ط بَلْ هُوَ اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۷﴾

هيڅ ډېرے نشی کيدے بلکه الله تعالی زور اور حکمت والا دے.

وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيْرًا

او نه ئے ليږلے موږ ته مګر دَ ټولو خلقو دَپاره زيرے ورکوونکے

س ۲۵ :- دا بله طريقه دَ تعليم ده او په دے کښ بيان دَ براءت دے. يعنی که دوی اوائی چه ته دعوت کوے توحيد ته دا لوئے جرم دے حاصل دَ جواب[1] دے که دا جرم زموږ وی نو تاسو باندے ذمه واری نيشته. او دا هم طريقه دَ دعوت ده چه خپل ته ئے جرم اويل (دَ هغوی په ګمان) او دَ هغوی طرف ته ئے صرف دَ عمل نسبت اوکړو.

س ۲۶ :- دا بله طريقه دَ تعليم ده. يعنی فيصله دَ دے خبرے چه کوم يو مجرم دے او کوم يو حق باندے دے په قيامت کښ به کيږی.

س ۲۷ :- دا بله طريقه دَ تعليم ده او رد دے په شرک باندے يعنی طلب دَ دليل دے چه ستاسو په شرکاؤ کښ کوم وصف دے چه په هغے سره تاسو دوی دَ الله تعالی سره شريکان جوړ کړے دی. او کَلَّا نه مخکښ عبارت پټ دے (ردوی څه حاجت پوره کولے شی).

وَّنَذِيرًا وَّلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸﴾

او ډيره ورکوونکے ليکن ډير د خلقو نه ته پوهيږي.

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ إِنْ كُنْتُمْ

او دوی وائي کله به وی دا وعده که چرے تاسو يئ

صٰدِقِيْنَ ﴿۲۹﴾ قُلْ لَّكُمْ مِّيْعَادُ يَوْمٍ لَّا تَسْتَاْخِرُوْنَ

رشتني. ته اُوايه تاسولره نيټه مقرر د يوورځ ده چه ته به شے روستو کيدلے

عَنْهُ سَاعَةً وَّلَا تَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَقَالَ

د هغے نه يو ساعت او نه به شے مخکښ کيدلے. او وائي

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ

کافران هيچرے ايمان نه راوړو مونږ په دے قرآن

ع۳ النصف

ف۲۸:- روستو د اثبات د توحيد نه دا اثبات د رسالت دے. كَافَّةً دا په معنیٰ د عامة اوجميعاً دے حال د النَّاسِ نه او دا حال جوړيدل د الناس نه ابوحيانؒ په البحر المحيط کښ صحيح ثابت کړے دے او رد ئے کړے دے په مفسر بيضاوی باندے او خطيب شربيني هم په تفسير السراج المنير کښ په دے باندے اعتماد کړے دے او دا رنګ په حديث کښ هم وارد دی چه كَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ إِلٰى قَوْمِهٖ خَاصَّةً وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً. او دويمه توجيه دا ده چه کافة په معنیٰ د جامعًا دے حال دے د کاف د ارسلناک نه يعنی جمع کوونکے خلقو لره دين د توحيد ته او ة د پاره د مبالغے ده او دريمه توجيه دا ده چه کافة په معنیٰ د مانع دے يعنی منع کوونکے خلقو لره د شرک او کفر نه.

ف۲۹:- هرکله چه صداقت د نبي بيان شو نو اوس زجر ورکوی منکرينو د رسالت او د قيامت ته. يعنی د دوی خيال وو که ته رسول يئے نو غيب دان به يئے نو د دے وجے مونږ له د عذاب د وخت نه خبر راکړه هغه عذاب چه هغے کښ په نَذِيرًا کښ يا په يجمع بيننا سره اشاره شوی ده.

ف۳۰:- دا جواب د ماقبل دے ليکن سوال د دوی عنادی وو په طريقه د استهزاء کولو نو جواب ئے هم په طريقه د تهديد او د زور نے سره دے. يَوْمٍ مراد د دے وخت نه مرګ يا ورځ د عذاب يا ورځ د قيامت ده.

وَلَا بِالَّذِیْ بَیْنَ یَدَیْهِ ؕ وَلَوْ تَرٰۤی اِذِ الظّٰلِمُوْنَ

او نه په هغه کتابونو چه ددهٔ نه مخکښ دی، او که چرے اُوینے ته هغه وخت ظالمان به

مَوْقُوْفُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚۖ یَرْجِعُ بَعْضُهُمْ

اودرولے شی په نیز د رب د دوی، ورګرځوی به بعضے د دوی

اِلٰی بَعْضِ ِۨ الْقَوْلَ ۚ یَقُوْلُ الَّذِیْنَ اسْتُضْعِفُوْا

بعضو ته جوابونه به وائی هغه کسان چه کمزورے ګڼړلے شویدی

لِلَّذِیْنَ اسْتَکْبَرُوْا لَوْلَاۤ اَنْتُمْ لَکُنَّا مُؤْمِنِیْنَ ﴿۳۱﴾

هغه کسانو ته چه لوئی ئے کړے ده که چرے نه وئے تاسو تو وے به موږ مؤمنان .

س۳۱ :. دا بل زجر دے په انکار د قرآن او د نورو کتابونو الٰهیو سره. مخکښ به دوی په اهل کتابو باندے اعتماد کوؤ لیکن هرکله چه د هغوی نه ئے واوریدل چه زمونږ په کتابونو کښ رد دے په شرک باندے او ذکر شویدے صفت د دے رسول صلّی الله علیه وسلّم نو دے مشرکینو د هغوی د کتابونو نه هم انکار شورو کړو او تابعداری د خپلو مشرانو په دلیل کښ اونیوله. وَلَوْ تَرٰۤی دا تخویف اخروی دے په براءت د الٰهو باطلو چه د دوی مشران وو او د لَوْ جزا پټه ده یعنی که دا حال دهٔ اولیدلو نو اوبه وینی ډیر هیبت ناک حالت لره. الظّٰلِمُوْنَ تابعداران او د دوی متبوعین (مشرکان او مبتدعین) یَرْجِعُ یعنی یو بل ته به جوابونه ورکوی د ملامته کولو او جهګړه به کوی. یَقُوْلُ الَّذِیْنَ دا تفصیل د یرجع دے. اسْتُضْعِفُوْا یعنی دوی په علم او په عقل کښ کمزوری وو او د مشرانو تابعداری ئے کوله او صیغه د مجهول ئے د دے وجے نه ذکر کړه چه دے مشرانو دوی ته علم نه خودلو جاهل ئے پریخودل د پاره د دے چه هغوی ترینه خپلے فائدے حاصلوی.
اسْتَکْبَرُوْا د حق منلو نه ئے ځان لوئے ګڼړلو او په خپل علم او مال ئے فخر کولو او دوی متبوعان دی. لَوْلَاۤ اَنْتُمْ یعنی که تاسو موږ لره د حق نه نه منع کولے او موږه مو نه ګمراه کولے نو موږ به ایمان راوړے وے .

قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْٓا

اویه وائي هغه کسان چه لوئي کړے ده هغه کسانو ته چه کمزوري کړے شوے وو

اَنَحْنُ صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى بَعْدَ اِذْ جَآءَكُمْ

آیا مونږ منع کړے وے تاسو د هدايت نه روستو د هغے نه چه تاسو ته راغی

بَلْ كُنْتُمْ مُّجْرِمِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ

بلکه تاسو وئے مجرمان . او اویه وائي هغه کسان

اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا بَلْ مَكْرُ الَّيْلِ

چه کمزوري کړے شوي وو هغه کسانو ته چه لوئي ئې کړے وه بلکه (منع کړے وو مونږ له) دعوت ستاسو د

وَالنَّهَارِ اِذْ تَاْمُرُوْنَنَآ اَنْ نَّكْفُرَ بِاللّٰهِ

او د ورځے کله چه تاسو مونږ ته بیان کوۓ چه کفر د اوکړو په الله تعالی باندے

وَنَجْعَلَ لَهٗٓ اَنْدَادًا ؕ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ

او جوړ د کړو مونږه هغه لره شریکان . او پټ کاره به کړی پښیمانی

لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ؕ وَجَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ فِيْٓ اَعْنَاقِ

هر کله چه اُوینی عذاب لره او وا یه چوو مونږ طوقونه په ستو نو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا

د کافرانو کښ بدله نه شي ورکیدے مگر

۳۲ :. دا جواب دے د طرف د مشرانو نه یعنی مونږ تاسو باندے څه زور نه دے کړے او نه هم څه صحیح دلیل پیش کړے دے بلکه تاسو د جرم کارونه خوښ کړے وو نو د دے وجے نه مونږ پسے بے دلیله راروان وئے.

مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ

دَ هغه عملونو چه دوی کول. او نه دے لیږلے موږ په هیڅ کلی

مِّنْ نَّذِيْرٍ اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَآ اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ

کښ ویره ورکوونکے مګر اوبه ویل بډ مستو خلقو یقیناً موږ په هغه څیز چه تاسو رالیږلے شوی یئ

بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۴﴾ وَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا

په هغې انکار کوونکی یو. او دوی ویل موږ ډیر مالونو او اولاد والا یو

ف ۳۳:. داجواب دَ طرف دَ کشرانو ته دے یعنی تاسو به شپه او ورځ موږ سره پټ چلونه کول او دَ عوت او تبلیغ به موکولو نو هغه زموږ دَ منع کیدلو سبب شو. او اِذْ تَاْمُرُوْنَنَآ دا دَ مکر تفسیر دے. وَنَجْعَلَ لَهٗٓ اَنْدَادًا دا دَ کفر تشریح ده.
وَاَسَرُّوا دا لفظ دَ اضداد دوته دے پټولو ته هم وئیلے شی یعنی په زړونو کښ به پښیمانه شی ځکه چه پښیمانه کیدل دَ زړه وصف دے او ښکاره کولو ته هم وائي ځکه چه اسار یرالوجه ته ماخوذ دے یعنی دَ پښیمانتیا نښے به دَ دوی تندو او مخونو کښ ښکاره شی. او دا پښیمانتیا دَ دواړو ډلو به وی تابعداران به په ړوند تقلید دَ مشرانو باندے پښیمانه شي او مشران به په دعوت کولو دَ ګمراهۍ باندے پښیمانه شی. وَجَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ مفسر قرطبی لیکلے دی چه اغلال په اصل کښ هغې پټئ ته ویلے کیږی چه دَ څرمنے وی او په هغې باندے ویښته وی او بیا پکښ سپږے پیدا شی نو دا دَ ذلیلانو خلقو تنبه ده او سپو ته اچولے کیږی. او هغه طوق ته وئیلے کیږی چه لاس دَ ستې سره راجمع کوی.
ف ۳۴:. دَ دے ایت نه تر اخره پورے څلورم باب په دے کښ زجر دے په انکار دَ رسالت باندے او دَ انکار سبب ذکر کوی او دَ هغې جواب سره دَ بشارت او تخویف نه تر ف ۳۹ پورے دے بیا تخویف اخروی په رد دَ مشرکین بالملائکه سره بیا نوی بیا زجر دے په انکار دَ قرآن سره او تخویف دنیوی دے. بیا پنځه طریقے دَ تعلیم دی او په آخر کښ تخویف اخروی دے.
په دے (ف ۳۴) کښ زجر دے په انکار دَ رسالت سره او هر کله چه مخکښ ایاتونو کښ ذکر شوه چه ګمراهانو مشرانو دا خلق ګمراه کړے دی په دعوت دَ شرک سره نو اوس ذکر کوی چه دغه مشرانو دعوت دَ انکارِ رسالت هم کړے دے دَ پاره دَ ګمراه کولو دَ کشرانو. مُتْرَفُوْهَا هغه کسان سرمایه دار چه هر وخت په نشه او مستئ دَ دُنیا کښ مشغول وی نو دحق نه جاهل وی.

وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿٣٥﴾ قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ

او نه يو موږ عذاب راكړے شوى. ته اُوايه يقينًا رب زما فراخه وى

الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

روزى چالره چه او غواړى او تنګوى ليكن ډير خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٦﴾ وَمَآ اَمْوَالُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ

پوهه نه لرى. او نه دى مالونه ستاسو او نه اولاد ستاسو

بِالَّتِيْ تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا زُلْفٰٓى اِلَّا مَنْ

په داسے حال چه رانزدے كړى تاسو موږ ته په نزديكت سره مګر هغه څوك

اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ

چه ايمان يَے راوړے دے او عمل يَے كړے دے دَ سنت موافق، نو دغه كسان دوى لره

جَزَآءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوْا وَهُمْ

بدله دوچنده ده په وجه دَ عملونو دَدوى او دوى په

فِى الْغُرُفٰتِ اٰمِنُوْنَ ﴿٣٧﴾ وَالَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ

بنګلو كښ وى امن والا به وى. او هغه كسان چه كوشش كوى

٣٥:- په دے ايت كښ دليل دَ منكرينو ذكر كوى چه زمونږ مالونه او اولاد ډيردى او په موږ باندے هيڅ عذاب نيشته دا دليل دے چه په حقه باندے يو- وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ يعنى اوس هم په موږ باندے عذاب نيشته او هركله چه په حقه باندے يو نو راتلونكے وخت په دنيا او په اخرت كښ به هم په موږ باندے عذاب نه راځى -

٣٦:- دا دَ دوى دَ دليل اول جواب دے چه دَ الله تعالىٰ نظام دے چه په تاسو كښ چالره فراخ رزق وركړے دے او چاله تنګ رزق دا امتحان دے دا خو دليل دَ حقانيت نه دے. وَيَقْدِرُ كښ اشاره ده كه چرے تاسو ټول په حقه باندے وئ نو په تاسو كښ بعضو له تنګ رزق ولے وركړے شوے دے. او په دے ايت كښ دَ لِمَن يشاء نه مراد كافران دى -

٣٧:- دا دويم جواب دے يعنى دَ كفر او دَ شرك په موجودګئ دَ چامال او اولاد سبب دَ نزديكت الله تعالىٰ ته نشى كيدلے يعنى كه مالونه يَے

فِيٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ فِى الْعَذَابِ

په اياتونو زموږ کښې مقابله کوونکي دغه کسان په عذاب کښې به

مُحْضَرُوْنَ ﴿٣٨﴾ قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ

حاضر کړے شي۔ ته اُوايه يقينًا رب زما فراخوي روزي

لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ؕ وَمَآ اَنْفَقْتُمْ

چا لره چه اوغواړي د بندګانو خپلو نه او تنګوي هغه لره او هغه چه تاسو خرچ کوئے

مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿٣٩﴾

څه خيز نو عوض به درکوي د هغے او الله تعالیٰ غوره د روزئے ورکوونکو نه دے۔

ډيروي يا مالونه خرچ کوي او دا رنګ که اولاد ئے ډيروي يا اولاد ورته دُعاګانے کوي خو د کافرانو د پاره په دے سره قربت او ثواب نه حاصليږي۔ بِالَّتِيْ دا خبر د مَا دے او په دے خبر کښې کله کله با د تاکيد د پاره داخليږي زُلْفٰى مفعول مطلق من غير لفظه دے ليکن معنیٰ ئے نزديکت دے۔ اِلَّا مَنْ اٰمَنَ دا استثناء منقطع ده په معنیٰ د لکن سره او خبر ئے فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ دے يا استثناء متصل ده يعني مګر مالونه او اولاد د مؤمن هغه له نزديکت الله تعالیٰ ته ورکوے شي چه مالونه د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کړي او اولاد ئے صالح وي نو دا د هغهٔ د پاره سبب د قربت او ثواب دے۔ جَزَآءُ الضِّعْفِ مراد د ضعف نه زيادت دے صرف دوچنده دے مراد، ځکه چه د حسنے جزاء د لس چنده نه شروکيږي۔ الْغُرُفٰتِ دا ئے جمع ذکر کړه د پاره د دے چه دلالت اوکړي په کثرت باندے۔

س ٣٨:۔ دا تخويف دے هغه مالدارو ته چه د مال او اولاد په ذريعه د الله تعالیٰ د دين مقابله کوي۔ يَسْعَوْنَ دا صيغه ئے د دے د پاره راوړه چه دلالت اوکړي په نوے نوے طريقو د مقابله کولو باندے۔ مُعٰجِزِيْنَ يعني اراده لري د عاجزکولو د مؤحدينو د اشاعت د توحيد نه يا اراده لري د عاجزکولو د الله تعالیٰ په خپل ګمان سره۔

س ٣٩:۔ دا دريم جواب دے يعني مالداري غريبي د الله تعالیٰ د طرف نه په ايمان والو کښې هم شته نو ستاسو د پاره دليل د فضيلت نشي کيدلے۔ او دا ايت په باره د مؤمنانو کښې دے په دے وجه چه مِنْ عِبَادِهٖ ئے ذکر کړے او روستو دواړه جملے هم د مؤمنانو سره تعلق لري۔ (پاتے په بل مخ)

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ يَقُولُ لِلْمَلٰٓئِكَةِ

او په هغه ورځ چه راجمع به کړی ټول بیا به اُوائی ملائیکو ته

اَهٰٓؤُلَآءِ اِيَّاكُمْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ ﴿۴۰﴾ قَالُوْا سُبْحٰنَكَ

آیا دا هغه کسان دی چه تاسو له ئې عبادت کوؤ . دوی به اُوائی پاکی ده تالره

اَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ بَلْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ

ته زمونږ واکدار ئې دا خلق نه دی بلکه دوی بندګی کوله

الْجِنَّ ۚ اَكْثَرُهُمْ بِهِمْ مُّؤْمِنُوْنَ ﴿۴۱﴾ فَالْيَوْمَ

دَ پیریانو ډیرو دَ دوی په هغوی باندے یقین لرلو تو نن ورځ

فَهُوَ يُخْلِفُهٗ یعنی مؤمن چه خرچ کوی نو الله تعالیٰ هغه لره عوض ورکوی په دنیا او آخرت کښ لکه چه حدیث دَ صحیح مسلم کښ راغلے دی. اللهم اعط منفقا خلفا. وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ هر کله چه انسانانو کښ دا صفت هم استعمالیږی چه پلار اولاد له رزق ورکوی بادشاه لښکر له رزق ورکوی نو دَ دے وجے نه رازقین ئې جمع صیغه راوړه. او خَیْرُ دَ دے وجے نه دے چه دَ الله تعالیٰ رزق ورکول همیشه دی او هغه پیدا کوؤنکے دَ اسبابو دَ رزق دے او هغه پرے عوض نه غواړی.

سنه ۴۰ :- دا تخویف اخروی دے رد دے په مشرکین بالملائکه باندے.

اَهٰٓؤُلَآءِ اِيَّاكُمْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ دا تپوس دَ پاره دَ توبیخ او ملامته کولو دَ مشرکانو دے لکه تپوس کول دَ عیسیٰ علیه السّلام نه په سورة مائده سنه ۱۱۶ کښ. یعنی مشرکانو دعویٰ کوله چه مونږ ته دے ملائکو ویلی وو چه زمونږ عبادت کوئې نو دا په هغوی باندے رد دے.

سنه ۴۱ :- دا جواب دے دَ طرف دَ ملائکو نه په ترتیب سره چه مونږ اے الله بغیر ستانه بل متصرف حق دار دَ بندګئ نه ګنړو نو څنګه دوی ته دعوت دَ شرک ورکړو؟.

مِنْ دُوْنِهِمْ په دے کښ اشاره ده قطع دَ تعلق دَ دوی نه دَ مشرکانو نه.

بَلْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ الْجِنَّ یعنی پیریانو په دوی ته شکلونه جوړ کړه او ورته به ئې ویل چه مونږ ملائک یو او ستاسو مدد کوو. بَلْ اَكْثَرُهُمْ بِهِمْ مُّؤْمِنُوْنَ یعنی دوی دوه قسمه دی اول هغه قسم چه دَ پیریانو عبادت کوی په دے عقیده باندے چه دا ملائک دی او دا قسم لږ خلق دی .او دویم قسم هغه دی چه په پیریانو باندے عقیده لری چه دوی متصرف دی او غیب دان دی او دَ هغوی عبادت کوی او دا قسم ډیر دی.

لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَّلَا ضَرًّا ؕ

اختیار نه لري بعض ستاسو د بعضو د پاره د نفع او نقصان

وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ

او به وايو موږ هغه کسانو ته چه شرک يې کړے دے اوڅکئ عذاب د اور

الَّتِي كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿۴۲﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ

هغه چه وئ تاسو د هغې انکار هم کوئ . او کوم وخت چه اولوستلے شي

عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا

په دوی باندے ايا تونه زموږ ښکاره دوی وائي نه دے دا مګر

رَجُلٌ يُرِيدُ أَنْ يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ

يو سړے دے غواړي چه واړوي تاسو لره د بندګئ د هغه چا نه چه بندګي کوله

آبَاؤُكُمْ ۚ وَقَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ مُّفْتَرًى ؕ

مشرانو ستاسو او دوی وائي نه دی دا مګر دروغ جوړ کړے شوی ،

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ ۙ

او وائي هغه کسان چه کفر يې کړے دے په باره د حق کښ چه دوی ته راغې

سـ۴۲ :- دا نتيجه د ما قبل ده يَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ شامل دے ملائکو او پيريانو ته۔ نَفْعًا شفاعت او نجات۔ وَلَا ضَرًّا عذاب او هلاکت ضرر رسول يا ضرر دفع کول دواړه مراد کيدے شي۔

فائده :- سورة سجده سـ۳ کښ ( الذی کنتم به تکذبون ) ذکر کړيدے او دلته بها تکذبون دے د دے وجه داده چه هلته ضمير راجع دے عذاب ته او هغه مذکر دے او دلته ضمير راجع دے نار ته او هغه مونث دے او بيا وجه د فرق داده چه سورة سجده کښ ذکر د داسے وخت دے چه دوی اور ته داخل شوے دی نو عذاب يې اوليدلو نو د هغې انکار ختم شو او دلته د حشر حالت دے اور ته نه دی داخل شوی نو اول په دوی اور او وينی محکه چه هغه محسوس دے بښکاريږي نو انکار د اور نه په ختم شی۔

إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٤٣﴾ وَمَا آتَيْنَاهُم

نه دے دا مګر جادو ښکاره دے. او نه دی ورکړی مونږ دوی ته

مِّنْ كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا ۖ وَمَا أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ

کتابونه چه دوی ئے لولی (دپاره د اثبات د شرک) او نه لیږلے دے مونږ دوی ته

قَبْلَكَ مِن نَّذِيرٍ ﴿٤٤﴾ وَكَذَّبَ الَّذِينَ مِن

ستا نه مخکښ هیڅ ویره ورکوونکے. او تکذیب کړے وو هغه کسانو چه د

قَبْلِهِمْ وَمَا بَلَغُوا مِعْشَارَ مَا آتَيْنَاهُمْ

دوی نه مخکښ وو او نه دی رسیدلی (دا موجوده خلق) لسمے حصے د هغه مالونو ته چه مونږ هغوی ته ورکړے وو

فَكَذَّبُوا رُسُلِي ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٤٥﴾

نو تکذیب اوکړو هغوی د رسولانو زما نو څه رنګ شو عذاب زما.

۴۳:- دا زجر دے په انکار د قرآن او د رسول صلی الله علیه وسلم په ذکر کولو د درے اعتراضونو سره اول داچه مونږ د مشرانو د لارے نه اړوی یعنی دوی د قرآن په مقابله کښ تقلید د اباؤ پیش کوی. دویم داچه إِفْكٌ دے یعنی هغه دروغ چه حقیقت پکښ بالکل بدل شوید ے. مُفْتَرًى یعنی الله تعالیٰ ته ئے په دروغه سره نسبت کوی.

فائده:- اول او دویم انکار د توحید او د قرآن دے نو هغه د شرک او د جهل کار دے او دریم انکار د رسول دے دا د کفر او د ضد د وجے نه نو په دے وجه ئے د آخری اعتراض سره وقال الذین کفروا اُویل.

۴۴:- دا رد دے د دوی په ماقبل اقوالو باندے یعنی د دوی سره هیڅ منزّل دلیل نیشته د دوی په شرک باندے او نه ورسره د مخکښ یو رسول قول په دلیل کښ شته. په دے کښ اشاره ده چه دلیل شرعی د الله کتاب وی یا د رسول سنّت وی.

۴۵:- په دے کښ تخویف دنیوی دے په ذکر د عذاب سره په تیر شوؤ قومونو باندے مِعْشَارَ معشار عشر د عشیر ته وائي او عشیر عشر د عشر ته او عشر لسمے حصے ته وائي نو مراد ترینه زرمه حصّه شوه نو دا ډیره مبالغه شوه. یعنی د دے موجوده کافرانو سره د مخکښنو په نسبت

قُلْ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَاحِدَةٍ ۖ أَن تَقُومُوا لِلَّهِ

ته اُوایه یقیناً زه پند کووُم تاسو دَ عذاب نه په یوکلمے سره (چه توحید دَے) اودریږئ دَ الله تعالیٰ دَپاره

مَثْنَىٰ وَفُرَادَىٰ ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا ۚ مَا بِصَاحِبِكُم

دوه دوه او یو یو بیا سوچ اوکړئ (په دے کلمه کښ) نیشته ستاسو په خیرخواه باندے

مِّن جِنَّةٍ ۚ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ

هیڅ لیونتوب نه دے دِے مگر ویره درکوونکے دے تاسو لره مخکښ

عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴿٤٦﴾ قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ

دَ عذاب سخت نه۔ ته اُوایه هغه چه غوښتلے وی ما ستاسو نه څه مزدوری

زَرمه حِصّه دَ قوت دَ بدن او مال او هنر او اوګد والے دَ عمر نیشته۔ په دے ایت کښ ئے تکذیب دوه کرته ذکر کړے دے اول تکذیب دَ توحید او دَ ایاتونو دے او دویم دَ رسولانو دے۔ نَكِيرِ مراد دَ دے نه انکار کول دَ چا دَ بد عمل دے په طریقه دَ عذاب ورکولو سره۔

۴٦ :۔ دا طریقه دَ دعوت او دَ تعلیم ده یعنی منکرین وائی چه ته مونږ په ډیرو خبرو سره تنګوے نو ته مجنون ئے حاصل دَ جواب دا دے چه زه وعظ کوم او تاسو دَ عذاب نه بچ کووم صرف دَ یوے کلمے په بیان سره چه هغه کلمه دَ توحید ده خو جامع ده ټولو ایمانیاتو لره۔

أَن تَقُومُوا لام پکښ مقدر دے او مراد دَ قیام نه توجّه کول دی حق ته۔ لِلَّهِ مراد دَ دے نه اخلاص کول دی۔ مَثْنَىٰ وَفُرَادَىٰ یعنی چا چه په ځان اعتماد اوکړو چه زما عقل او رائے پوره ده نو هغه دِ یواځے توجه اوکړی او څوک چه په ځان پوره اعتماد دَ پوهے نه لری نو دَ بل ملګری سره دِ شی۔ او هر کله چه دَ اکثرو انسانانو یواځے رائے او عقل کښ نقصان دے نو دَ دے وجے نه مَثْنَىٰ ئے مخکښ ذکر کړو۔ ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا یعنی دَ اخلاص نه روستو فکر اوکړئ په هغه توحید کښ چه دے رسول صلی الله علیه وسلّم په هغے باندے راتلل کړے دی نو تاسو ته به ښکاره شی چه مَا بِصَاحِبِكُم مِّن جِنَّةٍ۔

فَهُوَ لَكُمْ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ ۖ وَهُوَ

نو هغه دِ ستاسو شي نه دے زما اجر (مزدوري) مګر په الله تعالیٰ باندے دهٔ او الله تعالیٰ

عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿٤٧﴾ قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ

په هر څيز باندے حاضر او ناظر دے۔ ته اُووايه يقيناً رب زما وركذاري

بِالْحَقِّ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿٤٨﴾ قُلْ جَاءَ الْحَقُّ

حق لره (په باطل باندے) عالم دے په ټولو غيبو باندے۔ ته اُووايه حق راغے

وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ ﴿٤٩﴾ قُلْ

او نه شي پيدا كولے باطل (د حق په مقابله كښ) اول پيدائش او نه دوباره پيدائش كولے شي۔ ته اُووايه

س٤٧:۔ دا بله طريقه دَ دعوت ده يعني منكرين كه دا خيال اوكړي چه دے لېونے نه دے ليكن دَ دُنيا دَ مال غرضي دے نو جواب ئې وركړو۔ مَا سَأَلْتُكُم الخ دا ئې په جمله شرطيه سره ذكر كړو دَ تاكيد دَ پاره يعني كه ما چرے ستاسو نه عوض غوښتلے وي نو په ما باندے دَ هغے اثبات اوكړئ نو زما عادت تاسو ته معلوم دے چه څه په دين باندے ستاسو نه هيڅ عوض نه غواړم۔

س٤٨:۔ دا بله طريقه دَ دعوت او دَ تعليم ده يعني منكرين وائي چه هر كله ستا دنيوي غرض نيشته نو بيا دَ څه وجے نه زمونږ دَ مشرانو دَ دين خلاف كوے حاصل جواب دادے چه دا دَ الله تعالیٰ كار دے چه په حق سره باطل باندے ګذارونه كوي دَ باطل دَ ختمولو دَ پاره لكه سورة انبياء س١٨ كښ تير شوے دي۔ او الله تعالیٰ حق او باطل باندے عالم دے ځكه چه علام الغيوب دے۔

س٤٩:۔ دا بله طريقه دَ دعوت ده يعني منكرين وائي چه ته رد كوے زمونږ په طريقه او دين باندے چه زمونږ دين باطل او خپل حق ګڼړے نو دَ دے رد كولو څه فائده اوشوه؟ جواب اوشو چه په دے سره حق ښكاره شو او باطل ختم شو (يعني نزدے ده چه دين توحيد به په شرك باندے غالب شي) لكه چه روايت دَ ابن مسعود رضي الله عنه (چه خطيب شربيني ذكر كړے دے) كښ راغلے دي چه نبي صلّى الله عليه وسلّم دَ فتح مكے په وخت چه راغے او دَ كعبے نه چاپيره درے سوه شپيته بتان وو نو هر يو به ئې په څوكه باندے تيغ وهلو او ويل به ئې "جاء الحق وزهق الباطل وجاء الحق وما يبدئ الباطل وما يعيد"

مَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ، دا كنايه ده دَ هلاكت نه يعني (پاتے په بل مخ)

اِنْ ضَلَلْتُ فَاِنَّمَآ اَضِلُّ عَلٰى نَفْسِىْ ج

که چرے زۀ بے لارے یم نو یقیناً بے لارے کیږم وبال به زما په ځان باندے وی

وَاِنِ اهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوْحِىٓ اِلَىَّ رَبِّىْ ط اِنَّهٗ

او که چرے زۀ هدایت والا یم نو په دے سره چه وحی کرې ده ماته رب زما یقیناً هغه هرڅه

سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ ﴿۵۰﴾ وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ فَزِعُوْا

اوری نزدے دے او که چرے اوینے ته هغه وخت چه دوی به ګبراؤ شی

فَلَا فَوْتَ وَاُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ﴿۵۱﴾

نو نه به وی بچ کیدل او اوبه نیولے شی دوی د مکان (ځائے) نزدے نه

باطل دَحق په مقابله کښې دا سے هلاک شوچه نه اوس سر بښکاره کولے شی او نه به بیا سر بښکاره کړی تفسیر سراج المنیر دَدے په تائید کښې قول دَ عبید ذکر کړے دے۔

دویمه توجیه دَحسن بصری نه نقل ده چه باطل معبود خپل عابدانو ته نه په اول (دنیا) کښې نفع ورکولے شی او نه په آخرت کښې۔

دریمه توجیه دا ده چه باطل معبود نه اول پیدا ئیش کولے شی او نه دوباره پیدا کول، نو دَ هغوی عبادت دَ توحید په مقابله کښې تشی بښکاره کیدا لے۔

ف۵۰:۔ دا بله طریقه دَ دعوت او دَ تعلیم ده یعنی منکرین وائی چه تا دین دَ مشرانو ته باطل اویل نو معلومه شوه چه ته ګمراه یې ؟

حاصل دَ جواب دا دے چه بالفرض که ځه ګمراه یم نو په تاسو باندے دَ هغ څه وبال نیشته لیکن بل طرف ته هم غور اوکړئ که ځه په هدایت باندے یم نو ما سره حجت شته او تاسو منکر یئ نو بیا خو به په تاسو باندے وبال او عذاب راځی۔

ف۵۱:۔ داتخویف دے یعنی چه عذاب په تاسو باندے راشی څکه چه تاسو دَ هدایت نه انکار کوئ نو بیا بچ کیدل نیشته۔ فَزِعُوْا دا عام دے دَ دنیا عذاب او دَ قبر او دَ حشر عذاب ټولو ته شامل دے۔ مَكَانٍ قَرِيْبٍ یعنی هر ځائے الله تعالیٰ ته نزدے دے۔

وَّقَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖ ۚ وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ

او دوی به اُوائي ایمان راوړے دے مونږ په دے باندے او کله به وی دوی لره رانیول دَ ایمان

مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ ۝٥٢ وَّقَدْ كَفَرُوْا بِهٖ

دَ ځائے لرے نه ۔ او حال دا چه دوی کفر کړے دے په دے باندے

مِنْ قَبْلُ ۚ وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ مِنْ

دَ مخکښ نه او ویشتلے دوی دَ توک خبرے دَ

مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ ۝٥٣ وَحِيْلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ

ځائے لرے نه ۔ او پرده به راشی په مینځ دَ دوی او دَ هغه

۵۲:۔ دا دفع دَ وهم ده یعنی دوی به وائي چه مونږ به په هغه وخت کښ ایمان راوړو نو نجات به شو دَ عذاب نه جواب اوشو په دے قول سره ۔
وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ یعنی دنیا دَ آخرت نه لرے پاتے شوے ده چه دَ هغه لرے ځائے نه په څرنګه ایمان حاصل کړئ یعنی دَ ایمان دَ حاصلولو ځائے دنیا وه او هغه دَ دوی نه لرے پاتے شوه ۔

**فائده** :۔ هرکله چه قیامت راتلونکے څیز قریب وی نو دَ دے وجے نه یئے په ډیرو آیاتو کښ قیامت ته قریب ویلے دے لکه لعلّ الساعة تکون قریبا ۔ اقتربت الساعة ۔ او کوم څیز چه تیر شی نو هغه لرے شی دَ دے وجے نه په دے آیت کښ دنیا ته بعید اویلے شو نو معلومه شوه چه دَ دے آیاتو نو په مینځ کښ هیڅ اختلاف نیشته ۔

۵۳:۔ دا دَ مخکښ آیت دَ پاره وجه ذکر کوی یعنی دَ دوی ایمان اوس نه قبلیږی چه دوی مخکښ کفر کوۓ او هیڅ دلیل ورسره نه وۓ ۔ وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ دا کنایه ده دَ توک او اټکل (بے دلیله) فتوۓ او حکمونو نه په باره دَ قرآن او رسول او قیامت کښ ۔ مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ دا هم کنایه ده چه دَ بے دلیله حکمونو مثال داسے دے لکه چه دَ لرے ځائے نه په یو څیز باندے دَ غشو یا ګولو ګذارونه کوی او ورته نه ښکاریږی ۔ نو بعید کنایه ده دَ غائب نه ۔

مَا يَشْتَهُوْنَ كَمَا فُعِلَ بِاَشْيَاعِهِمْ مِّنْ

خیز کښ چه دوی غوښتلو لکه چه کار او کړے شو د دوی د ملګرو سره د.

قَبْلُ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا فِىْ شَكٍّ مُّرِيْبٍ ﴿۵۴﴾

مخکښ نه یقیناً دوی وو په شک کښ چه پوخ شک دے.

سـ۵۴:۔ داهم تخویف کښ داخل دے یعنی په وخت د عذاب د دنیا او اخرت کښ د دوی تمنا کانے په بے فائدے شی یو تمنا دا چه په وخت د عذاب کښ به اٰمنّا اوایو نو نجات به حاصل شی یله دا چه جنت به حاصل کړو یا دا چه دنیا ته به واپس او ګرځولے شو۔ حِیل او فعل هغه فعلونه چه فاعل ئے ماده د فعل وی یعنی وقعت الحیلولة و فعِل الفعل۔
مُرِیْبٍ د پاره د تاکید د شک دے یعنی هغه شک چه انسان لره انکار ته اورسوی۔

ختم شو تفسیر د سورة سبا په فضل وکرم د مولا۔

سُورَةُ فَاطِرٍ ٣٥ مَكِّيَّةٌ ٤٣ — بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ — اٰيَاتُهَا ٤٥ رُكُوْعَاتُهَا ٥

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ جَاعِلِ

ټول صفتونه د خدائے خاص الله تعالى لره دى چه د اول نه پيدا کوونکے د آسمانونو او د زمکے دے مقرر کوونکے

الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا اُولِيْٓ اَجْنِحَةٍ مَّثْنٰى وَ

د ملائکو دے رسولان وزرو والا دى دوه دوه او

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**سورة فاطر** - او د دے بل نوم سورة الملائکه دے

**ربط** د دے سورت د سورة سبا سره په څو طريقو دے اوله طريقه دا ده چه په هغه سورت کښ نقلى دليلونه په اثبات د توحيد باندے وو نو په دے سورت کښ ديارلس عقلى دليلونه ذکر کوى. دويمه طريقه دا ده چه په هغه سورت کښ رد وو د شبهاتو نو په دے سورت کښ تفريع ده په هغے باندے په رد د شرک فى التصرف والدعاء سره. دريمه طريقه دا ده چه د هغه سورت اختتام وو په انهم لفى شك مريب سره او شک دا سے چه حق باطل کښ فرق نه کنړى نو په دے سورت کښ دا سے دليلونه او مثالونه ذکر کوى چه دلالت کوى په عدم مساوات او په اختلاف د حق او باطل باندے.

**دعوىٰ د دے سورت** - رد د شرک فى الدعاء دے په عقلى دليلونو او مثالونو سره.

**خلاصه د سورت** - په دے سورت کښ درے بابونه دى. اول باب تر ١٥ پورے دے په دے کښ دعوىٰ د توحيد په دوه تعبيرونو سره ده. الحمد لله ١ لا اله الا هو ٢ او اته عقلى دليلونه دى په ښائسته ترتيب سره او په مينځ د دليلونو کښ تسلى ده رسول الله صلى الله عليه وسلم ته او تحذير د دوه دهوکو ورکوونکو او تخويف او بشارت دے او آخر کښ تفريع ده په رد د شرک فى الدعاء سره.

ثُلٰثَ وَرُبٰعَ ؕ یَزِیْدُ فِی الْخَلْقِ مَا یَشَآءُ ؕ

درے درے او څلور څلور زیاتول کوی په پیدائش کښې څومره چه اوغواړی

اِنَّ اللّٰهَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ①

یقینًا الله تعالیٰ په هر څیز باندے قدرت والا دے۔

مَا یَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا

هغه چه پرانزی الله تعالیٰ خلقو لره څه رحمت نو نیشته

په دے ایت (۱) کښې دعویٰ د توحید ده په الحمدلله سره او دا پنځم سورت دے په قرآن کریم کښې چه په اول کښې ئې حمد ذکر دے. فاطر السمٰوٰت والارض. فطر په اصل کښې دا دے چه یو څیز او چوی او بل څیز ترینه ښکاره شی لکه چه جامه او چوی او غانښ ترینه را او ځی یا زمکه او چوی او اوبه ترینه را اوځی نو دلته دوه توجیه دی اول دا چه د عدم (نیشت والی) نه ئې وجود ته راښکاره کړل او دا معنیٰ مشهوره ده او دویمه توجیه دا ده چه اسمان ئې او چوولو (دروازے په کښې جوړ کړے دی) نو ملائک ترینه را کوزیگی او وحی نازلیگی او د بره طرف نه بارانونه نازلیگی او زمکه ئې او چوله نو چینے د اوبو، خزانے د سرو او سپینو او نیلو او بوټی او نے ترینه را وباسی. او روستو جمله هم د دے معنے سره مناسبت لری۔ جَاعِلِ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا دا ذکر د هغه مخلوق دے چه په هغوی سره ربط دے په مینځ د اسمان او زمکه کښې. رُسُلًا یعنی د ملائکو په ذریعه وحی رالیگی انبیاء علیهم السّلام ته او الهام او رشتنی او صالح خوبونه راځی اولیاؤ ته او د ملائکو په واسطه د ټولو بندګانو عملونه لیکی او د دے ملائکو په واسطه د بعض بندګانو حفاظت کوی۔ دا ټول په دے ایت کښې داخل دی۔ مَثْنٰی وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ د وزرو په لحاظ سره په ملائکو کښې تفاوت دے یَزِیْدُ فِی الْخَلْقِ مَا یَشَآءُ اشاره ده چه د بعض ملائکو وزرے زیاتے دی لکه چه حدیث د مسلم کښې وارد دی چه نبی صلی الله علیه وسلّم جبرائیل علیه السّلام لره په اصلی شکل کښې اولیدلو چه د اسمان غاړے ئې پټے کړے وے او د هغه شپږ سوه وزرے وے۔ او د دے وزرو په تفصیلی کیفیت باندے الله تعالیٰ عالم دے او دا رنګ مفسرینو په دے کښې داخل کړے دی د ملائکو او د انسانانو په قد و قامت کښې تفاوت او په ښوره والی د اعضاؤ او په خائسته کښې او فصاحت او بلاغت د خبرو کښې او نورو اوصافو کښې۔

مُمۡسِكَ لَهَا ۚ وَمَا يُمۡسِكۡ ۙ فَلَا مُرۡسِلَ لَهٗ

بندوونکے دَ هغې او هغه چه بند کړی نو نیشته آزادوونکے دَ هغې

مِنۡۢ بَعۡدِهٖ ؕ وَهُوَ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ﴿۲﴾

روستو دَ بندولو دَ هغه نه او الله تعالیٰ زور آور او حکمت والا دے.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اذۡكُرُوۡا نِعۡمَتَ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ ؕ

اے خلقو یاد کړئ احسان دَ الله تعالیٰ په تاسو باندے

هَلۡ مِنۡ خَالِقٍ غَيۡرُ اللّٰهِ يَرۡزُقُكُمۡ

آیا شته دے پیداکوونکے سوا دَ الله تعالیٰ نه چه روزی درکړی تاسو لره

مِّنَ السَّمَآءِ وَالۡاَرۡضِ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۫ۖ

دَ آسمان او زمکے نه نیشته حق دار دَ بندگۍ سوا دَ هغه نه

فَاَنّٰى تُؤۡفَكُوۡنَ ﴿۳﴾ وَاِنۡ يُّكَذِّبُوۡكَ

نو څه رنګے اړولے کیدلے شئ تاسو دَ توحید نه. او که چرے دوی تا نه دروغژن وائی

۲:. دا دویم دلیل عقلی دے. روستو دَ خلق دَ اعیانو نه ذکر دَ حالاتو دَ وسعت او دَ تکلیف دے. رَّحۡمَةٍ دا لفظ وسعت دَ رزق او صحت دَ عافیت او خوشحالے او بارانونه او هر قسم نعمت دنیویه او نعمتِ دینیه ته شامل دے. او په دے آیت کښ رد دے په شرک فی التصرف باندے او فَلَا مُمۡسِكَ او لَا مُرۡسِلَ عام دے. یعنی هیڅوک نبی او ولی او ملک او جن او بتان او ټول معبودان من دون الله دَ هیچا دَ نفع او ضرر او فائدے ورکولو او دَ نقصان دفع کولو قدرت او اختیار نه لری.

۳:. دا دریم دلیل عقلی دے او په دے کښ خطاب عام دے یعنی نور نعمتونه دَ الله تعالیٰ بے شماره دی په زړه او په ژبه سره یٔ یاد کړئ یعنی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه یٔ اوګڼړے او هغه ته یٔ نسبت کوئ. هَلۡ مِنۡ خَالِقٍ غَيۡرُ اللّٰهِ دا په مینځ کښ جواب دَ سوال دے یعنی که څوک وهم اوکړی چه نعمتونه مور او پلار او نور سخیان خلق هم ورکوی؟ نو حاصل دَ جواب دا دے چه هغوی دَ دے نعمتونو پیداکوونکی نه دی نو نعمت دَ هغوی دَ طرف نه نه دے. او لوئ نعمت رزق پیدا کول دی نو هغه یٔ په تخصیص سره ذکر کړو. لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ دا نتیجه دَ تیرشوی دلیلونو ده فَاَنّٰى تُؤۡفَكُوۡنَ دا زورنه ده او طلب دَ دلیل دے دَ مشرکانو نه چه په کوم دلیل دَ توحید نه شرک ته اړولے شوی یٔ.

فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ ؕ وَ

نو یقیناً دروغژن ویلے شوے دی ډیر رسولان نو ته ستا نه مخکښ او

إِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ۝٤ يَا أَيُّهَا النَّاسُ

خاص الله تعالیٰ ته گرځولے کیدے شی ټول کارونه. اے خلقو

إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ

یقیناً وعده د الله تعالیٰ حقه ده نو نه دِ دهوکه کوی تاسو لره ژوند

الدُّنْيَا ۚ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللَّهِ الْغَرُورُ ۝٥

دنیوی او نه دِ دهوکه کوی تاسو په الله تعالیٰ باندے دهوکه درکوونکے.

إِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا ؕ

یقیناً شیطان تاسو لره دُشمن دے نو او نیسئ هغه لره په دُشمنئ سره

ف۴:۔ په دے آیت کښ صداقت دَ رسول صلی الله علیه وسلّم ذکرکوی روستو دَ بیان دَ توحید نه او تسلّی هم ده هغهٔ ته۔ فَقَدْ كُذِّبَتْ جزاء دَ شرط په اصل کښ محذوف ده یعنی فاصبر (صبر کوه) او دَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ نه روستو هم صبروا حذف دے یعنی هغوی هم صبر کړے وو۔

فائده:۔ رُسُلٌ ئے نکره ذکر کړو یعنی ډیر رسولان وو او ډیرے معجزے او آیات ورسره وو او ډیرو عمرونو والا وو او ډیر مصیبتونه پرے راغلی وو۔ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ یعنی عذاب به ورکوی مکذبینو نه او ثواب به ورکوی صبر کوونکو ته۔

ف۵:۔ په دے کښ ذکر دَ اثبات دَ قیامت دے سرهٔ دَ تحدید دَ اسبابو دَ انکار دَ هغے نه۔ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ په دے کښ مراد هغه رجوع الی الله ده چه مخکښ آیت کښ ذکر کړے شوه۔ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا مراد دَ دے نه مشغولیدل دی په مال دَ دنیا او په مزو دَ هغے او شهواتو دَ هغے باندے تر دے پورے چه انسان غافل شی دَ آخرت او دَ مرګ نه یا منکر شی دَ آخرت نه۔ بِاللَّهِ الْغَرُورُ دا سے سورة لقمان ۳۳ کښ هم تیر شوے دی. الْغَرُورُ شیطان انسی او جنّی دواړو ته شامل دے۔

إِنَّمَا يَدْعُوا حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحٰبِ

يقينًا رابلي هغه خپله ډله د دې د پاره چه اوګرځي د اور

السَّعِيرِ ﴿٦﴾ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ عَذَابٌ

والو نه هغه کسان چه کفر ئې کړې وي دوی لره عذاب

شَدِيْدٌ ۖ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

سخت دے او هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې د سنت موافق کړي

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ﴿٧﴾ اَفَمَنْ

دوی لره بخشش دے او ثواب لوے دے. آیا هغه څوک چه

زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ فَرَاٰهُ حَسَنًا ۖ فَاِنَّ اللّٰهَ

ښائسته کړے شوے وی هغه لره بد عمل د هغه نو وینی هغے لره ښائسته نو یقینًا الله تعالی

يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ۖ

ګمراه کوی چا لره چه او غواړی او هدایت ورکوی چا ته چه او غواړی

فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرٰتٍ ۖ

نو لاړه نشی ساه ستا په دوی پسے د وجے د افسوسونو نه.

ت٦: دا علّت دے د ما قبل د پاره. فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا یعنی په عقائدو او اعمالو کښ د هغه دا سے مخالفت کوئ لکه چه د دشمن مخالفت کیدیشی - او قشیری نه نقل دی چه د دغه دشمن نه په مدد د الله تعالی سره ځان بچ کوئ لکه چه هغه ستاسو د دشمنئ نه غفلت نه کوی نو تاسو هم د الله تعالی نه په مدد غوښتلو کښ هیڅ وخت غفلت مه کوئ. او قرطبی د ابن سماک نه نقل کړے دی " هائے تعجب دے د هغه چا نه چه نافرمانی کوی د خپل محسن پس د پیژندلو د احسان د هغه نه او طاعت کوی د لعین پس د پیژندلو د دشمنئ د هغه نه". لِيَكُوْنُوْا د دے نه مخکښ دا لفظ پټ دے (الی الضلال والکفر والشرك).

ت٧: په دے آیت کښ بیان د عاقبت د حزب الشیطان او د حزب الرحمان دے اوّل ته تخویف او دویم ته بشارت دے. او مغفرت په عوض د ایمان کښ دے او اجر کبیر په بدل د عمل صالح کښ دے.

اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ﴿۸﴾ وَاللّٰهُ الَّذِيْٓ

یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے په هغه کارونو چه دوی کوی. او الله تعالیٰ هغه ذات دے

اَرْسَلَ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَسُقْنٰهُ اِلٰى

چه رالیږی هواګانے نو پورته کوی وریځے نو او چلوو مونږ هغه

بَلَدٍ مَّيِّتٍ فَاَحْيَيْنَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ

زمکے اوچے ته نو تازه کړو په هغے سره زمکه روستو د اوچ والی د هغے نه

كَذٰلِكَ النُّشُوْرُ ﴿۹﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ

دغسے دوباره پیدائش ستاسو دے. هغه څوک چه غواړی عزت

۸: په دے ایت کښ تسلی ده نبی صلّی الله علیه وسلّم ته او بیان د حال د فریقینو دے. اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ دا عام دے ټولو کفارو او مشرکینو او مبتدعینو ته. بد عملونه د دوی عناد کول دی د نبی صلّی الله علیه وسلّم او د هغه د تابعدارو سره او شرک کول د دوی او مخالفت کول د سنت د نبی صلّی الله علیه وسلّم نه. دا کارونه دوی ته ښائسته ښکاری چه دا سبب د ثواب او د قربت الٰهیه دے یا دا کارونه سبب د فخر او د لوئی او د غیرت دی د دے وجے نه همیشه ئے کوی او توبه ترینه نه اوباسی. او سعید بن جبیر نه خطیب شربینی نقل راوړے دے چه دا ایت په باره د اصحاب هوی او بدعتیانو کښ دے.

**فائده**: د دے شرط جزاء محذوف ده کسائی وئیلی دی (تذهب نفسک علیهم) په قرینه د ما بعد سره او زجاج وئیلی دی (کمن هداه الله) یا (کمن هو لیس کذلک). فَاِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ دا علت دے د پاره د عدم مساوات د دوی فَلَا تَذْهَبْ الخ دا تفریع ده په عدم مساوات او په یضل من یشاء باندے یعنی هر کله چه د دوی هدایت او ضلال په اختیار د الله تعالیٰ کښ دے نو ته دومره غمژن کیږه مه چه د غم د وجے نه مړ شے ځکه ستا دا غم او مرګ هیڅ فائده نه کوی. حَسَرٰتٍ مفعول له دے یعنی د وجے د ډیرو افسوسونو او خفګانونو نه. حَسْرَةٌ وئیلے کیږی سخت خفګان کولو ته په فوت شوے څیز باندے. يَصْنَعُوْنَ صناعت هغه عمل ته وئیلے کیږی چه همیشه ئے کوی د دے وجے چه هغوئی جوړ کړے وی یا دین ئے ګڼړلے وی نو دا د رَاٰهُ حَسَنًا سره مناسب دے.

۹: دا څلورم عقلی دلیل دے د پاره د پوهه کولو (پاتے په بل مخ)

فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيعًا ۭ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ

پس عزت ټول د الله تعالیٰ په اختیار کښې دے (د الله تعالیٰ نه یې غواړے) خاص هغه ته ورخیژی کلمې

الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ ۭ وَالَّذِيْنَ

پاکې (د اخلاص) او عمل د سنّت موافق پورته کوی الله تعالیٰ هغې لره او هغه کسان

يَمْكُرُوْنَ السَّيِّاٰتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۭ

چې چلونه جوړوی د بدو کارونو هغوی لره عذاب سخت دے۔

وَمَكْرُ اُولٰۗىِٕكَ هُوَ يَبُوْرُ ۝۱۰ وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ

او هر چل د دے کسانو به بے کاره کرے شی۔ او الله تعالیٰ ستاسو پیدائش شروع کړے دے

د هغه کسانو چه زُيِّنَ لَهٗ سُوْۤءُ عَمَلِهٖ کښې مراد وو او په دے کښې یې درے تصرفات الٰهیه ذکر کړے دی ۱ هوا گانے راليږل او په هغې سره وریځې پورته کول ۲ شاړے زمکے ته چلول ۳ باران کول او بوټی پیدا کول۔ اَرْسَلَ نه مراد د عدم نه وجود ته راوستل دی. هر کله چه هوا گانے راتلل یو عادتی کار دے او په هغې سره وریځ پیدا کول کله کله وی نو اَرْسَلَ یې فعل ماضی ذکر کړه او فتثیر فعل مضارع ذکر کړے ده۔ او هر کله چه د وریځو نقل کول او باران کول بوټی راویستل پوره دلالت کوی په اختصاص باندے د دے وجې د غائب نه یې انتقال او کړو متکلم ته۔ او هر کله چه تیر شوے ایاتو کښې آفاقی علوی او انفسی دلیلونه ذکر وو نو په دے ایت کښې یې وسطی تصرفات ذکر کړے دی۔ كَذٰلِكَ النُّشُوْرُ په دے جمله کښې اثبات د قیامت دے په طریقه د قیاس سره په بوټو راویستلو سره د وچ زمکے نه او دا رنګ تذکیر د قیامت دے په وخت د لیدلو د فصلونو او باغونو کښې۔ او دا تشبیه په درے طریقو سره ده اوّل لکه چه اوچ زمکے تازګی قبول کړه دا سے بدن د انسان به ژوند قبول کړی دویم لکه چه هوا گانے وریځې منفرقے راجمعه کوی دا رنګ به متفرق اندامونه هم راجمعه کړی شی دریم لکه چه الله تعالیٰ هوا او وریځ اوچ زمکے ته رالیږی نو د غسے به ارواحو لره بدنونو ته را اولیږی او ژوند به ورله ورکړی۔

ف۱۰:۔ دا پنځم عقلی دلیل دے او دلیل انفسی دے د نفسونو د حالاتو سره تعلق لری او مخکښې ایت سره یې مناسبت هم دا دے لکه چه اوچه زمکه کښې الله تعالیٰ ژوند پیدا کوی او دا ترقی ده نو دا رنګ عزت انسانانو ته ورکوی۔ او په دے کښې مقصد رد دے په مشرکانو باندے چه هغوی عزت (او مدد) د خپلو الٰهو باطلو

مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ

دَ خاورو نه بیا دَ نطفې نه بیا جوړ کړي یئ تاسو

دَ طرف نه کړې لکه سورة مریم سا۸۱ کښې دی. او رد دے په منافقانو باندې چه عزت دَ کافرانو په دوستانو کښې کړي لکه سورة نساء سا۱۳۹ کښې ذکر دی نو په اوله جمله کښې رد دے په مشرکانو چه اختیار دَ عزت ورکولو صرف دَ الله تعالیٰ سره دے او دویمه جمله (الیه یصعد الکلم الخ) کښې رد دے په منافقانو باندې چه مسبّب دَ عزت توحید او عمل صالح دے. مَنْ كَانَ الخ دَ دے جزا حذف ده (فلیطلبها من الله یعنی دَ الله تعالیٰ نه دِ غواړي) إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ. الیه یصعد دلالت کوي چه الله تعالیٰ اوچت او پورته دے او کیفیت دَ هغې دَ متشابهاتو نه دے. الْكَلِمُ الطَّيِّبُ مراد دے نه توحید دے او کلم مفرد دے پشان دَ کلام یا مراد دے نه اقوالِ طیبه یعنی کلمات دَ توحید او دَ ذکر دَ الله تعالیٰ دی او کلم اسم جنس یا اسم جمع دے. وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ په ضمیر مرفوع دَ دے کښې احتمالات دی اوّل احتمال دا الله تعالیٰ ته راجع دے او ضمیر مفعول یئ عمل صالح ته راجع دے. دویم احتمال کلم طیب ته راجع دے چه هغه په معنیٰ دَ توحید دے یعنی عقیده دَ توحید عمل صالح لره پورته کوي مقام دَ قبولیت ته ځکه چه بناء دَ اعمالو په عقیده باندې ده دریم احتمال ضمیر فاعل راجع دے کلم طیب ته چه هغه په معنیٰ دَ اقوالو طیبه سره دے یعنی دَ عمل صالح په وجه سره اقوال طیبه قبلیږي ځکه چه قول بغیر دَ عمل نه نه قبلیږي او تفسیر قرطبي کښې دَ دے دَ تائید دَ پاره یو حدیث غیر مسند ذکر کړے دے "لا یقبل الله قولا الا بعمل (نه قبلوي الله قول لره بغیر دَ عمل نه) ولا یقبل قولاً ولا عملاً الا بنیة (او نه قبلوي الله تعالیٰ قول او عمل لره مگر په نیت سره) ولا یقبل قولاً ولا عملاً ولا نیةً إلّا باصابة السنة (او نه قبلوي قول او عمل او نیت لره مگر په موافق دَ سنت سره". وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ السَّيِّئَاتِ. یعنی الله تعالیٰ چه مؤحدینو ته عزت ورکړي نو مشرکان او حاسدان دَ هغوي دَ بے عزته کولو کوششونه کوي نو دا دَ هغوي سزا ذکر کوي. یا دَ سیئات نه مراد شرک او کفر او بد اعمال دی مخالف دَ کلم طیّب او عمل صالح نه.

أَزْوَاجًا ط وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا

جوړې او حمل نه اخلي يو زنانه او نه يې غورځوي مګر

بِعِلْمِهِ ط وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ وَّلَا يُنْقَصُ

په علم د الله تعالیٰ سره او نه عمر ورکيدے شي يو عمر ورکړے شوي ته او نه کمے دے شي

مِنْ عُمُرِهٖٓ إِلَّا فِيْ كِتٰبٍ ط إِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ

د عمر د هغه نه مګر په کتاب (تقدير) کښ دي يقيناً دا کار په الله تعالیٰ باندے

يَسِيْرٌ ﴿۱۱﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرٰنِ ق صلے هٰذَا

آسان دے . او نه دي برابر دوه قسمه دريابونه دا يو

سلا :- دا شپږم دليل عقلي انفسي دے تو راحوالِ انسانيه ذکر کوي او مناسبت ئې د مخکښ سره دا دے چه د عزت اختيار د الله تعالیٰ سره ځکه دے چه خالق د دے انسان او عالم او تقدير دے او په دے آيت کښ د انسان د پيدائش ماده بعيده (خاورے) او ماده قريبه (نطفه) ذکر کړه او د زياتيدلو د انسانانو د پاره ئې تزويج ذکر کړو او د بيان د قدرت سره ئې علم د الله تعالیٰ ذکر کړے دے په دے جمله کښ چه وما تحمل من انثیٰ الخ - بِعِلْمِهٖ يعني د حمل په مقدار او وخت او نوعه او شکل وصورت او سعادت او شقاوت وغيره حالاتو باندے الله تعالیٰ عالم دے - بيا ذکر د تقدير او کمالِ ارادے د الله تعالیٰ کوي په دے جمله سره وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ الخ مراد په دواړه جملو سره يو سړے دے يعني د يو سړي عمر په تقدير کښ ليکلے شوے دے مثلاً شپيته کلونه بيا يو يو ورځ کميږي نو په بل کتاب کښ هغه نقصان ليکلے کيږي تر اختتام د عُمر پورے - يا مراد د دے نه دوه کسان دي يعني د يو کس عمر زيات دے او د بل کس عمر کم دے دا دواړه په تقدير کښ ليکلے شوے دي ليکن هر کله چه دا زياتے او کمے بندګانو ته په مستقبل کښ معلوميږي نو د دے وجے نه صيغه د مضارع ذکر کړيده - دريم قول دا دے چه مراد د زيادت او نقصان نه زياتے کمے په برکت او په بے برکتے کښ دے په سبب د نيکو عملونو او بدو عملونو سره.

عَذْبٌ فُرَاتٌ سَآئِغٌ شَرَابُهٗ وَهٰذَا مِلْحٌ

خوږ دے تنده ماتوونکے آسان دی خکل د ده او دا بل مالګین دے

اُجَاجٌ وَمِنْ كُلٍّ تَاْكُلُوْنَ لَحْمًا طَرِيًّا وَّ

مرے بندوونکے او د هر یو نه خورئ تاسو غوښه تازه او

تَسْتَخْرِجُوْنَ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا وَتَرَى الْفُلْكَ

را اوباسئ تاسو ګاڼې چه اغوندئ تاسو هغه لره او وینې ته کشتۍ

فِيْهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ

په هغے کښ شلوونکی د اوبو د پاره د دے چه اولټوئ تاسو فضل د هغه او د پاره د دے

تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۲﴾ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِى النَّهَارِ

چه د هغه شکر اوکړئ۔ ورننه باسی شپه په ورځ کښ

ف۱۲:۔ دا اُوم دلیل عقلی دے او دا د عالم سفلی دلیل دے مناسبت ئے مخکښ سره دا دے
لکه چه انسانانو کښ د عمر په لحاظ سره مساوات نیشته دا رنګ په اوبو کښ هم
مساوات نیشته او په دے کښ لطیفه، اشاره ده فرق ته په مینځ د مؤحد او مشرک
کښ۔ البَحْرَانِ یو بحر سمندر دے چه د هغے اوبه مالګینے دی او دا د زمکے اوبه دی دویم
د آسمان اوبه دی چه د بارانونو په ذریعه زمکے ته راځی او د هغے نه خوړونه سیندونه
جوړ شوے دی او بیا سمندر ته اورسیږی لیکن دغه اوبه د سمندر د اوبو سره نه خلط
کیږی او دا خوږے اوبه وی نو په دے وصف کښ دوی برابر نه دی۔
وَمِنْ كُلٍّ الخ په دے کښ اشاره ده چه په دے دوه فائدو کښ دوی برابر دی
لیکن فائده اصلی چه خکل د اوبو دی په هغے کښ دوی برابر نه دی اشاره ده که
مؤحد او مشرک په صفت د شجاعت سخاوت وغیره کښ چرته برابر شی لیکن د دوی
په اصل اعتقاد کښ برابری نیشته وَتَسْتَخْرِجُوْنَ الخ دلته د لفظ د مِنْ كُلٍّ نه او په
سورة رحمٰن ف۲۲ کښ د لفظ منها نه معلومیږی چه جواهرات لؤلؤ مرجان وغیره د
دواړو د اختلاط نه حاصلیږی د هغے طریقه دا ده چه د سمندر په سطحه باندے صدف
کهلاؤ پروت وی نو په هغے کښ د باران څاڅکی راغورزیګی نو صدف بند شی نو څه
وخت روستو د هغے نه لؤلؤ مرجان جوړ شی۔ تَلْبَسُوْنَهَا۔ لباس عام دے چه غاړے
اولاسونو ته ئے اچوی یا ئے په جامو پورے اولګوی۔ (پاتے په بل مخ)

وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ۙ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ

او ورننه باسي ورځ په شپه کښې او په خدمت کښې لګولې دي نمر

وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ

او سپوږمۍ هر يو روان دے ذپاره د نيټې مقررے

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۗ وَالَّذِيْنَ

دغه صفتونو والا الله تعالیٰ ستاسو رب دے خاص هغه لره بادشاهي ده او هغه کسان

تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مَا يَمْلِكُوْنَ مِنْ قِطْمِيْرٍ ۗ ﴿١٣﴾

چه تاسو ئې بلې په حاجتونو کښې سوا د الله تعالیٰ نه اختيار نه لري د پوستکي د هډوکي د کجورے.

---

يا ئې په بستره کښې اولګوي. وَتَرَى الْفُلْكَ فِيْهِ اه دا فائده په سمندر پورے خاص ده د دے وجې فِيْهِ ئې مفرد ذکر کړو او مراد د فلك نه غټ جهازونه دي په قرينه د مواخر سره. او هر کله چه روميې دواړه فائدے عامو خلقو ته رسيږي اګرچه د سمندر نه لرے دي او روستنۍ فائده خاص ده په هغه چا پورے چه سمندر کښې سورلي کوي د دے وجه نه اول دواړه صيغې ئې جمع ذکر کړے دي او روستنۍ صيغه ئې مفرد ذکر کړيده. وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ يعنې په فضل د الله تعالیٰ او په بچ کولو سره د غرقيدلو نه شکر اوکړئ.

س ١٣ :- دا اتم دليل عقلي وسطي زماني دے. شپه او ورځ اجزاء د زمانے کښې او نمر سپوږمۍ د دے د اختلاف سبب دے د دے وجه نه ئې يو ځائے ذکر کړل. لِاَجَلٍ مُّسَمًّى مراد د دے نه هر شپه او ورځ د دے دواړو غروب دے يا مراد دے نه ورځ د قيامت ده. ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ دا نتيجه ده د ټولو دليلونو او د ذکر د نعمتونو چه په هغې کښې تصرف او علم د الله تعالیٰ ذکر شويدے او د رب نه کښې بادشاهي (تدبير) د الله تعالیٰ ذکر کوي. وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ دارد دے مراد معبود او حاجت روا دے. لَهُ الْمُلْكُ مخکښې ئې تصرف ذکر کړو نو په دے کښې بادشاهي (تدبير) د الله تعالیٰ ذکر کوي. وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ دارد دے په شرک في الدعا باندے په د نفي د ملک سره د هر معبود من دون الله نه. وَالَّذِيْنَ دا لفظ حقيقت دے په ذوي الروح او ذوي العقولو کښې او بتانو ته مجازًا شامل دے نو دے کښې تمام معبودان من دون الله داخل دي او تفسير روح المعاني کښې هم دغسے ليکلے دي. قِطْمِيْرٍ هغه نرے پوستکے چه د هډوکي د کجورے نه چاپيره وي دا د عرب په اصطلاح کښې په مثال د قلت د ملکيت کښې ذکر کيږي.

إِنْ تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ ۚ وَلَوْ سَمِعُوا

كه چرے تاسو بلئ دوى لره (دپاره د حاجت پوره كولو) نو نه اورى يلنه ستاسو او كه فرض كړو چه اورى

مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ

نو نشى پوره كولے حاجت ستاسو او په ورځ د قيامت كښ به انكار اوكړى

بِشِرْكِكُمْ ۚ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ ﴿١٤﴾

ستاسو د شرك نه او خبر نشى دركولے تاته پشان د خبردار ذات (چه الله تعالى دے)

او فتيل او نقير په قلت د څيز كښ ذكر كيږى اګرچه ملكيت ورسره هم ذكر كړے او په دے كښ اشاره ده چه دا معبودان من دون الله خو دا قدرت هم نه لرى چه دغه پوستكے د هډوكى د كجورے نه روغ او سالم راجدا كړى.

سلا: دا رد دے په شرك فى الدعا په طريقه په نفى د علم او د استجابت د دُعا د معبود من دون الله نه. او تفسير قرطبى او روح المعانى او نور مفسرينو ليكلى دى چه دا آيت ملائكو، جناتو، انبياؤ، شياطينو او بتانو ټولو ته شامل دے.

لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ، مفسر آلوسى روح المعانى كښ ليكلى دى چه بُتان خو ځكه نه اورى چه جمادات دى او ملائكك انبياء او اولياء (ژوندى) د دے وجے نه اورى چه لرے وى د دے مشركانو نه او اسباب هم مينځ كښ نيشته يا د دے وجے نه چه الله تعالى د هغوى غوږونه بچ ساتى د دا سے شركى او قبيح آوازونو نه د پاره د دے چه خفه نه شى (او په تفسير د سورة احقاف كښ ليكلى دى) چه كوم معبودان چه مړه دى هغوى نه اورى ځكه چه مړى اوريدل نشى كولے.

فائده :- دا آيت قطعى الدلالة دے په دے مسئله كښ چه مړى بزرګان د مشركانو شركى آوازونه بالكل نه اورى كه نزدے وى او كه لرے وى لفظ د دُعاءكم په دے باندے دليل دے چه مراد د دے نه حاجت غوښتل دى او هرچه په مسئله د نفى سماع موتىٰ مطلقاً كښ ده نو دا صريح نه دے بلكه احتمالى دے. او د دے وجے نه عائشه رضى الله عنها او امام ابوحنيفه رحمة الله دا آيت په دليل د نفى سماع موتىٰ كښ نه دے ذكر كړے. وَلَوْ سَمِعُوا لو د پاره د فرض كولو راځى يعنى سماع نيشته ليكن كه فرض كړو چه شته نو مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ يعنى مقصد د مشرك خو حاجت پوره كيدل دى او هغه خو دا معبودان بالكل نشى كولے.

فائده :- استجابت شامل دے دُعا غوښتلو ته يعنى كه ته رپاتے په بل مخ)

يَآ أَيُّهَا النَّاسُ أَنتُمُ الْفُقَرَآءُ إِلَى اللَّهِ ۚ

اے خلقو تاسو تول محتاج یئ الله تعالیٰ ته

وَاللَّهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿١٥﴾ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ

او الله تعالیٰ خاص هغه بے حاجته ستائیلے شوے دے۔ که چرے اوغواړی فنا به کړی تاسو

وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٦﴾ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ

او راوبه ولی مخلوق نوے او نه دے دا کار په الله تعالیٰ باندے

بِعَزِيزٍ ﴿١٧﴾ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ

ګران۔ او نه شی پورته کولے یو پیټی والا پیټے (د ګناهونو) د بل چا

دوی ته اوائی چه زما د پاره دُعا او غواړے نو دُعا هم نشی غوختلے نو معلومه شوه چه څوک وائی چه هر کله ثابته شی چه مړی اوری نو بیا دُعا غوختل تر ینه هم جائز شو دا غلطه خبره ده په دے کښ ملازمه نیشته او دا سے په حدیث د بدر کښ هم راغلی دی چه دوی اوس اوری لیکن جواب نشی ورکولے۔ بِشِرْكِكُمْ مراد د شرک نه طلب د حاجت دے د دوی نه ځکه چه دا شرک فی الدعا دے او دا انکار د دوی ذکر شوے دے په سورة یونس ۲۹ کښ او په سورة احقاف ۵ ۶ کښ۔ مِثْلُ خَبِيرٍ مراد د خبیر نه الله تعالیٰ دے یعنی که څوک سماع او استجابت د دے معبودانو من دون الله ثابتوی په اقوالو د اهلِ علم وغیره سره نو جواب دا دے چه د هغوی قول د خبیر ذات په مقابله کښ هیڅ حیثیت نه لری۔

۱۵:۔ د دے ایت نه تر ۳۸ پورے دویم باب دے په دے کښ دوه عقلی دلیلونه دی بیا تخویف اخروی بیا مثالونه بیا تسلی نبی صلی الله علیه وسلم ته بیا تفصیلی بشارت او تخویف دے۔ په دے ۱۵ کښ تهم عقلی دلیل دے۔ الْفُقَرَآءُ معرفه دلالت کوی په کامل فقر باندے په هر څیز او په هر حالت کښ که نبی وی یا ولی یا مالدار وی یا مسکین وغیره۔ إِلَى اللَّهِ لفظ د الی د انتها د پاره دے یعنی د یو انسان احتیاج که بل انسان ته وی نو هم د هغے اخری انتهاء الله تعالیٰ ته ده او اخری انتهاء ته اعتبار دے۔ الْغَنِيُّ دا ئے هم معرفه ذکر کړه ځکه چه مراد تری کامله غنا ده چه هغه عدم احتیاج دے او انسان که ډیر مالدار وی نو هم محتاج وی۔ الْحَمِيدُ دا صفت یئ د دے وجه نه ذکر کړو چه یو انسان چه د خلقو نه ځان بے پروا کړی نو د هغه بدی ویلے کیږی او د الله تعالیٰ سره د غنا کامل نه حمد ویلے کیږی ځکه چه مخلوق لره نعمتونه او فائدے ورکوی۔

۱۶، ۱۷ دا دواړه د مخکښ دلیل سره متعلق دی یعنی تصرف کلی او غناء کامله

وَاِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ اِلٰى حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ

او كه چرے اواز وركړى يو دروند بارے خپل بارته نو نشي پورته كيدے د هغه نه

شَىْءٌ وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ط اِنَّمَا تُنْذِرُ الَّذِيْنَ

هيڅ څيز اگر چه خپلولے والا دى يقيناً ستا ويره اثر كوى په هغه كسانو باندے

يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ط

چه ويريږى د رب خپل نه په حالت د نه ليدلو كښ او پابندى كوى د مونځ

وَمَنْ تَزَكّٰى فَاِنَّمَا يَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ ط

او چاچه ځان پاک كړو نو يقيناً پاكول كوى دپاره د فائدے د ځان خپل

وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ۝۱۸ وَمَا يَسْتَوِى الْاَعْمٰى

او خاص الله تعالىٰ ته گرځيدل دى. او برابر نه دے روند

---

دهغه ذكر كوى اِنْ يَّشَاْ اشاره ده چه ستا سو په فنا كولو كښ د بل چا مشيت او خوښے ته محتاج نه دے هم دا سے سورة ابراهيم ۱۹ تـ ۲۰ كښ تير شوے دى.
۱۸: روستو د دليلونو د توحيد او د رد د شرک نه تخويف دے يعنى لكه چه د مشرک حاجت روائي په دنيا كښ معبودان من دون الله نشي كولے نو دارنگ په آخرت كښ هم د ده پيټے د گناه هغه مشركان پيران وغيره نشي پورته كولے چاچه ده ته شرک خودلے. وَاِنْ تَدْعُ ا ه په اوله جمله كښ مطلب دا وو چه بغير د طلب نه هيڅوک پيټے نشي اوچته ولے او په دے جمله كښ مطلب دا دے چه په طلب او منت زارئ سره هم د مشرک پيټے بل څوک نشي پورته كولے. دارنگ په اول كښ ټول پيټے پورته كول مرادى او په دويمه جمله كښ بعضے حصّه د پيټے مراد ده.
اِنَّمَا تُنْذِرُ ا ه تسلى ده نبى صلى الله عليه وسلم ته يعنى د گناه (وزر) نه بچ كيدلو دپاره بله لار نيشته سوا د انذار نه. دارنگ هر كله چه دليلونه تفصيلاً بيان شول خو ليكن مشركانو ضد يانو ته فائده نه وركوى نو نبى صلى الله عليه وسلم ته ئے تسلى وركړه چه ستا انذار خشيت والو ته فائده وركوى. او د خشيت ظاهرى نخه اقامة الصلوٰة دے نو اَقَامُوا الصَّلٰوةَ ئے د دے وجے نه ذكر كړو. وَمَنْ تَزَكّٰى دا د انذار فائده ده.

وَالْبَصِيرُ ﴿١٩﴾ وَلَا الظُّلُمَاتُ وَلَا النُّورُ ﴿٢٠﴾

او لیدونکے او نه تیارے او نه رڼا.

وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُورُ ﴿٢١﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ

او نه سورے او نه ګرمي. او نه دي برابر ژوندي

وَلَا الْأَمْوَاتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ مَن يَشَاءُ ۖ

او نه مړي يقيناً الله تعالىٰ اوروي کوي چا ته چه اوغواړي

وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ ﴿٢٢﴾

او نه یئے ته اوروونکے هغه چا ته چه په قبرونو کښ دي.

س ۱۹ تر ۳۰ س ۲۱ :- دا علت دے دپاره دَ تخصيص دَ انذار په خشيت والو پورے یعنی خشيت والو ته انذار فائده ورکوي او نورو ته فائده نه ورکوي ځکه چه دَ دوي په حالاتو کښ ډیر فرق دے. او دا مثالونه دَپاره دَ اثبات دَ فرق په مينځ دَ مؤحد (خشيت کوونکي) اوضدي عنادي کښ دي. اول مثال چه دا عنادي پشان دَ ړوند دے او مؤحد پشان دَ بينا دے لکه چه دَ دے دواړو په مينځ کښ په لیدلو دَ رڼا او تیرو او په لیدلو دَ مضراتو او مفيد څيزونو او صحيح لار او غلطه لار وغيره کښ فرق دے نو دارنګ دَ مؤحد او مشرک په مينځ کښ هم په دغه امورو کښ فرق دے.
دويم مثال یعني کفر او شرک او دَ هغې دليلونه پشان دَ ظلماتو دي او توحيد دَ ايمان او دَ هغې دليلونه پشان دَ نُور دي. دريم مثال یعني دَ توحيد او دَ ايمان نتيجه او عوض په دنيا او آخرت کښ آرام دے او هغه په شان دَ سوري دے او دَ کفر و شرک عاقبت په دنيا او آخرت کښ عذاب او سخت ژوند دے او هغه پشان دَ حرور (سخته ګرمي) دے. حاصل دا چه دَ دوي په مدعاګانو او دليلونو او نتيجو درے واړو کښ فرق دے، او دے ته فرق کامل ويلے کيږي.
س ۲۲ :- دا څلورم مثال دے او مؤحدين (خشيت کوونکي دَ الله تعالىٰ نه) پشان دَ ژوندو دي چه ټول قوتونه او حواس يې کار کوي (اوريدل، ليدل، پوهيدل) او مشرکان عناديان پشان دَ مړو دي چه ټول قوتونه او حواس يې بے کار شوي دي یعني مړي نه اوري او نه ويني او نه پوهيږي نو دارنګ عنادي مشرک هم (صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ) دے.
فائده :- په دے څلورم کښ مَا يَسْتَوِي يې دوباره ذکر کړو دَ دے وجے نه چه

اِنْ اَنْتَ اِلَّا نَذِيْرٌ ﴿٢٣﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ

نه یې ته مګر ویره ورکوونکے یې. یقیناً لیږلے یې مونږ ته په حقه سره

بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ؕ وَاِنْ مِّنْ اُمَّةٍ اِلَّا خَلَا فِيْهَا

زیرے ورکوونکے او ویره ورکوونکے او نیشته دے هیڅ امت مګر تیر شوےدے په هغے کښې

نَذِيْرٌ ﴿٢٤﴾ وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ

ویره ورکوونکے. او که دوی تاته دروغژن وائي نو یقیناً دروغژن ویلي (پیغمبرانو ته) هغه کسانو

دَ مړی او ژوندی په مینځ کښې من کل الوجه فرق دے او هرچه مخکښې درے دی نو کله کله یو بل ته نزدے کیدے شی لکه چه اعمٰی دَ پاره دَ زړه بصیرت وی نو بصیر ته نزدے شی او چه په تیرو کښې چراغ اولګی نو نُور ته نزدے شی او په ګرمے کښې دَ یخنئ اسباب استعمال شی نو سوری ته نزدے شی لیکن په مړو کښې دا سے تغیّیر نشی راتللے چه هم دے مړوی او هم دے په هغه کښې دَ ژوندی صفت پیدا شی. او مراد دَ حیاة نه حیاة دینویه دے. اِنَّ اللّٰهَ يُسْمِعُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَمَآ اَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُوْرِ دا پنځم مثال دے سره دَ تسلّئ دَ رسول صلّی الله علیه وسلّم نه او متعلق دے دَ انما تنذر سره. دَ دے مثال مطلب او حاصل دا دے چه هغه کافران ضدیان مشابه دی دَ هغه بدنونو سره چه په قبرونو کښې دفن کړے شوے دی چه په هغوی کښې روح نیشته او نه اوری نه وینی او نه پوهیږی دَ دنیا په حال باندے. نو دا رنګ دا کافران هم نه اوری او نه پوهیږی نو ته دوی ته اوروَل نشے کولے بلکه اوروَل دَ الله تعالیٰ په قدرت کښې دی. دا ایت هم دلیل دے چه مړی دَ دنیاوالو خبرے نه اوری او نه دوی لره پیږنی. دَ دے تشریح په تفسیر دَ سورة روم کښې ذکر کړے شوے ده.

فائده:- مَنْ فِي الْقُبُوْرِ. په قبر کښې صرف بدن پروت دے هغه بالکل نه اوری او هرچه روح دے نو په قبر کښې نیشته او حیات او اوریدل خو په روح سره کیږی.

۲۳:- دا هم تسلّی ده چه ستا کار انذار دے او اوروَل ستا ذمه واری نه ده.

۲۴:- دا هم تسلّی ده او تفصیل دَ صفت دَ انذار دے او مراد دَ نذیر نه پیغمبر دے دَ دے وجے نه تیر شوے امتو ته یې ذکر کړل.

مِنْ قَبْلِهِمْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

چه دَ دوی نه مخکښ وو راغلی وو هغوی ته رسولان دَ هغوی په ښکاره دَلیلونو

وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿۲۵﴾ ثُمَّ اَخَذْتُ

او دَ وعظ په خبرو او په کتاب رڼرا والا سره . بیا او نیول ما

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿۲۶﴾

هغه کسان چه کفر ئې کړے وُو نو څه رنګه شو عذاب زما

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً

آیا نه ګورے ته چه یقیناً الله تعالیٰ راوړولے دی دَ آسمان دَ طرف نه اوبه

فَاَخْرَجْنَا بِهٖ ثَمَرٰتٍ مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهَا

نو راوباسو موږ په هغې سره میوے (غلې) چه مختلف دی رنګونه دَ هغې

وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌۢ بِيْضٌ وَّحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ

او دَ غرونو نه ټکړے سپینے او سرے مختلف دی

اَلْوَانُهَا وَغَرَابِيْبُ سُوْدٌ ﴿۲۷﴾ وَمِنَ النَّاسِ

رنګونه دَ هغوی او دَ کارغانو پشان تک تور دی . او دَ انسانانو

۲۵ سے ۲۶ :۔ دا هم تسلّی ده او جواب دَ شرط حذف دے یعنی (فاصبر، صبر کوه)۔ الْبَيِّنٰتِ مراد دَ دے نه معجزات دی یا ښکاره احکام چه په صرف عقل سره معلومیږی چه دا صحیح دی یعنی عقلی دلیلونه۔ وَالزُّبُرِ وارِه کتابونه یعنی صحیفے یا دَ وعظ او نصیحت خبرے۔ والْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ مراد ترینه غټ کتاب دے لکه تورات انجیل او نسبت دَ درے واړو خیزونو ټولو انبیاؤ ته دے په طریقه دَ مجموعه سره یعنی بعضے انبیاؤ په دے کښ یو خیز راوړے دے او بعضو دوه خیزونه راوړیدی او بعضو درے واړه راوړیدی لکه موسیٰ علیه السّلام۔ ثُمَّ اَخَذْتُ په دے سره تخویف دے منکرینو ته۔
۲۷ :۔ دا اسم دلیل عقلی دے په دے کښ هم اختلاف دَ ثمراتو او اختلاف دَ غرونو په رنګونو کښ ذکر کوی هر کله چه په تیر شوے دلیلونو کښ عام خطاب مشرکانو ته ذکر شو لیکن هغوی ترینه فائده نه اخلی او دَ هغوی تکذیب ذکر کړے شو نو اوس خاص خطاب کوی نبی صلّی الله علیه وسلّم ته او هغه چا ته چه دَ دے

وَالدَّوَآبِّ وَالْاَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ كَذٰلِكَ

او ژندہ سرو او خاروؤ ته مختلف دی رنگونه ډ هغوی دغه شان

اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا اِنَّ

یقیناً ویریږی ډ الله تعالیٰ نه ډ بندګانو ډ هغه نه عالمان یقیناً

اللّٰهَ عَزِيْزٌ غَفُوْرٌ ﴿۲۸﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ

الله تعالیٰ زورآور او بخنه کوؤنکے دے. یقیناً هغه کسان چه لولی

خطاب اهلیت لری۔

**فائدہ :-** هرکله چه په میوؤ او غلوکښ ډ اختلاف قسمونه بے شماره دی نو صرف اجمالی اختلاف ئې ذکر کړو او په غرونوکښ اختلاف لګ دے. بیا اصول ډ رنګونو درے دی سپین سُور او تور. بیا ډ ګړون ډ سپین او سور نه نور رنګونه هم جوړیږی نو ډ هغے نه روستو مختلف الوانها ذکر کړل. جُدَدٌ مختلفو لارو ته وائی او مختلفو ټکړو ته هم ویلے کیږی. غَرَابِيْبُ سُوْدٌ، سود بدل دے ډ غرابیب نه ځکه چه غرابیب ډ غراب نه دے او په غراب (کارغه) کښ بعضے خړ رنګ وی نو په سود سره ئې ډ هغه وضاحت اوکړو چه دلته تور مراد دی او هرکله چه سپین او سور یو بل سره مناسبت لری او تور ډ هغے نه ډیر مخالف رنګ دے ډ دے وجه نه غرابیب ئې جدا ذکر کړو۔

ف ۲۸ :- دا یوؤلسم دلیل عقلی دے په دے کښ اختلاف ډ اهل روح ذکر کوی په رنګونوکښ۔ او هرکله چه مِنْ په معنیٰ ډ بعض دے نو ضمیر ډ مذکر ئې په اَلْوَانُهٗ کښ هغه ته راجع کړو او ډ دے ډ پاره چه فرق واضح شی په مینځ ډ ذوی الروح او غیر ذوی الروح کښ۔ اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا دا متعلق ډ انما تنذر الذین یخشون ربهم سره دے یعنی هرکله چه مثالونه او دلیلونه بیان شول نو سوال پیدا شو چه ډ دے نه اثر قبولوؤنکی څوک دی؟ نو په دے جمله کښ ډ هغے جواب دے چه ډ تاثیر ډ قرآن ډ پاره علم ضروری دے. یعنی خشیت موقوف دے په معرفت ډ قدر او ډ شان ډ مخشی (هغه څوک چه ډ هغه نه ویره کیدی شی) لکه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلے دی انی لاعلمکم بالله واخشاکم له۔ او معرفت ډ قدر او شان په علم سره دے نو څوک چه ډ الله تعالیٰ شان، قدر، اسماء او صفتونه نه پیژنی نو هغه ډ الله تعالیٰ نه نه ویریږی اګرچه په خولے

پاتے په بل مخ

كِتٰبَ اللّٰهِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا

کتاب دَ الله تعالیٰ او پابندی کوی دَ مونځ او خرچ کوی دَ هغې نه

رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً يَّرْجُوْنَ تِجَارَةً

چه ورکړے دی مونږ دوی ته پټ او ښکاره امید لری دَ سوداګرئ

لَّنْ تَبُوْرَ ﴿۲۹﴾ لِيُوَفِّيَهُمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدَهُمْ

چه نه بیکاره کیږی. دَ دے دپاره چه پوره ورکړی دوی ته اجرونه دَ دوی او زیات ورکړی دوی ته

باندے دعوے دَ ایمان کوی. دا ایت صریح دلیل دے په فضیلت دَ علم باندے دَ هغه عبادت نه چه بغیر دَ علم نه وی.

**فائده:**- سفیان ثوری رحمة الله نه ابن کثیر نقل کړیدی چه علماء درے قسمه دی اول قسم عالم بالله وبامر الله یعنی هغه چه دَ الله تعالیٰ اسماء او صفات او عظمت شان باندے علم لری او دا په قرآن کریم سره حاصلیږی او هغه چه فرائض او حدود او احکام پیژنی او دا په حدیث او فقه سره حاصلیږی او دا اعلیٰ قسم دے. دویم قسم عالم بالله فقط یعنی دَ الله تعالیٰ دَ اسمائو او صفاتو نه پئے علم لری لیکن دَ احکام او حدود علم ورسره تفصیلی نه وی یعنی په قرآن باندے عالم وی لیکن احادیث او فقه باندے پوره علم نه لری - دریم قسم عالم بامر الله فقط یعنی په احکامو او فرائضو باندے پوره عالم وی لیکن دَ الله تعالیٰ اسماء او صفاتو او دَ عظمت نه پوره علم نه لری - نو په دے مقام کښ دَ علماء نه مراد اول او دویم قسم دے چه هغوی دَ الله تعالیٰ نه ویره کوی اګرچه اول زیات خشیت لری په نسبت دَ دویم او هرچه دریم قسم دے نو دَ هغه په زړه کښ خشیت نه وی او دَ دے وجے نه هغئ علماء چه په فقه او فنون کښ مهارت لری لیکن دَ قرآن او حدیث نه پوره واقف نه وی نو په هغوی کښ شرک او بدعات ډیر وی او هغه په تمیز دَ الله تعالیٰ عالم نه دے.

س ۲۹:- هر کله چه مخکښ خشیت والا ذکر کړل چه دا علماء دی نو په دے ایت کښ دَ هغوی کردار او بشارت ذکر کوی. يَتْلُوْنَ مراد دَ دے نه دوام دَ تلاوت او دَ درس و تدریس دَ ایاتو دے سره دَ علم او عمل کولو نه.

**فائده:**- خشیتِ عبادت قلبیه دے او تلاوت عبادت لسانیه دے او اقامة الصلٰوة عبادت بدنیه دے او انفاق عبادتِ مالیه دے. تِجَارَةً مراد ترینه

مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّهٗ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴿۳۰﴾

دَ فضل خپل نه يقيناً الله تعالىٰ بخښنه كوونكے دے قبلوونكے دے.

وَالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ

او هغه چه وحی در لیږلے ده مونږ تا ته چه كتاب دے

هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ؕ

هغه حق دے رشتنی كوونكے دے دَ هغه كتابونو چه دَ دهٔ نه مخكښ دی

اِنَّ اللّٰهَ بِعِبَادِهٖ لَخَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ ﴿۳۱﴾ ثُمَّ

يقيناً الله تعالىٰ په بندګانو خپلو باندے خبردار دے ليدونكے دے. بيا

اَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۚ

وركړو مونږ كتاب هغه كسانو ته چه غوره كړے دی مونږ دَ بندګانو خپلو نه

فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ۚ

نو بعض دَ دوی نه ظلم كوونكی دی په ځان خپل باندے او بعض دَ دوی نه ميانه روه دی

ربع (نكته) دَ تجارت ده او دا ذكر دے په سورة توبه سلا كښ يعنی تجارت ئے الله تعالىٰ لره كړيدے نو دَ هغے دَ كټے اوميدونه لری.

ف ۳۰ :. دا لام دَ عاقبت دے متعلق دے په يرجون پورے يا لام صله ده دَ فعل پټ يعنی فعلوا ذٰلك لِيُوَفِّيَهُمْ. غَفُوْرٌ غټ او واړه ګناهونه بخی او شَكُوْرٌ لګ عمل صالح هم قبولوی يا دا لف نشر مرتب دے.

ف ۳۱ :. هر كله چه تير شوی اياتو كښ بشارت دَ عالمانو دَ اٰيٰتِ الٰهيه ذكر كړو نو په دے ايت كښ دَ اٰيٰتِ الٰهيه چه كتاب الله دے دَ هغے صداقت او مرتبه ذكر كوی. مِنَ الْكِتَابِ مِن تبعيضيه دے يا بيانيه دے په لفظ دَ مِنَ كښ اشاره ده چه دَ قرآن هر جزء حق دے.

وَمِنْهُمْ سَابِقٌۢ بِالْخَيْرٰتِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ

او بعض د دوی نه وړاندې کیږي په ښه کارونو سره په توفیق د الله تعالٰی سره

ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿۳۲﴾ جَنّٰتُ

دا چه دے فضل ډیر لوے دے. باغونه

عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ

د همیش والی چه داخلیږی په هغې ته کالی به اچولے کیږي دوی ته د بنګړو

مِنْ ذَهَبٍ وَّلُؤْلُؤًا ۚ وَلِبَاسُهُمْ فِيْهَا

د سرو زرو نه او ملغلرے او جامے د دوی په هغې کښې

۳۲: په دے ایت کښې د اصحاب قرآن درے درجے ذکرکوی او هغوی ته بشارت دے. ثُمَّ اَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ ثم د پاره د تعقیب ذکری دے نه د پاره د تراخی د زمان ځکه چه هغکښې یې د قرآن نزول ذکر کړے دے او دا د هغې تفصیل دے.
الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا صحابه کرام دی او روستو د هغوی تابعداران. اَوْرَثْنَا په معنیٰ د ورکولو سره دے لیکن په ارث سره تعبیر کولو کښې اشاره ده چه دوی د قرآن مستحق دی لکه وارث چه د میراث حق داروی. او اصْطِفَاء نه مراد دا دے چه دوی له یې توفیق د دین اسلام د منلو ورکړے دے لکه چه كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ او كَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا کښې ذکر شویدی. فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ دا تقسیم دے په الذین اصطفینا کښې ضمیر یې راجع دے الذین ته. او مفسر قرطبی او خطیب شربینی او نورو مفسرینو حدیث مرفوع نقل کړیدے چه دا ټول به جنت کښې داخلیږی. او قرطبی د شیرو صحابه کرامو نه نقل کړیدی چه دا ټول قسمونه په مؤمنانو کښې دی او مراد د ظَالِمٌ نه هغه مؤمن دے چه ګناهونه یې ډیر دی د نیک اعمالونه او لِنَفْسِهٖ کښې اشاره ده چه ظلم د ده ځیل چاته متعدی نه دے یعنی بل څوک ګمراهۍ ته نه رابلی او مُقْتَصِدٌ نه مراد هغه دے چه ګناهونه او طاعتونه یې برابر دی او سَابِقٌ هغه دے چه ګناهونه یې لګ دی په نسبت د طاعاتو او په دے کښې ثعلبی او قرطبی تر شپارسو پورے اقوال ذکر کړے دی. او ظالم یې مخکښې راوړے دے ځکه چه په امت کښې اول قسم ډیر دی د دویم نه او دویم ډیر دی د دریم نه او یا دا ترقی ده د ادنیٰ نه اعلیٰ ته. بِاِذْنِ اللّٰهِ مراد دا دے چه دا مرتبے د الله تعالیٰ په تقدیر سره حاصلے شویدی ذٰلِكَ اشاره ده اصطفاء ته یا کتاب ورکولو ته.

حَرِيْرٌ ﴿٣٣﴾ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَذْهَبَ

ریښم دی. او دوی به وائی دخدائے صفتونه دی بو الله تعالیٰ دی هغه ذات چه لرے یے کړو

عَنَّا الْحَزَنَ ؕ اِنَّ رَبَّنَا لَغَفُوْرٌ شَكُوْرُ ﴿٣٤﴾

زمونږ نه ټول غم یقیناً رب زمونږ ضرور بخنه کوونکے قبلوونکے دے.

الَّذِيْٓ اَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ

هغه ذات دے چه رادننه یے کړو مونږه کور د دیره کیدلو ته د وجے د فضل خپل نه

لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا نَصَبٌ وَّ لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا

نه به رسیږی مونږ ته په دے کښ هیڅ تکلیف او نه به رسیږی مونږ ته په دے کښ

لُغُوْبٌ ﴿٣٥﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ نَارُ

ستړے والے. او هغه کسان چه کفر یے کړیدے دوی د پاره اور

جَهَنَّمَ ۚ لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوْتُوْا

د جهنم دے فیصله به نه کیږی په دوی باندے (د مرګ) چه مړه شی

٣٣ ـ ٣٤ ـ ٣٥ :. په دے ایاتونو کښ بشارت دے درے وارہ اقسامو ته په بیان دلس حالاتو د خوشحالئ سره او د ایت په اول کښ لفظ د لهم مقدر دے یعنی لهم جنات عدن. اَسَاوِرَ په دے تخصیص کښ اشاره ده چه دوی به د کارکولو نه فارغ وی ځکه چه په لاسونو کښ کالی د هغهٔ چاوی چه پخپله هیڅ خدمت او کار نه کوی.
وَلُؤْلُؤًا دا عطف دے په محل د اساور باندے او هر کله چه دا د ټول بدن سره تعلق لری د دے وجے نه دا ئے د اساور نه په بیل طریقے سره ذکر کړو.
الْحَزَنَ مراد د دے نه ټول غمونه د دنیا او د اخرت دی. غم د اور د جهنم غم د مرګ غم د ګناهونو غم د حساب غم د میزان غم د زوال د نعمتونو غم د روزئ غم د عاقبت. دَارَ الْمُقَامَةِ په دے کښ اشاره ده چه جنت نه پروانډے دنیا او قبر او میدان حشر ټول د انتقال ځایونه دی نَصَبٌ ستړے کیدل د بدن په محنت یا په مرض وغیره. لُغُوْبٌ ستړے کیدل د نفس په غمونو او تکلیفونو سره.

وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا ۚ كَذَٰلِكَ

او نه به شي سپكيدلے د دوى نه د عذاب د هغے نه دغه شان

نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ ﴿٣٦﴾ وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ

سزا وركوو مونږ هر منكر ته. او دوى به چغے وهي

فِيهَا رَبَّنَا أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِي

په هغے كښ اے ربه زمونږه اوباسے مونږه عملونه به كوو دَسنت برابر سِوا د هغه

كُنَّا نَعْمَلُ ۚ أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ

عملونو نه چه مونږ كول (اوبه ويلے شي) آيا عمر نه وُو دركړے مونږ تاسو ته دومره چه نصيحت قبول كړے وُو

فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ ۖ

په هغے كښ چا چه نصيحت قبلوؤ او راغلے وُو تاسو ته ويره دركوؤنكے

فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴿٣٧﴾

نو اوڅكئ نيشته د ظالمانو د پاره هيڅ مددګار -

إِنَّ اللَّهَ عَالِمُ غَيْبِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ

يقينًا الله تعالىٰ عالم دے په پټو خيزونو د آسمانونو او د زمكے.

---

۳۶ :. دا تخويف اخروى دے منكرينو لره په درے حالتونو سره. لَا يُقْضَىٰ عَلَيْهِمْ يعني په دوى باندے د دويم مرګ حكم نشي كيدلے اګرچه دوى به مطالبه كوى وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ (زخرف ۷۷) او اشاره ده چه مرګ بغير د حكم د الله تعالىٰ نه نشي راتلے.

---

۳۷ :. دا هم تخويف دے په ذكر د څلورو طريقو سره. غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ دا لفظ دليل دے چه دوى به خپلو عملونو ته صالح وئيل (ويحسبون انهم يحسنون صنعا) او س ورته معلومه شوه چه هغه عملونه صالح نه وو ځكه دا قيد يئے اولګوؤ. أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ دا دے نه مخكښ يقال پټ دے يعني اويه ويلے شي دوى ته په ډيره زورنے سره. مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ حديث د بخارى كښے چه چا له الله تعالىٰ شپيته كاله عمر وركړے دے نو د دۀ هره بهانه يئے روكه كړے ده. النَّذِيرُ مراد د دے نه پيغمبر دے يا كتاب الله دے يا هر داعى د حق دے يا بوډاوالے رسپين والے د ويښتو دے).

ع ۴

إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿٣٨﴾ هُوَ ٱلَّذِى

یقیناً هغه پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو د خلقو کښې دی۔ خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے

جَعَلَكُمْ خَلَٰٓئِفَ فِى ٱلْأَرْضِ ۚ فَمَن كَفَرَ

جوړ کړے ئے تاسو یو بل پسے آبادوونکی په زمکه کښې نو چا چه کفر اوکړو

فَعَلَيْهِ كُفْرُهُۥ ۖ وَلَا يَزِيدُ ٱلْكَٰفِرِينَ

نو په هغه باندے به سزا د کفر د هغه وی او نه زیاتوی کافرانو لره

كُفْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا ۖ وَلَا يَزِيدُ

کفر کول د هغوی په نیز د رب د هغوی مگر غصه او نه زیاتوی

ٱلْكَٰفِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا ﴿٣٩﴾ قُلْ

کافرانو لره کفر کول د هغوی مگر تاوان ۔ ته اُوایه ۔

ف ۳۸ :۔ دا دریم باب دے تر آخر د سورت پورے په دے کښې درے عقلی دلیلونه دی او طلب د دلیل دے د مشرکانو نه او زجر دے اهل شرک ته او په آخر کښې تخویف دنیوی تفصیلی دے۔ په دے (ف ۳۸) کښې یو ؤلسم عقلی دلیل دے په باره د علم غیب د الله تعالیٰ کښې۔ او په دے کښې اشاره ده جواب د مشرکینو ته یعنی الله تعالیٰ عالم دے په دے خبره باندے که تاسو دنیا ته واپس اوکرځوی نو بیا هم تاسو عمل صالح نه کوئے۔

ف ۳۹ :۔ دا دولسم دلیل عقلی دے یعنی هر کله چه الله تعالیٰ عالم دے په هر څیز باندے نو د دے وجے نه تاسو له ئے د استعداد موافق خلافت در کړے دے۔ خَلَٰٓئِفَ یو بل پسے آبادوونکی د زمکے یا روستنی امتیان خلیفګان دی د تیر شوؤ امتونو۔ خلیفه هغه څوک چه نائب وی د بل چا ته په کار چلوئلو د هغه کښې۔ او هر کله چه الله تعالیٰ نائب ته محتاج نه دے د دے وجے ابوبکر رضی الله عنه لفظ یا خلیفة الله بد ګڼړلے دے او خلیفة رسول الله صلی الله علیه وسلّم ئے غوره کړے دے او دا تفسیر قرطبی کښې ذکر دی۔ فَمَن كَفَرَ یعنی خلافت په تاسو باندے نعمت او احسان د الله تعالیٰ دے او سرهٔ د دے نه چه چا کفر او ناشکری اوکړه نو وبال د کفر به خاص په هغهٔ باندے وی۔ وَلَا يَزِيدُ ٱلْكَٰفِرِينَ یعنی څومره چه په کفر کښې ترقی کوی نو دومره د الله تعالیٰ غضب په هغه باندے زیاتیږی ر پاتے په بل مخ

أَرَءَيْتُمْ شُرَكَآءَكُمُ الَّذِينَ تَدْعُونَ

ايا بوهه يئ تاسو په باره د شريكانو ستاسو هغه چه تاسو يئ بلنه كوئ

مِن دُونِ اللَّهِ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا

سوا د الله تعالى نه او ښايئ ماته چه څه پيدا كړيدى

مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ

دوى د زمكے نه ايا دوى لره برخه ده په اسمانونو كښ

أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا فَهُمْ عَلَىٰ بَيِّنَتٍ مِّنْهُ

او يا وركړے دے مونږ دوى ته كتاب نو دوى په ښكاره دليل باندے دى د دغه كتاب نه

بَلْ إِن يَعِدُ الظَّالِمُونَ بَعْضُهُم بَعْضًا

بلكه وعدے نه كوى ظالمان بعض د دوى د بعضو سره

إِلَّا غُرُورًا ﴿٤٠﴾ إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ

مگر د دهوكے . يقيناً الله تعالى راټينگوى اسمانو نه

او د غضب الٰهى په سبب د دے كافر خُسران او تاوان زياتيږى ځكه چه سرمايه د عمريئ بے ځايه خرچ كيږى . او غضب الٰهى سبب دے او خسران مسبّب دے د دے د وجے نه غضب يئ په خسران باندے مخكښ راوړے دے .

سلا :- په دے ايت كښ زجر دے مشركينو ته رچه مخكښ ايت كښ په من كفر سره ذكر شول ) او طلب د دليل دے په شرك باندے اول دليل عقلى سفلى دويم دليل عقلى علوى دريم دليل نقلى او وحى د نازل كړے شوى كتاب نه دا رنگ په سورة احقاف سك كښ هم ذكر دى . د سموات سره يئ شرك ذكر كړو خلق يئ نه دے ذكر كړے ځكه چه بره په اسمانونو كښ د شركاؤ د خلق هيڅ امكان نيشته هاں د برخے د تصرف كولو دعوے كيدے شى .

اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا دا دليل دے چه كتاب الٰهى دليل كيدے شى بل كتاب دليل نه دے

بَلْ إِنْ يَّعِدُ الظّٰلِمُوْنَ يعنى دليلونه نيشته بلكه خالص تقليد دے دا كشران په مشرانو گمراهانو پسے بے دليله روان دى او گمراهان (مشركان) ورله دهوكه وركوى باطله خبره ورته حقه ښكاره كوى شرك ورته توحيد او بدعت ورته سنت ښكاره كوى .

وَالْأَرْضَ أَنْ تَزُوْلَاۚ وَلَئِنْ زَالَتَا إِنْ

او زمکه د خوځیدلو د خپل ځائے نه او که چرے دوی اوخوځیدل نشی

أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ مِّنْ بَعْدِهٖ ؕ إِنَّهٗ

راټینګولے دوی لره هیڅوک روستو د خوځیدلو نه یقینًا الله تعالٰی

كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا ﴿٤١﴾ وَأَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ

صبر ناک بخنه کوونکے دے. او قسمونه کړے دی دوی په الله تعالٰی باندے

جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ

پاخه قسمونه چې که چرے راغے دوی ته ویره ورکوونکے

لَّيَكُوْنُنَّ أَهْدٰى مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ ۚ

ضرور دوی به بنۀ هدایت والا شی د هر یو د امتونو نه

فَلَمَّا جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُوْرًا ﴿٤٢﴾

نو هر کله چه راغے دوی ته ویره ورکوونکے نو زیات یې نه کړو دوی لره مګر نفرت۔

سا ۴۱ :- دا دیارلسم دلیل عقلی دے هرکله چه د معبودان من دون الله عجز او کمزوری بیان شوه نو اوس الله تعالٰی خپل عظمت شان بیانوی. أَنْ تَزُوْلَا مفعول له دے یعنی لپلا تزولا او کراهیة ان تزولا یا مفعول ثانی دے یعنی من ان تزولا یا بدل اشتمال دے د ماقبل نه. وَلَئِنْ زَالَتَا یعنی که مشرکان اوائی چه معبودان من دون الله تعالٰی د ځۀ عذر د وچ نه اول امساک نشی کولے هغه یې الله تعالٰی ته پریخودلے دے لیکن نور تصرفات کولے شی نو په دے جمله کښ د هغې جواب اوشو او اشاره ده چه د اسمانونو او زمکے زوال د خپلو ځایونو نه ممکن دے په انشقاق او زلزلے سره. إِنْ أَمْسَكَهُمَا دا جواب قسم دے چه معنیٰ د لام ده او جواب شرط چه إِنْ دے هغه محذوف دے. إِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا یعنی د مخلوق د ګناهونو د وجے نه نزدے ده چه اسمانونه او زمکه زائله شی لیکن الله تعالٰی حلیم دے د مخلوق نه (چه مستحق د عذاب دی) عذاب روستو کوی۔

سا ۴۲ :- دا زجر دے په انکار د رسالت او په ماتولو د قسم سره. هرکله چه مشرکین عرب ته معلومه شوه چه یهودیانو او نصاریٰ د خپلو رسولانو نه انکار کړے دے نو دوی قسم اوکړو چه که چرے موږ ته رسول راغے ر پاتے په بل مخ)

اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ وَمَكْرَ السَّيِّئِ ط

د وجې د لوئي کولو ته په زمکه کښې (او کوي دوی) ناکاره چلو ته ،

وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ ط

او نه راګیروي ناکاره چل ول مګر حقدار د هغې .

فَهَلْ يَنْظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ ج

نو انتظار نه کوي دوی مګر د طریقې د مخکښنتو خلقو .

فَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ج

نو او به نه مومې ته طریقې د الله تعالی لره بدلیدل ،

وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَحْوِيلًا ﴿٤٣﴾

او هیچرې او به نه مومې ته طریقې د الله تعالی لره اوړیدل .

نو مونږ به د هغې پوره تابعداري کوؤ - او ربط د مخکښ آیت سره دا دے چه یهودیانو ته رسولانو د زمکې او آسمانونو د امساک (ټینګولو) په باره کښې کوم خبر ورکړے وؤ نو دوی بدل کړے وؤ لکه چه تفسیر قرطبی کښې د تیر شوی آیت په تفسیر کښې د ابن مسعود او ابن عباس رضی الله عنهم نه نقل کړے دی چه هغوی د کعب الاخبار نه واوریدل چه آسمانونه د یو ملک (فرشتې) په اوګه باندے ګرځي نو هغوی پرے رد اوکړو. اِحْدَى الْأُمَمِ دا اضافت د پاره د استغراق دے یعنی د هر یو امت د امتونو مخکښو نه چه یهود او نصاریٰ دی.

نُفُوْرًا اشاره ده تشبیه ته د اوښانو سره لکه چه یو اوښ د مالک نه او تښتي او هغه ئې رابلي نو دده تښتیدل نور هم زیا تیږی.

س۴۳ :- اسْتِكْبَارًا بدل دے د نفورا نه او علت دے د پاره د نفرت کولو یا مفعول مطلق دے د پاره د فعل محذوف یعنی یستکبرون استکبارا - یا په معنیٰ د اسم فاعل دے او حال دے یعنی مستکبرین - فِي الْأَرْضِ په دے کښې اشاره ده چه په کوز مکان کښې چه زمکه ده لوئي کول ضدین جمع کول دی - وَمَكْرَ السَّيِّئِ په دے کښې هم هغه درے احتمالونه دی کوم چه په استکبارا کښې وو او دا اضافت د موصوف دے صفت ته یعنی مکر ناکاره - مراد د دے نه مؤمنانو او نبی صلی الله علیه وسلم سره دهوکے کول او د هغوی د تکلیف ورکولو یا

أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ

ایا دوی نه گرځي په ملک کښې چه اوګوری چه څه رنګ

كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَكَانُوا

شو آخری انجام دَ هغه کسانو چه دَ دوی نه مخکښې وو او وو هغوی

أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ۚ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعْجِزَهُ

ډیر سخت دَ دوی نه په قوت کښې او نه دے الله تعالیٰ چه بے وسه کړی هغه لره

مِن شَيْءٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ ۚ

هیڅ څیز په اسمانونو کښې او نه په زمکه کښې،

إِنَّهُ كَانَ عَلِيمًا قَدِيرًا ﴿٤٤﴾

یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے قدرت والا دے۔

---

قتل کولو دَ پاره چلوته جوړول یا هغوی ته خیرے کول دی۔ وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ یعنی دَ هغې چلوتو او دهوکو اثر به واپس په دوی باندے پریوځی او بد دُعائي به واپس په دوی باندے راځی تفسیر قرطبی کښې ویلے دی چه کعب الاخبار یو ځل ابن عباس رضی الله عنهما ته اویل چه په تورات کښې لیکلے دی چه من حفرء لاخیه حفرة وقع فیها (څوک چه رور ته کنده اوکنی نو دے به پکښې پریوځی) نو ابن عباس رضی الله عنهما ورته اویل چه دا سے په قرآن کریم کښې هم شته او دا جمله یې اولوستله۔ فَهَلْ يَنظُرُونَ الا دا تخویف دنیوی دے۔ تَبْدِيلًا او تَحْوِيلًا کښې فرق دے په څو وجوهو سره اوله وجه دا ده چه تبدیل دا دے چه عذاب لرے کړی او نعمت او عافیت راولی او تحویل دا دے چه عذاب کښې تخفیف راولی، دویم فرق دا دے چه څوک طاقت نه لری چه عذاب دَ الله تعالیٰ بدل کړی او دا رنګ طاقت نه لری چه عذاب دَ ځان نه واړوی بل چاته او دریم فرق تبدیل په اجل دَ عذاب کښې او تحویل په صفت دَ عذاب کښې۔

س۴۴ :- دا هم تخویف دنیوی دے هر کله چه سنة الاولین یې ذکر کړو نو په دے ایت کښې دَ هغې نه دَ عبرت حاصلولو طریقه ذکر کوی چه هغه سیل کول او نظر کول دی او تنبیه ورکوی چه دَ الله تعالیٰ سره زیاتے په بل مخ )

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوْا

او كه چرې نيولے الله تعالىٰ خلقو لره په وجه دَ هغه كارونو چه دوى كړے دى

مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ وَّلٰكِنْ

نه به ئې وُو پرېښودلے په شا دَ زمكه باندے هيڅ ژوندے سر ليكن

يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى ج فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ

روستو كوى دوى لره تر نيټې مقرر پورے نو كله چه راشى نيټه دَ دوى

فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِعِبَادِهٖ بَصِيْرًا ﴿٤٥﴾ ع

پس يقيناً الله تعالىٰ دے بندګانو خپلو لره ليدونكے.

---

په هيڅ طريقه مقابله نشى كيدلے. ليعجزه دَ دے نه مخكښ خبر دَ كانَ پټ دے يعنى ماكان الله ضعيفا ليعجزه. او مِنْ شَيْءٍ كښ مِن دَ پاره دَ استغراق او تاكيد دَ نفى دے.

۴۵:- داهم داخل دے په تخويف دنيوى كښ او هر كله چه منكر بتو عذاب په تا دے سره طلب كوؤنو په دے آيت كښ دَ هغې جواب دے اَلنَّاسَ كَ دے نه مراد ګناه ګار انسانان دى كه مؤمنان وى او كه مشركان وى. بِمَا كَسَبُوْا يعنى په ټولو ګناهونو دَ دوى چه بوهم ورته نه معاف كوى. او ټول دَ دے وج نه مراد دى چه په بعض ګناهونو سره په دنيا كښ بعضے عذابونه راځى لكه په سورة روم ۴۱ كښ تير شويدى. مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا، انسانان چه دَ زمكے په كوم طرف باندے سكونت كوى نو دَ دے مثال دَ مركوبے (سورلى) دے چه دَ هغې په شا باندے سورلى كيږى نو دے نه ئې دَ دے وج نه ظَهْر اويل. او دا رنګ دَ دے نه وجه الارض هم ويلے كيږى دَ دے وج نه چه مخ په بدن كښ ښكاره وى نو دا دَ استوګنے حصه دَ زمكے دَ او بونه ښكاره ده. مِنْ دَآبَّةٍ كے سوال او كړے شى چه ګناهونه انسانانو كړے دى نو اثر دَ هغې په دوابو (ژوندو سرو) باندے ولے پريوځى؟ اول جواب داد دے چه دَ ګناهونو دَ عذاب په وجه سره باران نه كم شى يا بند شى او بوټى هم كم شى او اوچ شى نو دغه ژوندى سر دَ لوږے او تندے دَ وج نه مړه شى او دليل داد دے چه بوسړى ويلے و چه بوظالم په خپل ظلم صرف ځان ته نقصان وركوى نو دعوٰى او تبليغ ته ضرورت نيشته نو ابوهريره رضى الله عنه ورته اويل دروغ دِ اويل قسم په الله تعالىٰ چه ژاټرے (مرغى) په خپلو جالو كښ دَ ظالمانو دَ ظلم په وجه سره خوارے او ټپے شى نو مړه شى. دويم جواب داد دے چه دوابّ انسانانو دَ پاره لوئے نعمت دے نو دَ انسانانو دَ ظلم په وجه سره دا نعمت په دَ دوى نه واغستلے شى. فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ دَ دے جزاء محذوف ده يعنى چه نيټه راشى نو ټول به مړه شى بيا دَ هر چا په مناسب جزاء وركولو باندے الله تعالىٰ عليم

تفسير دَ سورة فاطر په فضل دَ الله تعالىٰ سره ختم شو.

| اٰیَاتُهَا ۸۳ / رُكُوْعَاتُهَا ۵ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | سُوْرَةُ یٰسٓ ۳۶ مَكِّيَّةٌ ۴۱ |
|---|---|---|

یٰسٓ ﴿۱﴾ وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِیْمِ ﴿۲﴾ اِنَّكَ

الله تعالىٰ دے مراد باندے ښهٔ پوهه دے۔ قسم دے په قران حکمتونو والا باندے چه یقینًا ته

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

**سورة یٰسٓ** :۔ دَ دے سورت نور نومونه دادی۔ سورة قلب القراٰن ، سورة المعمّه ، سورة المدافعة ، سورة القاضیة ، سورة العزیزة او سورة العظیمة ،

**ربط** دَ دے سورة دَ مخکښ سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه داده چه مخکښ سورة کښ دَ رد دَ شفاعة شرکیه دپاره عقلی دلیلونه وو نو په دے سورت کښ دلیل نقلی ذکر کوی ، دویمه وجه داده چه دَ هغه سورت په آخر کښ تخویف دنیوی ذکر وؤ نو په دے سورت کښ دَ تخویف دنیوی یو نمونه ذکر کوی ۔ دریمه وجه داده چه په مخکښ سورت کښ مسئله ثابت شوه په دلیلونو سره نو په دے سورت کښ تشجیع ورکوی په دعوت باندے او دَ هغے طریقه هم ذکر کوی ۔

**دعوىٰ دَ سورت** ۔ اثبات دَ صداقتِ رسول دے عمومًا او په رد دَ شفاعة شرکیه کښ خصوصًا دا دعوىٰ په آیت ۳ کښ ده او مقصد دَ دعوے عمومًا په ۶ او دَ دعوے خصوصًا په ۲۳ ۴۳ ۷۵ کښ دے ۔

**خلاصه دَ سورت** ۔ په دے کښ درے بابونه دی اول باب تر ۳۱ پورے دے په دے کښ شهادت دَ قران ذکر کوی په دعوىٰ باندے او مقصد دَ دعوے ذکر کړے دے او زجر او تخویف دے په خلورو آیاتونو کښ بیا بشارت او دلیل عقلی مختصر دپاره دَ اثبات دَ توحید او قیامت ذکر کوی ۔ بیا دلیل نقلی دے ۔

### تفسیر

۱ ۔ یٰسٓ دا دَ مقطعاتو نه دے لویه فائده په دے کښ تنبیه ده په اعجاز دَ قران کریم باندے او دَ بعضو نه نقل دی چه دا په معنیٰ دَ یا سیّد البشر دے لیکن دا چه مشهوره ده چه دا نوم دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دے نو دا په صحیح روایت سره ثابت نه ده کوم روایت چه قرطبی او ماوردی راوړے دے بے سنده او ضعیف دے ۔

۲ ۔ وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِیْمِ واو دپاره دَ قسم دے او قران کلام الله دے

لِمَنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳﴾ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۴﴾

(ضرور دَ رسولانو نه ئے په لارے نیغے باندے.)

تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ﴿۵﴾ لِتُنْذِرَ

(نازل کړے دے په تا باندے) نازلول دَ زور اور ذات چه رحم کوونکے دے. دے دَ پاره چه ویره ورکړے

مخلوق نه دے بلکه صفت دَ الله تعالیٰ دے نو دا قسم په مخلوق باندے نه دے.
کــ څوک سوال اوکړی چه دَ قسم مقصد خو داوی چه کـ چرے زه دروغژن
یم نو مقسم به مالِه تکره او سزا را کړی او دا دَ الله تعالیٰ دَ شان سره نـه خائیږی
جواب دا دے چه صفتونه او کارونه دَ الله تعالیٰ په مخلوق باندے نه قیاس کیږی
قسم دَ الله تعالیٰ دَ تاکید او شهادت دَ پاره وی په دعویٰ باندے په طریقه دَ
دلیل سره. او دا رنګ خطیب شربیني په تفسیر سراج المنیر کښ ویلے دی چه دا مجرّد
حلف نه دے بلکه دلیل دے په شکل دَ قسم کښ ځکه چه قرآن معجزه او دلیل دے
دَ رسالت دَ رسول صلّی الله علیه وسلّم. کــ څوک سوال اوکړی چه دلیل ئے په
صورت دَ قسم کښ دَ څه حکمت دَ پاره ذکر کړو خالص دلیل ئے ولے نه راوړو؟ جواب دا دے
چه په دے کښ ډیر حکمتونه دی اول حکمت دا دے چه قسم کول دَ لوئے ذات دَ طرفه
دلیل وی چه مقسم علیه امرِ عظیم دے نو مخاطب ورته په شوق سره غوږ ږدی،
دویم حکمت دا دے چه دَ عربو هم عقیده وه چه په دروغه باندے قسم کول سبب دَ
تباهئ دے او نبی صلّی الله علیه وسلّم په ډیرو حالاتو کښ قسمونه کړے دی
او هیڅ مصیبت ورته نه دے رسیدلے نو معلومه شوه چه دے صادق دے.
دریم حکمت دا دے چه دلیلونه په تیر شوے سورت کښ ډیر بیان شول او دَ هغے
باوجود دوی سخت انکار اوکړو چه هغه دَ سورة فاطر په ایت ۴۲ کښ ذکر دے
نو دَ دے وجے نه رجوع اوکړے شوه قسم ته یعنی دلیلونه دوی ته فائده نه ورکوی
نو قسم کول ضروری شو.

۳:۔ دا جوابِ قسم او دعویٰ دَ سورت ده دَ دے وجے نه په اِنَّ او په لام دَ تاکید
باندے مشتمله ده.

۴:۔ دا ذکر دَ صفت دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم او دَ دویم جوابِ قسم دے یعنی رو ستو
دَ وصف دَ رسالت نه بیان دَ مسلک دَ رسول دے او دا دلیل دے چه طریقه او سنّت
دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم صراط مستقیم ده.

۵:۔ دا دریم جوابِ قسم دے او فعل ئے حذف دے یعنی نَزَّلَ تنزیلًا یعنی دَ قرآن

قَوْمًا مَّآ أُنذِرَ ءَابَآؤُهُمْ فَهُمْ غَٰفِلُونَ ⑥

هغه قوم ته چه ویره نه وه ورکړے شوے مشرانو د دوی ته نو دوی بے پرواه دی۔

لَقَدْ حَقَّ ٱلْقَوْلُ عَلَىٰٓ أَكْثَرِهِمْ فَهُمْ

یقینًا پوره شوے دے حجت په ډیرو د دوی باندے نو دوی

لَا يُؤْمِنُونَ ⑦ إِنَّا جَعَلْنَا فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ

ایمان نه راوړی ۔ یقینًا اچوو موږ د دوی په ستونو کښ

أَغْلَٰلًا فَهِىَ إِلَى ٱلْأَذْقَانِ فَهُم مُّقْمَحُونَ ⑧

طوقونه نو هغه په تر زنو پورے وی نو سرونه د دوی په پورته کړے شوے وی۔

حکمتونه شهادت کوی چه دا د الله تعالیٰ (چه عزیز او رحیم دے) کتاب دے۔ تر دے پورے مرسَل او طریقه د مرسَل او مرسِل ذکر شول.

۶ :۔ په دے کښ ذکر د مقصد د رسالت او د مرسَل الیهم دے او په دے کښ اشاره ده چه دا آخری نبی په داسے وخت کښ رالیږلے شوے دے چه اهلِ دنیا د ده رسالت ته (د وجے د غفلت نه) محتاج وو او دا هم د دے پیغمبر عظمت شان دے او داسے په سورة سبا ۴۴ او سورة سجده ۳ کښ تیر شوے دی.

۷ :۔ هر کله چه مقصد د رسالت ذکر شو چه انذار دے نو سوال راغے چه دا نول خلق ولے ایمان نه راوړی نو په دے آیت کښ د هغے جواب کوی په ذکر د مانع سره۔ لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ مراد د دے نه فیصله د عذاب ده چه هغه په سورة هود ۱۱۹ او سورة صٓ ۸۵ کښ ده. او فیصله د تقدیر ده یا مراد ترینه حجت پوره کول دی په رالیږلو د نذیر سره۔

۸ :۔ په دے آیت کښ درے توجیهات دی اول توجیه عامو مفسرینو واقعه د ابو جهل او د نورو کافرانو لیکلے ده چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وهلو او د مانځه او دعوت نه منع کولو کوشش ئے کولو نو لاسونه ئے د ستونو سره ونختل۔ نو ربط دا دے چه دا یو قسم حجت چه په دوی باندے قائم شو په طریقه د معجزے سره نو دا تفسیر د حق القول دے۔ دویمه توجیه دا ده چه دا به په قیامت کښ د دے کافرانو حال د عذاب وی نو دا تخویف اخروی شو، دریمه توجیه دا ده چه دا تمثیل دے د مانع د دوی د ایمان راوړلو نه او دویم جواب او وجه د د دوی د ایمان نه راوړلو یعنی اغلال په ستونو کښ کنایه ده (پاتے په بل مخ)

وَجَعَلْنَا مِنْ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ سَدًّا وَّمِنْ

او جوړ وو به موږ د دوی مخې ته دیوال او د

خَلْفِهِمْ سَدًّا فَاَغْشَيْنٰهُمْ فَهُمْ لَا

دوی نه رستو ته دیوال نو راګیر به کړو دوی لره نو دوی به

يُبْصِرُوْنَ ⑨ وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ

هیڅ ته وینی. او برابر دے په دوی باندے ویره ورکول ستا دوی لره

د تقلید د مشرانو ګمراهانو ته بغیر د دلیل نه. لکه چه پلن طوق د یو انسان سټ نه پروت وی نو سر ئے اوچت وی اولاړے ته ګتلے نشی نو تکرے وهی او کله په کنده کښ غورزیګی نو دارنګ دوی د مشرانو د تقلید شرکی په وجه سره د هدایت نه محرومه دی. فَهِىَ اِلَى الْاَذْقَانِ ضمیر راجع دے اغلال ته یعنی اغلال دومره پلن دی چه د زنو پورے تول سټ ئے بند کړے دے یا ضمیر راجع دے لاسونو ته چه دلالت معلومیږی یعنی لاسونه ئے د سټونو سره په اغلالو کښ بند دی.

س۹ :- په دے ایت کښ هم هغه درے توجیهات دی اوله توجیه داده چه کافرانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ویشتلو اراده اوکړه نو الله تعالیٰ په دیوالونو کښ راګیر کړل نو دا معجزانه حجت پرے قائم شو لیکن بیا هم ایمان ته رانوړی. دویمه توجیه داده چه دا به په جهنم کښ د دوی حال وی نو تخویف اخروی دے. دریمه توجیه داده چه دا تمثیل دے او ذکر د دریم مانع دے د هدایت نه یعنی لکه چه د یو انسان مخ او روستو ته دیوال وی نو مخکښ او روستو نشی تللے او سترګے ئے هم بندے وی. دارنګ د دوی د قیامت باره کښ دیوال د شبهاتو دے او د دنیا په باره کښ دیوال د شهواتو دے نو د حق نه ړانده دی او د هدایت نه محروم دی.

که څوک سوال اوکړی چه مخ او شاته ئے دیوال ذکر کړو نو نخی طرف او ګس طرف ته ئے ولے ذکر نه کړو؟

نو جواب دادے چه کله ښی طرف یا ګس طرف ته مخ کړی نو بیا هم یو طرف مخ ته شو او بل طرف شاته شو نو بین ایدیهم او خلفهم دے ته هم شامل دے.

أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ⑩ إِنَّمَا

او ويره نه وركول دوى لره ايمان نه راوړى . يقينًا

تُنْذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمٰنَ

ويره وركوے ته (فائده ناكه) هغه چاته چه تابعدارى كوى دَ نصيحت او ويره كوى دَ رحمان نه

بِالْغَيْبِ ج فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَّأَجْرٍ كَرِيْمٍ ⑪

په حال دَ نه ليدلو كښ نو زيرے وركړه دهٔ لره په بخنه او ثواب عزت منه .

إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتٰى وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوْا

يقينًا مونږ په ژوندى كوو مړى او ليكو مونږ هغه عملونه چه دوى مخكښ ليږلے دى

وَآثَارَهُمْ ط وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنٰهُ

او روستو كارونه دَ دوى او هر څيز راګير كړے دے مونږ

فِيْٓ إِمَامٍ مُّبِيْنٍ ع ⑫ وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا

په كتاب ښكاره كښ . او بيان كړه دوى ته عبرت ناكه واقعه

سنا :- دا څلورم مانع او جواب دے چه دوى ته دَ عناد او دَ ضد دَوجے نه انذار وركول او عدم انذار برابر دى .

سلا :- هركله چه معلومه شوه چه ضديان عناديانو ته انذار فائده نه وركوى نو سوال راغے چه دَ انذار وركولو څه فائده ده ؟ حاصل دَ جواب دادے چه اتابت والو ته فائده وركوى او دَ هغوى دوه صفتونه ئے ذكر كړيدى يو اتباع دَ قرآن او دويم خشيت دَ رحمٰن . خشيت ئے روستو ذكر كړو نو اشاره ده چه هغه خشيت مراد دے كوم چه دَ قرآن نه حاصليږى او دوه جزاګانے ذكر كړيدى . كَرِيْمٍ دَ دنيا په اجرت كښ ذلت محسوس كيږى او دَ آخرت اجر كښ كرامت او عزت دے .

سلا :- په دے كښ وخت دَ اجر ذكر كوى چه هغه حيات بعد الموت دے او دا دليل عقلى دے دَ پاره دَ توحيد . إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتٰى معنیٰ ظاهرى مراد ده دَ پاره دَ اثبات دَ قيامت او دَ ضحاك او حسن نه نقل دے چه په دے سره ايمان بعد الكفر مراد دے . وَنَكْتُبُ دا كتابت دَ احيا بعد الموت نه مخكښ دے ليكن هركله چه مقصد دَ احياء بعد الموت حساب دَ عملونو دے دَ دے (پاتے په بل مخ)

وقف لازم - وقف غفران - ع ۱۴/۲/۱۲

أَصْحٰبَ الْقَرْيَةِ ۘ إِذْ جَآءَهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿١٣﴾

دَ یو ښار والو کله چه راغله هغې ته رسولان .

إِذْ أَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوْهُمَا

کله چه او لیږل مونږ هغوی ته دوه کسان نو هغوی ورته دروغژن ویل

وجے نه مقصد ئے په احیاء پسے ذکر کړو. دَ دے کتابت نه مراد کتابت دَ کراماً کاتبین دے چه هغوی اعمال په خپلو صحیفو کښ لیکی. یا دَ کتابت نه مراد تقدیر کښ لیکل دی او مضارع په معنٰی دَ ماضی ده. مَا قَدَّمُوْا په اول معنٰی سره مراد دَ دے نه هغه عملونه دی چه انسان کړے وی نو آخرت ته ئے روان دے لیکلے دی او په دویمه معنٰی سره ماقدموا واخروا مراد دے یعنی ټول اعمال مراد دی.

وَآثَارَهُمْ مراد دِ دے نه قدمونه اغستل دی مسجد ته دَ عبادت دَ پاره یا هر هغه قدمونه چه کارِ خیر دَ پاره ئے انسان اخلی. یا مراد دَ دِ دے نه هغه نیک یا بد عملونه دی چه انسان ئے دَ روستو خلقو دَ پاره پریږدی او روستو خلق په هغې باندے عمل کوی تفسیر قرطبی دَ هغې دا مثالونه ویلے دی، علم چه دَ هغې تدریس ئے کړے وی یا ئے کتاب تصنیف کړے وی یا ئے وقف کړے وی یا مسجد، مسافرخانه، پُل وغیره ئے جوړ کړے وی دا نیک عملونه دی او دَ بدو عملونو مثالونه دا دی ټیکسونه چه بعضے ظالمانو بادشاهانو په مسلمانانو مقرر کړے وی او لارے چه په هغې کښ مسلمانانو ته نقصان ورکړے وی یا هغه غزل خوانے او دَ لوبو کارونه چه په هغې سره دَ الله تعالٰی دَ لارے نه خلق منع کیږی. او دا رنګ هره طریقه خائسته یعنی سنّت جاری کول یا ناکاره طریقه لکه بدعات ایجاد کول او جاری کول. وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنٰهُ فِيْٓ إِمَامٍ مُّبِيْنٍ په دویمه معنٰی دَ نکتب سره دا تعمیم بعد التخصیص دے په باره دَ تقدیر کښ او په اوله معنٰی دَ نکتب سره دا ذکر دَ لیکلو دَ تقدیر دَ هر شئ دے او بیا روستو لیکل دَ ملائکو دی دَ دِ دے وجے ئے أَحْصَيْنٰهُ فعل ماضی راوړه او نکتب فعل مضارع ځکه چه کتابت دَ ملائکو دَ تقدیر نه روستو دے. إِمَامٍ هر هغه څیز ته ویلے کیږی چه په هغې پسے اقتدا کیږی دَ دِ دے وجے نه ئے تورات ته هم امام ویلے دے په سورة هود ۱۷ کښ او هر کله چه روستو ټول کارونه دَ تقدیر (دَ لوح محفوظ) تابع دی نو دَ دِ دے وجے نه هغې ته

۱۳ :. دا متعلق دے په لتنذر پورے. دا مثال دَ انذار (تخویف دنیوی) دے او دلیل نقلی دے په توحید باندے او دا رنګ په دے کښ په انذار کولو باندے تشجیع ده سره دَ ذکر دَ طریقې دَ انذار (دعوت) نه. الْمُرْسَلُوْنَ دا اجمال دے دَ دے وجے نه جمع ئے ذکر کړه.

فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوْٓا اِنَّآ اِلَيْكُمْ

نو کلک کړه مونږ په دریم سره نو دوی اُوئیل یقیناً مونږ تاسو ته

مُّرْسَلُوْنَ ﴿۱۴﴾ قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ

رالیږلے شوے یو- دوی اوئیل نه یئ تاسو مګر بندګان یئ

مِّثْلُنَا ۙ وَمَآ اَنْزَلَ الرَّحْمٰنُ مِنْ شَيْءٍ ۙ

زمونږ پشان او نه دے نازل کړے رحمان هیڅ څیز

اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا تَكْذِبُوْنَ ﴿۱۵﴾ قَالُوْا رَبُّنَا

نه یئ تاسو مګر دروغ وایئ دوی اُوئیل رب زمونږ

يَعْلَمُ اِنَّآ اِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُوْنَ ﴿۱۶﴾ وَمَا

پوهه دے چه یقیناً مونږ تاسو ته خامخا رالیږلے شوے یو - او نیشته

۱۴:- دا دَ اِذْ کذبتهم نه بدل دے او تفصیل بعد الاجمال دے. تیرو شوؤ زمانو کښې به یو کلی ته به اکثر ډیر رسولان په یو ځائے رالیږلے کیدل. او په دے کښې تسلّی ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته چه ستا نه مخکښې هم دَ رسولانو تکذیب کړے شوے دے.

۱۵:- دا تفصیل دَ تکذیب دے په درے طریقو سره. دَ دے نه معلومه شوه چه دَ بشریت دَ رسول نه انکار کول دَ مشرکانو زړه جاهلانه عقیده ده.
وَمَآ اَنْزَلَ الرَّحْمٰنُ مِنْ شَيْءٍ مراد دا چه په بشر باندے رحمان ذات وحی چرے نه ده رالیږلے یا دَ شَيْءٍ نه مراد وحی دَ توحید ده. تَكْذِبُوْنَ یعنی په مسئله دَ توحید او په دعوی دَ رسالت کښې تاسو دروغژن یئ.

۱۶:- رَبُّنَا يَعْلَمُ دا جمله دَ قسم په ځائے باندے قائم ده دَ دے وجے نه دَ يَعْلَمُ مفعول یئ نه دے ذکر کړے او جواب یئ مؤکد کړے دے په لام سره. او دَ دے لام دَ وجے نه دَ یعلم نه روستو اِنَّ په زیر سره راوړے دے.

عَلَيْنَآ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿١٧﴾ قَالُوْٓا اِنَّا

په مونږ باندے مګر رسول ښکاره دی ۔ دوی اُویل یقیناً

تَطَيَّرْنَا بِكُمْ ۚ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهُوْا

مونږ سپیره حاله شو ستاسو د وجے نه که چرے منع نه شوئے

لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُمْ مِّنَّا عَذَابٌ

نو سنګسار به کړو تاسو او خامخا اد به رسیږی تاسو ته زمونږ د طرف نه عذاب

اَلِيْمٌ ﴿١٨﴾ قَالُوْا طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ ؕ

درد ناک ۔ دوی اُویل سپیره والے ستاسو د وجے نه دے

اَئِنْ ذُكِّرْتُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ﴿١٩﴾

ایا چه تاسو ته نصیحت درکیږی تو انکار کوئے بلکه تاسو قوم یئے د حد نه تیریدونکی ۔

ف ١٧ :۔ یعنی هرکله چه مونږ رسولان یو نو د رسول ذمه واری صرف تبلیغ دے که تاسو منل کوئے یا نه کوئے.

ف ١٨ :۔ دا د هغوی د تکذیب بله طریقه ده یعنی دوی ویل چه ستاسو تبلیغ باطل دے ځکه چه د دے د وجے نه په مونږ باندے بد حالی راغله بیمارے قحط مالی ګرانی د ترخوتو وغیره. او دا سے نسبت یئے موسٰی علیه السلام ته هم کړے وو لکه سورة اعراف ف ١٣١ کښ۔ لَنَرْجُمَنَّكُمْ نه په کانړو ویشتل یا کنځل او زورنه کول مراد دی۔ عَذَابٌ اَلِيْمٌ نه قتل کول، اندامونه پریکول یا سخت وهل مراد دی.

ف ١٩ :۔ طَآئِرُ د انسان مقرر برخے ته ویلے کیږی چه د الله تعالیٰ د طرف نه راځی مراد ترینه بد حالی ده مَعَكُمْ تاسو پورے لازم ده ستاسو د ناکاره عملونو د وجے نه او هرکله چه دا بد حالی په حکم د الله تعالیٰ سره راځی او د هغهٔ د طرف نه مقرروی د دے وجے نه سورة اعراف ف ١٣١ کښ عند الله فرمائیلے دے او هرکله چه سورة اعراف کښ فرعونیانو باندے رد دے او هغوی د ډیر طغیان د وجے د عذابونو نسبت الله تعالیٰ ته نه منلو نو د هغوی په جواب کښ عند الله او ویلے شو او په دے ایاتونو کښ دے قوم د خپلو عملونو سزا ته منله په دے وجے سره دلته معکم او ویلے شو ۔ اَئِنْ ذُكِّرْتُمْ د دے جزاء پټه ده یعنی تاسو په تذکیر سره تطیر کوئے یعنی په نصیحت کښ سپیرهٔ والے ګڼړئے.

وَجَآءَ مِنْ أَقْصَا الْمَدِيْنَةِ رَجُلٌ يَّسْعٰى

او راغے دَ لرے طرف دَ ښار نه یو نارینه منډے وهلے

قَالَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٢٠﴾ اتَّبِعُوْا

اویل یئے اے قومه زما تابعداری کوئے دَ پیغمبرانو تابعداری دَ هغه چا

مَنْ لَّا يَسْـَٔلُكُمْ أَجْرًا وَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿٢١﴾

چه نه غواړی ستاسو نه هیڅ بدله او هم دوی هدایت والا دی۔

بَلْ أَنْتُمْ په دے کښ تصریح ده چه سبب دَ بدحالے ستاسو اسراف یعنی شرک او کفر او دَ دین نه خلق منع کول دی۔

**فائده:** دَ دے آیاتونو نه معلومه شوه چه تَطَیُّر یعنی بدحالی بیمارے وغیره په هر انسان دَ هغهٔ دَ عمل دَ وجے نه راځی دَ هغے نسبت مکان یا زمانے ته یا بل سړی ته کول جائز نه دی دَ دے وجے نه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی لا طیرة فی الاسلام یعنی اسلامی اصول دادی چه دَ خپلے بدحالے سبب به دَ بل چا عمل یا صفت نه گرځوئے بلکه خپل عمل به دَ هغے سبب گنړئے۔

ن ۲۰ :۔ دا رنگ په سورة قصص ن ۲ کښ تیر شویدی هغه سورت کښ رجل مخکښ ذکر کړے دے او دلته رجل روستو ذکر دے وجه دا معلومیږی چه په هغه سورت کښ حفاظت دَ نبی دے دَ قتل نه او په دے سورت کښ حفاظت دَ انبیاؤ دے دَ تکذیب نه او اول کار ډیر اهم دے په نسبت دَ دویم سره او حفاظت دَ رجولیت (سړیتوب) په وصف سره دے یعنی هغه انسان نر دے چه دَ انبیاؤ حفاظت او ملګرتیا کوی۔ اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِيْنَ په اُمتی باندے لازم وی چه دَ نبی تابعدارئے نه خلق را او غواړی۔

ن ۲۱ :۔ دا ذکر دَ دوؤ علتونو دے دَ پاره دَ لزوم دَ اتباع دَ رسولانو اول دَ عوض طمع نه کول دَ انسانانو نه او دا دلیل دَ اخلاص دے او داسے انسان حق هم نه پټوی دویم اهتداء یعنی په دلیل دَ وحی پسے تلل او دَ وحی موافق عمل کول او دا دلیل دَ حقانیت دے۔

وَمَالِيَ لَآ اَعۡبُدُ الَّذِيۡ فَطَرَنِيۡ وَاِلَيۡهِ

او څه دلیل دے زما چه بندګی نه خاص کوم دَ هغه ذات چه زه یې دَ اول سر نه پیدا کړے یم او خاص هغه ته

تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۲۲﴾ ءَاَتَّخِذُ مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اٰلِهَةً

به او ګرځولے شئ. ایا او نیسم زه سِوا دَ الله تعالیٰ نه نور معبودان

اِنۡ يُّرِدۡنِ الرَّحۡمٰنُ بِضُرٍّ لَّا تُغۡنِ عَنِّيۡ

که چرے او غواړی ما لره رحمان ذات څه ضرر نو نه شی لرے کولے زما نه

شَفَاعَتُهُمۡ شَيۡـًٔا وَّلَا يُنۡقِذُوۡنِ ﴿۲۳﴾ اِنِّيۡۤ

سفارش دَ دوی هیڅ ضرر او نه دوی ما لره خلاصولے شی. یقیناً زه به

۲۲:. په دے کښې دعوت دے توحید ته په احسن طریقے سره دَ دے وجے نه چه دَ خبرے سر دَ ځان طرف ته شوروکوی دَ پاره دَ دے چه مخاطب بد او نګنړی او دَ خبرے آخر سر مخاطب ته اړوی. او دا جواب دَ سوال دے یعنی قوم ورته په زور نه اویل چه ته هم دَ دوی سره ملګرے یې نو هغه جواب اوکړو چه هان دَ دوی ملګرتیا پریخودلو دَ پاره زما څه عذر او دلیل نیشته. او فَطَرَنِيۡ کښې دلیل دَ توحید فی العبادة دے وَاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ کښې عقیده دَ بعث بعد الموت ده. په مَالِيَ کښې عدم دَ مانع ذکر دے او فَطَرَنِيۡ کښې مقتضی او سبب ذکر دے او عدم دَ مانع مخکښې پکار دے دَ وجود دَ سبب نه او دَ دے دواړو په جمع کیدلو سره حکم واجب کیږی.

۲۳:. مخکښې ایت کښې اثبات دَ توحید وُو او په دے ایت کښې رد دَ شرک دے او جواب دے دَ دویم سوال دَ مشرکانو چه دَ الله تعالیٰ دَ معبودیت سره دَ نورو شرکت هم جائز دے؟ حاصل جواب دا دے دَ الله تعالیٰ نه سِوا په بل چا کښې وصف دَ معبودیت نشی کیدے او هغه دوه څیزونه دی اول دا چه دَ الله تعالیٰ اراده لره په سفارش کولو سره اوګرځوی او دے قسم ته شفاعتِ قهریه ویلے کیږی چه عقیده او ساتی چه څوک دَ الله تعالیٰ په نیز داسے محوریز او عزتمند وی چه دَ الله تعالیٰ اراده لره بدله کړی یا داسے دوست او محبوب مطلق وی چه الله تعالیٰ دَ هغهٔ دَ سفارش منلو ته مجبوره شی او خپله اراده لره پریږدی دا یو هم نشی کیدے دویم څیز دا دے چه په خپل طاقت او زور سره دَ الله تعالیٰ اراده بدله کړی او یو انسان لره دَ الله تعالیٰ دَ ارادے په خلاف دَ څه مصیبت نه بچاؤ ورکړی.

إِذًا لَّفِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٢٤﴾ إِنِّي آمَنتُ بِرَبِّكُمْ

دا سے وخت کښې خامخا په ګمراهۍ ښکاره کښې یم ۔ یقیناً ما ایمان راوړے دے ستاسو په رب باندے

فَاسْمَعُونِ ﴿٢٥﴾ قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ۖ

نو واورئ زما خبرے ۔ اُوویلے شو (پس د مرګ د هغه نه روح ته) داخل شه جنّت ته

قَالَ يَا لَيْتَ قَوْمِي يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾

اُوویل هغه هائے افسوس دے چه قوم زما پوهه لرلے ۔

ف۲۴ :۔ دا دَ دریم سوال جواب دے هغوی اوویل چه په دے عقیدے لرلو سره هیڅ نقصان نه راځي جواب ئې ورکړو چه دا ښکاره ګمراهي ده ۔

ف۲۵ :۔ دا دَ څلورم سوال جواب دے چه ته زمونږ مخالفت کښې ( ردّ دَ شرک کښې ) ولے دومره کلک ئې جواب ئې اوکړو چه دا دَ مؤمن دَ ایمان تقاضا ده چه په شرک باندے صریح ردّ کوی. فَاسْمَعُونِ مراد دَ دے نه فکر کول او دَ غه نصیحت قبولول دی او بل دا تنبیه ده قوم ته چه بیا او نه وائې چه تا مونږ ته حق نه وو بیان کړے ۔

ف۲۶ :۔ اکثر مفسرینو لیکلی دی چه مشرکان په دے سړی باندے راجمع شول تو پوته ئې ورباندے اوهل دَ هغهٔ کولمے ئې بهر را اووېستلے. په کانړو باندے اوویشتلو. کوهی ته ئې اوغورځولو ردے خلقو ته اصحاب الرس ویلے کیږی) او په مرئۍ کښې ئې ورله سورے اوکړو او دَ هغهٔ ښار په چوک کښې ئې اوېزان کړو. په اړهٔ باندے دوه تنکرے کړو دا مختلف اقوال دی مطلب ئې یو دے چه شهید ئې کړو. او هر کله چه صحیح حدیث سره ثابت دی چه روح دَ شهید په جنّت کښې داخلیږی دَ دے وجے نه اوویلے شو قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ بدن ئې په مزکه مړ پروت وو لیکن روح ته ئې خطاب اوشو او دَ قِيلَ نه مراد عموم دے یعنې دَ هر طرف نه دَ الله تعالیٰ او دَ ملائکو آوازونه وو چه جنت ته داخل شه ۔

قَالَ يَا لَيْتَ ، په جنت کښې ئې دَ قوم دَ ایمان ارمان اوکړو دا دَ دهٔ نهایت اخلاص وو ۔

بِمَا غَفَرَ لِیْ رَبِّیْ وَجَعَلَنِیْ مِنَ الْمُکْرَمِیْنَ ﴿۲۷﴾

په هغه خبره باندے چه بخښنه پرے اوکړه ماته رب زما او زه ئے اوګرزولم د کرامت والا نه.

وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰی قَوْمِهٖ مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ

او نه دے رالیږلے موږ په قوم د هغه باندے روستو د مرګ د

جُنْدٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَمَا کُنَّا مُنْزِلِیْنَ ﴿۲۸﴾

هغه نه هیڅ لښکر د آسمان نه او نه یو موږ نازلوونکی (په داسے وخت کښ)

۲۷:- بِمَا غَفَرَ لِیْ مراد د دے نه مسئله د توحید ده چه سبب د بخښش دے او سبب د کرامتونو دے یعنی افسوس دے چه قوم زما په دغه مسئله باندے علم او عقیده لرلے. الْمُکْرَمِیْنَ معلومه شوه چه لوے کرامت د توحید په وجه باندے شهادت دے او جنّت ته داخلیدل دی او دا قول د دهٔ د احد د شهداؤ د قول پشان دے چه جنّت کښ د دوی ارواح داخل شول نو دوی اوویل "یَا لَیْتَ اِخْوَانَنَا یَعْلَمُوْنَ مَا صَنَعَ اللّٰهُ تَعَالٰی بِنَا لِئَلَّا یَزْهَدُوْا فِی الْجِهَادِ وَلَا یَنْکُلُوْا عَنِ الْحَرْبِ" نو الله تعالیٰ اوفرمائیل چه زهٔ به ستاسو خبر اورسوم نو د سورة آل عمران آیت د شهداؤ نازل کړے شو. او داسے قول د شهداؤ د بیر معونه هم دے "بَلِّغُوْا عَنَّا قَوْمَنَا اَنَّا لَقِیْنَا رَبَّنَا فَرَضِیَ عَنَّا وَاَرْضَانَا".

۲۸:- په دے آیت کښ د هغه قوم هلاکت په سپک والی سره ذکر کوی یعنی الله تعالیٰ فرمائی چه د دوی په هلاکولو کښ زه لښکرو رالیږلو ته محتاج نه ووم دوی د الله تعالیٰ د قدرت په مخکښ د یو ورړ حیثیت هم نه لری. مِنْۢ بَعْدِهٖ په دے کښ اشاره ده سبب د غضب د الله تعالیٰ ته چه هغهٔ قتل کول د هغه مؤمن وو یعنی الله تعالیٰ د یو مؤحد په بدل کښ ټول قوم تباه کړو. وَمَا کُنَّا مُنْزِلِیْنَ یعنی دا زمونږ عادت نه دے چه د یو قوم د هلاکولو دپاره لښکرے رالیږو. که څوک سوال اوکړی چه په غزوه بدر، احزاب، حنین کښ ئے ملائک رالیږلے دی او هغوی ته ئے جنود ویلے دی جواب دا دے چه هلاکول دوه قسمه دی یو د ټول قوم په یو ځل تباه کول نو په دے آیت کښ مراد دا دے د دے دپاره الله تعالیٰ لښکر نه رالیږی دویم قسم هلاکول د لږو کسانو دی په حالت د جنګ کښ په هغه حالت کښ د نصرت په حیثیت د ملائکو لښکرے رالیږی او الله تعالیٰ حکمتونو والا دے.

إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَإِذَا هُمْ

نه وۀ هلاکت د دوی مګر یوه چغه ده نو دغه وخت دوی

خٰمِدُوْنَ ﴿۲۹﴾ يٰحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ ج

مړۀ او غورځیدل۔ هائے افسوس دے په داسے بندګانو بانديے



۲۹:۔ په دے ایت کښ عذاب د هغۀ قوم ذکر دے مفسرینو لیکلی دی چه جبرئیل علیه السلام راغے او د دغه قوم د ښار د دروازے درشلے او نیولے او هیبتناک چغه ئے اوهله په هغے سره هغوی مړۀ شول. په لفظ د وَّاحِدَةً او خٰمِدُوْنَ کښ د هغوی سپکوالی ته اشاره ده۔ خٰمِدُوْنَ کښ تشبیه ده د اور مړکیدلو سره یعنی د دوی غصّه او تکبّر وغیره داسے مړه کړے شوه لکه اور چه مړ شی او ایرے جوړے شی.

فائده:۔ اکثر مفسرینو د دے واقعے په باره کښ لیکلی دی چه دغه رسولان د عیسیٰ علیه السلام د طرف نه قاصدان وو۔ او انطاکیه ښار ته اولیږلے شول او بیا ورسره یو شپونکے (رجل مؤمن) ملګرے شو او هغهٔ شهید کړے شو نو بیا په هغه ښار بانديے عذاب د چغے راغے او د دے په تائید کښ یو حدیث هم ذکر کوی چه هغه زمخشری کشاف کښ مرفوع نقل کړے دے " او طبرانی هم روایت کړے دے چه سبقیت کوونکی رچه یو رپ د سترګے ئے هم کفر نه دے کړے) انبیاؤ ته هغه درے کسان دی یوشع علیه السلام موسیٰ علیه السّلام ته سبقیت کړے وۀ او صاحب یٰسٓ عیسیٰ علیه السلام ته او علی رضی الله عنه محمد صلی الله علیه وسلّم ته " لیکن مفسر ابن کثیر په دے بانديے رد کړے دے په ډیرو وجوهو سره اوله وجه داده چه اذ ارسلنا الیهم۔ فعززنا بثالث۔ انا الیکم مرسلون او درپسے جملے ښکاره دلالت کوی چه دوی د الله تعالیٰ د طرف نه رالیږلے شویو و۔ دویمه دا چه هغوی په دوی بانديے په بشریت سره اعتراض کړے وۀ ویلے وو ان انتم الا بشر مثلنا د بنده په قاصد بانديے د بشریت اعتراض نشی کیدلے دریمه وجه دا چه تاریخ لیکلی دی چه انطاکیه اول ښار دے د هغه څلورو ښارونو نه چه په عیسیٰ علیه السلام ئے ایمان راوړے وۀ قدس، انطاکیه، اسکندریه، رومیه نو هر کله چه ایمان ئے راوړے وۀ نو بیا ولے هلاک کړے شول او څلورمه وجه داده چه د سورۃ قصص ایت ۴۳ په تفسیر کښ د اکثر سلفو نه نقل کړے شویدے چه روستو د انزال د تورات نه په یو امت بانديے استیصالی عذاب نه دے راغلے او په دے واقعه کښ خو (رپاتے په بل مخ)

مَا يَأْتِيهِمْ مِّنْ رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ

چه نه راځي دوی ته هیڅ رسول مګر دوی هغه پورې

يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٣٠﴾ أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا

توقې کوي . ایا دوی نه ګوري چه څومره هلاک کړي دي موږ

قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُونِ أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ

د دوی نه مخکښې د پیړو نه چه هغوی به دوی ته

لَا يَرْجِعُونَ ﴿٣١﴾ وَإِنْ كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ

واپس (دنیا ته) نه راځي او نیشته هیڅ یو مګر ټول به

تصریح ده چه هغه قریه (کلے) ټوله هلاکه شوه. او هرچه حدیث د طبرانی او د زمخشری دے نو هغه حدیث منکر دے د هغې په سند کښې حسین بن الحسین الاشقر دے او هغه شیعي او پریخودے شوے راوی دے. نو معلومه شوه چه دا واقعه د موسیٰ علیه السّلام نه وړاندے د یو قوم واقعه ده. او کیدے شي چه د هغه قوم د کلی نوم هم انطاکیه ووُ.

ت ۳۰:- یا حسرة علی العباد دلته سوال دادے چه حسرة د الله تعالیٰ د شان سره مناسب نه دے ځکه چه حسرت پښیمانه کیدل او ستړے والے ښکاره کول دی پیړو غیر مناسب کارکولو باندے نو د دے ډیر جوابونه دی اول جواب دا چه حسرة په معنیٰ د ویل او د هلاکت دے دا د ابن عباس رضی الله عنهما نه یو روایت دے.

دویم جواب دا اخبار دے د حسرة د بندګانو نه په خپلو ځانونو باندے یعنی په دلے وخت کښې بندګان په خپل انکار او تکذیب باندے افسوس نه کوي.

دریم جواب، عباد نه مراد انبیاء علیهم السلام دی کافرانو او یل هائے افسوس دے چه مونږ د دے بندګانو تکذیب والے کاؤ. څلورم دا قول د ملائکو دے. پنځم دا قول د هغه درے رسولانو دے لیکن د ملائکو او د رسولانو افسوس د هغه خلقو په انکار کولو باندے دے لکه چه وړاندے جمله کښې "مَا يَأْتِيهِمْ مِّنْ رَّسُولٍ اه" ذکر دے ځکه چه د هغوی په عذاب باندے افسوس کول منع دی لکه فلا تاس علی القوم الکافرین سورة مائده ت ۶۸.

ت ۳۱:- د دے ایت نه دویم باب دے تر ۵۴ پورے په دے کښې اول زجر دے بیا لس عقلی دلیلونه دی تر ۴۴ پورے او په دیکښې درے قسمه زجرونه دی. ۱ زجر بالاعراض ۲ زجر بالاستهزاء ۳ زجر بانکار الحشر. بیا تخویف اخروی

لَّدَیۡنَا مُحۡضَرُوۡنَ ﴿۳۲﴾ وَاٰیَۃٌ لَّہُمُ الۡاَرۡضُ

زموږ مخ ته حاضر کړے شي. او نوے دلیل د توحید د دوی د پاره زمکه

الۡمَیۡتَۃُ ۚۖ اَحۡیَیۡنٰہَا وَاَخۡرَجۡنَا مِنۡہَا حَبًّا

وچه ده ، چه تازه کړو موږ هغه او را وباسو د هغې نه دانے

فَمِنۡہُ یَاۡکُلُوۡنَ ﴿۳۳﴾ وَجَعَلۡنَا فِیۡہَا جَنّٰتٍ

نو بعض د هغې نه دوی خوري. او پیدا کړي دي موږ په دے کښې باغونه

مِّنۡ نَّخِیۡلٍ وَّاَعۡنَابٍ وَّفَجَّرۡنَا فِیۡہَا

د کجورو او انګورو نه او بیولے دي موږ په هغې کښې

مِنَ الۡعُیُوۡنِ ﴿۳۴﴾ لِیَاۡکُلُوۡا مِنۡ ثَمَرِہٖ

د چینو نه د پاره د دے چه اوخوري څه میوے د هغې نه

دے د ۵۱ نه تر ۶۸ پورے او په مینځ کښې بشارت دے او آخر کښې د یو شبهے جواب دے چه تعلق لري د ابتداء د سورت سره. په دے (۳۱) کښې زجر دے سره د تخویف دنیوي نه او دا آیت بنکاره دلیل دے چه کوم خلق مړه شو یدي هغوی دنیا ته واپس نه شي راتللے لکه چه سورۃ مؤمنون ۱۰۰ او سورۃ انبیاء ۹۵ کښې تیر شویدي.

۳۲: دا تخویف اخروي دے. اِنۡ نافیه دے کُلٌّ لَّمَّا مبتداده په معنی د اِلّا سره دے جَمِیۡعٌ خبر اول دے په معنی د مجموعون دے.

۳۳: دا آیت او د دے نه روستو تر ۴۴ پورے دلیلونه دي د پاره د رد د شفاعت شرکیه او د پاره د اثبات د حشر هم دي. او په دے دلیلونو کښې نعمتونه ذکر کوي حَبًّا دانے د غنمو، اوربشو، جوارو، روږو وغیره چه د غذا سره تعلق لري.

۳۴: په دے آیت کښې هغه نعمتونه ذکر کوي چه د میوو سره تعلق لري او په هغکښې آیت کښې او به د باران ذکر کړے وے او په دے آیت کښې او به د چینو ذکر کړے دي او دا احسن ترتیب دے. نَّخِیۡلٍ وَّاَعۡنَابٍ دا دوه قسمونه په عربو کښې ډیر دو او نخیل ئې د دے وجے نه مخکښې راوړو چه په هغې کښې فائدے ډیرے دي غذا هم ده فاکهه هم او دا رنګ د هغې لرګي پا ترے پوستکي سانګے او میوے بسر او رطب او تمر ټول نعمتونه فائدو والا دي او زینت

وَمَا عَمِلَتْهُ اَيْدِيْهِمْ ؕ اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۳۵﴾

او نه دی جوړ کړی دے لره لاسونو د دوی نو آیا شکر نه کوی دوی.

سُبْحٰنَ الَّذِيْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا

پاکی ده د هغه ذات چه پیدا کړیدی قسمونه ټول

مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا

د هغه نه چه راټوکوی یې زمکه او د نفسونو د دوی نه او د هغه څیزونو نه

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الَّيْلُ ۚۖ

چه دوی نه پوهیږی په هغے باندے. او لوے دلیل د توحید دوی د پاره شپه ده

هم په کښ داد ے چه پاتړے یې نه غورزیګی. وَفَجَّرْنَا په ځ د زمکه باندے بعضے اوبه او د زمکے په باطنی رګونو کښ اوبه چلول دے دواړو ته دا لفظ شامل دے فِيْهَا ضمیر زمکے ته یا جَنّٰتٍ ته راجع دے.

۳۵:- مِنْ ثَمَرِهٖ ضمیر په تاویل د مذکور سره جَنّٰتٍ یا دواړو ته راجع دے یا الله تعالیٰ ته راجع دے وَمَا عَمِلَتْهُ اَيْدِيْهِمْ مَا موصوله دے او عطف دے په ثمره باندے او مراد ترینه هغه رس جوس او مشروبات دی کوم چه د میوؤ نه جوړیږی او دوړے یې او تیل وغیره چه د دانو نه راؤباسی یا ما نافیه دے او رد دے په مشرکینو باندے یعنی دا میوے خو انسانانو او الهو باطلو د دوی نه دی جوړے کړی.

۳۶:- دا یل دلیل عقلی دے سره د دعوے د توحید نه په لفظ د سبحان سره. په تیر شوے ایاتو کښ صرف پیدائش د زمکے د اشیاؤ یې ذکر کړے دے او په دے کښ د هغے ازدواج او انواع ذکر کوی. اَلْاَزْوَاجَ جمع د زوج ده قسم ته ویلے کیږی او مراد ترینه اختلاف د رنګونو شکلونو او خوندونو دے او دے اختلاف ته ازدواج ویلے کیږی یا مراد د دے نه نر او ماده دی ځکه چه علم النباتات کښ ثابت کړے شویده چه په ټولو بوټو کښ نر او ماده شته او ایت د سورة ذاریات ۴۹ هم په دے باندے دلیل دے.

وَمِمَّا لَا يَعْلَمُوْنَ په اوچه او دریابونو او زمکه او اسمانونو کښ داسے مخلوق شته چه د انسانانو په علم کښ نیشته بلکه د ملائکو په علم کښ هم نیشته.

نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَاِذَا هُمْ مُّظْلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾
راکاږو دَ هغه نه ورځ نو دغه وخت دوی په تیاره کښې وی.

وَالشَّمْسُ تَجْرِیْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ؕ ذٰلِكَ
او نمر روان دے وخت مقرر دَ هغه ته دا (حرکت دَ نمر)

تَقْدِیْرُ الْعَزِیْزِ الْعَلِیْمِ ﴿۳۸﴾ وَالْقَمَرَ
اندازه ده دَ زور اور عالم ذات. او سپوږمۍ لره

۳۷: دا بل دلیل عقلی دے تیر شوے دلیلونو کښې نعمتونه مکانی او سفلی وو، او په دے کښې نعمتونه زمانی وسطی ذکر کوی او په "ایة" سره ئې ذکر کړو ځکه چه دا په توحید باندے ښکاره دلیل دے. نَسْلَخُ سلخ په اصل کښې پوستکے ویستل دی دَ ذبح کړے شوے ځاروی نه نو دائې په طریقه دَ تشبیه سره ذکر کړے دے یعنی شپه پشان دَ بدن دَ ځاروی ده او رڼا دَ ورځ دَ هغې دَ پاسه پشان دَ څرمن ده. په دے کښې شپه اصل اوګرځوله ځکه چه ظلمت عدمی دے او اصل په ممکناتو کښې عدم دے او دَ دے وجه نه شپه دَ ورځې نه مخکښې حسابیږی دَ میاشتو په حساب کښې. مُّظْلِمُوْنَ په تیاره کښې آرام کیږی او دَ قیام اللیل لذت په کښې حاصلیږی نو دائې هم په نعمتونو کښې ذکر کړو.

۳۸: دا بل دلیل عقلی دے او دا ذکر دَ مسبّب ظاهری دے روستو دَ مسبّب نه یعنی سبب ظاهری دَ شپې او دَ ورځې ګردش دَ نمر او سپوږمۍ دے.

لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا، مراد دَ دے نه تحت العرش دے یا وخت دَ را ښکاره کیدلو دَ نمر دے دَ مغرب نه چه هغه قریب دَ فناء دَ دنیا دے او په دے دواړو باندے حدیث صحیح دلیل دے (تنبیه) سوال، حدیث دلالت کوی چه دا شمس سجده کوی لاندے دَ عرش نه بیا اذن طلب کوی دَ الله تعالیٰ نه نو اذن ورته کیدے شی او حال دا چه حسًّا او عقلًا معلومیږی چه دا شمس په هیڅ ساعت کښې حرکت نه پریږدی بلکه هر وخت روان دے اګرچه دَ بو علاقې نه غائب شی لیکن په بله علاقه کښې غائب نه وی نو دَ دے حدیث څه مراد دے؟ جواب دا دے چه سجده دَ شمس دَ حرکت دَ هغه سره منافات نه لری په حال دَ حرکت کولو کښې هم تابع دَ حکم دَ الله تعالیٰ دے. او دَ اذن طلب کولو نه مراد دا دے چه په هره لمحه کښې په اذن دَ الله تعالیٰ سره روان وی.

قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ

مقرر کړیدی مونږه منزلونه تر دے چه واپس اوګرځی پشان دَ ښاخګے دَ کجورے

الْقَدِيْمِ ﴿۳۹﴾ لَا الشَّمْسُ يَنْۢبَغِيْ لَهَآ

زړے . نه دے نمر چه اسان شی هغه لره

اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ ؕ

چه رامندے کړی سپوږمۍ او نه شپه مخکښ کیدونکے ده دَ ورځ نه

وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ﴿۴۰﴾ وَاٰيَةٌ لَّهُمْ

او ټول په ځائے دَ ګرځیدلو کښ لامبو وهی . او لوے دلیل دَ توحید دَپاره دَدوی

۳۹ :. دا بل دلیل دے مَنَازِلَ هره شپه چه سپوږمۍ په جلا جلا ځائے کښ ښکاره کیږی نو هغ ته منازل ویلے کیږی او هغه اته ویشت ۲۸ دی او که میاشت دَ دیرشو وی نو دوه شپے دا سپوږمۍ پټه وی او که دَ یوکم دیرشو وی نو یوه شپه پټه وی . حَتّٰى عَادَ یعنی دَ اولے شپے نه دَ دے شورو اوشی نو په څوارلسمه شپه بانده کامله شی نو بیا په نقصان کښ شورو شی نو په اخرکښ پشان دَ اول حال اوګرځی . كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ ښاخګ دَ کجورے چه زړه شی او اوچه شی نو نرئ اوکږه او زیړه شی نو دا رنګ سپوږمۍ هم اوګرځی .

۴۰ :. دا بل دلیل دے مراد دا دے چه دَ شپے او ورځ او دَ نمر، سپوږمۍ نظام نه بدلیږی . په ایت کښ درے جملے دی دَ اولے جملے مطلب دا دے چه دَ سپوږمۍ رفتار تیز دے نمر هغ ته نشی رسیدلے نو اشاره شوه چه ورځ په شپه بانده سبقیت نشی کولے په دا سے طریقه چه دواړه په یو وخت کښ راجمع شی . او دَ دویمے جملے مطلب دا دے چه شپه دَ ورځ سره نشی جمع کیدلے (سوال) که اوبلے شی چه پکار وو چه دا سے ئے ویلے وے چه وَلَا الْقَمَرُ يُدْرِكُ الشَّمْسَ ؟ (جواب) سپوږمۍ په خپل رفتار کښ دَ نمر نه مخکښ کیدلے شی لیکن دَ هغے دَ وجے نه دَ شپے دَ ورځ اختلاط نه راځی دَ دریمے جملے مطلب دا دے چه نمر او سپوږمۍ دواړه حرکت او رفتار کوی او فَلَكٍ نه مراد (مدار) ځائے دَ ګرځیدلو دَدوی دے او هغه دَ اسمانونو نه خکته دے او کوم ایاتونو کښ چه فی السماء راغلی دے نو مراد دَ هغے نه دا دے چه دا نمر، سپوږمۍ دَ اسمان په طرف کښ دی او دا سے په سورة انبیاء ۳۳ کښ هم تیر شویدی . فلك ماخوذ دے

أَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ ﴿۴۱﴾

دا چه اوچتو مونږ نسل د دوی په کشتۍ ډکه کښې

وَخَلَقْنَا لَهُم مِّن مِّثْلِهِ مَا يَرْكَبُونَ ﴿۴۲﴾

او پیدا کړیدی مونږ د دوی دپاره د هغې پشان هغه څیزونه چه دوی سورلی کوی په هغې باندې.

وَإِن نَّشَأْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيخَ لَهُمْ

او که چرې اوغواړو مونږ نو غرق به کړو دوی لره نو نه به وی فریادرس دوی لره

وَلَا هُمْ يُنقَذُونَ ﴿۴۳﴾ إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا

او نه به دوی خلاص کړے شی مګر د رحمت د وجه نه او مزے ورکول

إِلَىٰ حِينٍ ﴿۴۴﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّقُوا

تر یو وخت پورے. او کله چه اُویلے شی دوی ته ځان بچ کړے

د فلکة المغزل نه هغه سَرخ ته ویلے کیږی چه په هغې سره د مالوچو اوړے نه تارونه جوړیږی د هغې حرکت چاپیره وی نو معلومه شوه چه د نمر سپوږمۍ حرکت هم چاپیره دے.

سا۴۱ سا۴۲ :- دا بل دلیل عقلی دے او نعمت د دریابونو ذکر کوی روستو د اوچ نه ذُرِّيَّتَهُمْ تمام نوع انسانی ته ویلے کیږی که مشران وی او که اولاد وی مذکر وی او که مؤنث وی. او مراد د دے نه نوح علیه السلام او د هغه ځامن دی چه په کشتۍ کښې بچ کړے شوے وو د طوفان نه او د مِّثْلِهِ نه مراد کشتۍ او لاښخونه وغیره دی دپاره د روستو خلقو. یا مراد د ذریة نه مطلق مشران دی او د فلك مشحون نه مراد مطلق کشتۍ دی او د مثله نه مراد د سورلۍ اسباب دی که په اوچه کښې وی او که په لونده کښې وی.

سا۴۳ سا۴۴ :- مقصد په دے کښې رد دے په شفاعة شرکیه باندے صَرِيخَ په معنیٰ د فریاد رس او د مغیث او غوث دے.

إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا دا استثناء ده په تقدیر سره یعنی بچ کوو مونږ دوی لره د وجه د رحمت نه یعنی په الله تعالیٰ باندے د دوی بچ کول واجب نه دی او نه په کښې د الله تعالیٰ فائده ده.

مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ لَعَلَّكُمْ

دَ هغه عذاب نه چه مخکښ ستاسو دے او هغه چه روستو ستاسو دے دَ پاره دَ دے چه

تُرْحَمُوْنَ ﴿۴۵﴾ وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ

په تاسو باندے رحم اوکړے شی. (نو دوی مخ وا ړوی) او نه راځی دوی ته هیڅ نښه دَ

اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ﴿۴۶﴾

نښو دَ رب دَ دوی نه مګر دوی دَ هغے نه مخ ګرځونکی دی۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ

او کله چه اُویلے شی دوی ته خرچ کوئے دَ هغے نه چه درکړیدی تاسو ته الله تعالیٰ

قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

وائی کافران په یاره دَ مؤمنانو کښ

اَنُطْعِمُ مَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ اَطْعَمَهٗٓ

آیا خوراک درکړو مونږ هغه چاته که غوښتلے الله تعالیٰ نو خوراک به ئے ورته ورکړے وے

۴۵ تا ۴۶:۔ دا زجر دے په اعراض کولو دَ دوی دَ عمل دَ تقویٰ او دَ آیاتو نه۔ یعنی دَ عذاب دَ ویرے نه هم ایمان نه راوړی او دَ آیت او معجزے په لیدلو سره هم ایمان نه راوړی ربط دَ مخکښ سره دا دے چه دَ عذاب دَ غرق نه خو دَ الله تعالیٰ په رحم سره نجات حاصلیږی لیکن دَ عام عذابونو نه نجات او سبب دَ حصول رحمتِ خاصه تقویٰ ده۔

مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ دَ اول نه مراد عذاب دَ دنیا دے پیشان دَ عذاب دَ تیرشوے قومونو مکذبینو او دَ دویم نه عذاب دَ آخرت دے دویم قول دَ دے برعکس دے او دَ اِذا جزا محذوف ده چه اعرضوا دے په قرینه دَ دویم آیت سره۔

إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٤٧﴾

نه یئ تاسو مگر په گمراهئ ښکاره کښې.

۴۷: دا دویم زجر دے په انکار د دوی د امر د الله تعالیٰ نه په باطل عذر سره أَنْفِقُوا مراد د دے نه انفاق شرعی دے یعنی د الله تعالیٰ په توم سره په مسکینانو باندے خرچ کوئ د غیرالله په توم په منجورانو د بتانو او د قبرونو باندے خرچ مه کوئ ځکه چه هغه انفاق نه دے بلکه اسراق دے او عام مسکینان په مکه معظمه کښې په هغه وخت کښې مؤمنان وو نو معلومه شوه چه دا امر دے په توحید سره په عبادتِ مالیه کښې صرف په صدقه ورکولو سره مشرک مخاطب نه شی کیدے. قَالُوا أَنُطْعِمُ مَنْ لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ أَطْعَمَهُ په دے قول کښې درے احتمالونه دی اول دا چه استهزاء ده یعنی دوی د مؤمنانو نه اُوریدل چه الله تعالیٰ رازق دے او دا رنګ اوریدل یئ چه مؤمنان هر څه د الله تعالیٰ په اراده پورے معلق کوی نو دوی اویل چه ستاسو د قول مطابق چه الله تعالیٰ د دوی د فقیرئ اراده کړے ده او هغه ورله روزی نه ورکوی نو مونږ ورله څه رنګه ورکړو. دویم احتمال، ابن عطیهؒ ویلے دی چه دوی اقرار کولو د موافقت د الله تعالیٰ سره چه الله تعالیٰ چاله روزی نه ورکوی نو مونږ هم نه ورکوو د یو بانډی واقعه ده چه هغه به ساربه اوښان په څه وخو او شنهٔ زمکه کښې سرول او خوار اوښان به یئ په شاړه او اوچه زمکه کښې سرول چا ترینه د دے په باره کښې تپوس اوکړو نو هغهٔ ورته اویل "چه اکرام کووم د هغ چه الله تعالیٰ ورته اکرام ورکړے دے او بے عزتی کوؤم د هغ چه الله تعالیٰ بے عزتی ورکړے ده" او دا قول د دوی جهل دے ځکه چه الله تعالیٰ ابتلاء او امتحان کوی د بندګانو خپلو په امر د انفاق سره دریم احتمال قرطبی وغیره لیکلی دے چه دا قول د دوی فی نفسه صحیح دے لیکن حجت نیول په دے سره غلط کار دے او د قبیلے (کلمة حق ارید بها الباطل) د دوی مقصد صرف بُخل او شومتیا کول وو د الله تعالیٰ په مشیت باندے رضا ښکاره کول د دوی مقصد نه دے.

إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ دا قول د کافرانو دے مؤمنانو ته یعنی تاسو د الله تعالیٰ د ارادے خلاف کوئ او مونږ ته د الله تعالیٰ د مقابلے کولو حکم را کوئ نو تاسو ګمراه یئ یا دا قول د الله تعالیٰ دے کافرانو ته چه دا قول ستاسو د وجے د ګمراهئ نه دے ځکه چه تاسو د الله تعالیٰ د حکم نه انکار کوئ (پاتے په بل مخ)

وَيَقُولُونَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ
او دوی وائی چه کله به وی دا وعده که چرے تاسو یئ

صٰدِقِيْنَ ﴿۴۸﴾ مَا يَنْظُرُوْنَ اِلَّا صَيْحَةً
رشتنی - انتظار نه کوی دوی مګر د چغے

وَّاحِدَةً تَاْخُذُهُمْ وَهُمْ يَخِصِّمُوْنَ ﴿۴۹﴾
یوے چه اونیسی دوی لره او دوی به جګړے کوی۔

**فائدہ** :- امر دے په صیغه دَ انفقوا سره او دَ دوی انکار ذکر دے په لفظ انطعم سره دَ دے وجه داده چه انفاق عام دے او اطعام په هغے کښ یو خاص اهم فرد دے نو په دے کښ اشاره ده دَ منکرینو ډیر بخل او خساست ته چه عام انفاق خو نه کوی لیکن دَ هغے معمولی فرد چه خوراک ورکول دی هغه هم نه کوی۔

۴۸ :- دا دریم زجر دے په انکار کولو دَ بعث بعد الموت سره او متعلق دے دَ ما بین ایدیهم او ما خلفهم سره۔

۴۹ :- هر کله چه دَ دوی دا سوال عنادی وؤ نو جواب ورکوی په ذکر دَ هیبت دَ ورځ دَ فنا سره۔ صَيْحَةً وَّاحِدَةً مراد دَ دے نه اوله شپیلۍ وهل دی دَ پاره دَ فنا دَ ټول عالم او وَاحِدَةً نه مراد دے په یو ځل سره شپیلۍ وهل او فنا کیدل دا نه چه دویمه نفخه نیشته نه. او دَ هیبت دَ پاره یئ صیحه ذکر کړے ده په ځائے دَ نفخه بانده وَهُمْ يَخِصِّمُوْنَ یعنی دوی به دَ دنیا په خیزونو کښ بحثونه او جګړے کوی نو به نه او باسی حدیث مرفوع کښ وارد دی "قیامت به قائم کیږی په داسے حال کښ چه دوه سړو به یو کپړه خوره کړے وی او سودا به کوی نو را نغښتلے به یئ نه وی چه قیامت به قائم شی" او یو سړی به یو اخور دَ اوبو بانده دَ خټے یا سیمنټو پلستر کړے وی لیکن خاروی به ترینه او به کړے نه وی چه قیامت به قائم شی، او یو سړی به تله کوزه نیولے وی لا او چته کړے به یئ نه وی چه قیامت به قائم شی او یو سړی به نوړئے دَ خوراک خولے ته پورته کړے وی لا تیره کړے به یئ نه وی چه قیامت به قائم شی"

فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً وَّلَآ إِلَىٰٓ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ ﴿٥٠﴾ وَنُفِخَ فِى الصُّورِ فَإِذَا هُم مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ ﴿٥١﴾ قَالُوا يَٰوَيْلَنَا مَنۢ بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا ۜ هَٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُونَ ﴿٥٢﴾

نو د وس به نه لري د وصیت کولو او نه به خپلې کورنۍ ته واپس کیدے شي. او پو کے به ورکړیشي په شپیلئ کښ نو دغه وخت به دوی د قبرونو نه خپل رب طرف ته ورزغلیږي. دوی به وائي هائے تباهي ده چا اوچت کړو مونږ د ځائے د سملاستو ځمونږ نه دا هغه وخت دے چه وعده ئے کړے ده رحمان او رشتیا وئیلي وو رسولانو.

ف ۵۰:۔ مقصد دا دے چه هغه ځائے کښ به سمدستي مره شي کوم ځائے کښ چه د دوی معاملے کوی مهلت دوی ته نه ملاویږی۔

ف ۵۱:۔ تخویف اخروی تفصیلاً ذکر کوی۔ په دے ایت کښ د دویمے شپیلئ ذکر دے چه هغه د پاره د بعث بعد الموت ده او حدیث مرفوع کښ راغلی دی چه د دوارو شپیلو ترمینځ به څلویښت کاله فاصله وی۔

ف ۵۲:۔ مَّرْقَدِنَا (سوال) مرقد ځائے د خوب ته وئیلے کیږی نو معلومه شوه چه په دوی باندے په قبرونو کښ هیڅ تکلیف او عذاب نه وؤ او حال دا دے چه ډیر نصوص دلالت کوی په عذاب قبر باندے. نو اول جواب دا دے چه د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه عذاب د قبر تر اولے نفخے پورے دے بیا تر دویمے نفخے پورے عذاب نیشته نه دویم جواب دا دے چه مرقد په معنیٰ د ځائے د مرګ دے په طریقه د مجاز سره چه خوب رور د مرګ دے دریم جواب دا دے چه د قیامت هیبتونه په دوی باندے دومره زیات شول چه عذاب د قبر دوی ته د هغے په مقابله کښ ارام ښکاریږی۔ هَٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ دا قول د الله تعالیٰ یا د ملائکو دے یا قول د منکرینو دے په طریقه د اعتراف جرم سره وَصَدَقَ الْمُرْسَلُونَ معلومه شوه چه بعث بعد الموت د ټولو رسولانو دعوت دے۔

إِنْ كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَإِذَا هُمْ

نه ده دا مګر چغه يوه نو دغه وخت به دوی

جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ﴿۵۳﴾ فَالْيَوْمَ

ټول زموږ په مخکښ حاضر کړے شي. نو نن ورځ

لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا وَّلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا

ظلم به نشي کيدے په هيڅ نفس باندے هيڅ او نه به جزا درکيدے شي تاسو ته مګر

مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿۵۴﴾ إِنَّ أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ

هغه چه تاسو کوم عملونه کول. يقينًا جنتيان به

الْيَوْمَ فِي شُغُلٍ فٰكِهُونَ ﴿۵۵﴾ هُمْ

نن ورځ په مشغولتيا کښ وي خوشحاله به وي. دوی

وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلٰلٍ عَلَى الْأَرَآئِكِ

او د دوی بيبيانے په سورو کښ وي په پالنګونو باندے

مُتَّكِـُٔونَ ﴿۵۶﴾ لَهُمْ فِيهَا فٰكِهَةٌ وَّ

تکيه وهونکي. دوی د پاره په هغے کښ ميوے دي او

۵۳ ۵۴: په دواړه ايتونو کښ ذکر د احوالو د قيامت دے کَانَتْ ضمير د نفخهٔ ثانيه ته راجع دے چه لفظ د نفخ په هغے باندے دلالت کوي.

۵۵ ۵۶ ۵۷ ۵۸: په دے ايتونو ذکر د بشارت دے مؤمنانو لره په اول ايت کښ مزے د نعمتونو او په دويم ايت کښ ذکر د ارام او د راحت د ژوند او په دريم ايت کښ ذکر د خوراکونو او په څلورم کښ ذکر د سلامونو دے فِي شُغُلٍ دا لفظ عام دے هغه ټولو لذتونو نعمتونو ته شامل دے چه مشغولوي به دوی لره د دنيا د نعمتونو او د اور والو نه اګر چه د دوی اقرباء (رخپلوان) وي فٰكِهُونَ تفسير دے د شغل يعنی دا مشغوله د غمونو د وجے نه نه ده بلکه د مزو د وجے نه ده. ظِلٰلٍ کنايه ده د ډير راحت او ارام نه. أَرَآئِكِ اريکه پالنګ د ناوے ته ويلے کيږي. مُتَّكِـُٔونَ اشاره ده چه دوی به فارغ وي د محنت کولو نه (راتکاء) مائل کيدل دي په يو اړخ باندے

لَهُمۡ مَّا يَدَّعُونَ ﴿٥٧﴾ سَلٰمٌ قَوۡلًا مِّن رَّبٍّ

دوی لره هغه څیز دے چه دوی غواړی - سلام دے وینا په کیدی دَ طرف دَ رب

رَّحِيمٍ ﴿٥٨﴾ وَامۡتَازُوا الۡيَوۡمَ اَيُّهَا الۡمُجۡرِمُونَ ﴿٥٩﴾

رحم والا نه - راویه ویلے شی) او جدا شئ تن اے مجرمانو -

اَلَمۡ اَعۡهَدۡ اِلَيۡكُمۡ يٰبَنِيۡۤ اٰدَمَ اَنۡ لَّا

آیا ما پخه خبره نه ده کړے تاسو ته اے اولاد آدم چه مه کوئ

تَعۡبُدُوا الشَّيۡطٰنَ ۚ اِنَّهٗ لَكُمۡ عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ ﴿٦٠﴾

بندګی (په طاعت کولو بے دلیله) دَ شیطان یقیناً هغه تاسو لره دُشمن ښکاره دے -

سره دَ اعتماد نه په یو څیز باندے یا کیناستل په طریقه دَ پرلت وهلو سره.
فَاكِهَةٌ نکره ده دَ پاره دَ ډیر قسمونو دَ میوؤ او په دے کښې اشاره ده چه خوراک
په دَ تفکه (مزے) دَ پاره کوی دَ لوږے دَ وجه نه په نه کوی يَدَّعُونَ په معنیٰ دَ
تمنّا او دَ اشتهاء سره دے سَلٰمٌ مبتدا ده خبر ئے حذف دے یعنی لهم سلام
یا بدل دے دَ لفظ دَ مَا نه یا صفت دے دَ مَا يَدَّعُونَ او په معنیٰ دَ مسلّم او خالص سره.
س۵۹:- دَ دے ایت نه تر ۶۵ پورے تخویف اخروی دے. او دلته دالقظ محذوف
دے ویقول للكفرة او اویه وائی کافرانو ته جدا شئ اے مجرمانو.
الْيَوْمَ دَ دے وجه نه اوویل چه په دنیا کښې دوی مخلوط وو مسلمانان او کافران
تو آخرت کښې به ئے دَ یو بل نه جدا اکړی یا دا چه اے مجرمانو دَ یو بل نه جدا
شئ یعنی دوی به مختلف دلے شی.
س۶۰:- يٰبَنِيۡۤ اٰدَمَ دَ دے وجه نه ذکر کړو چه منع دَ شرک او امر په توحید
سره دَ آدم علیه السلام دَ وخت نه شروع دے او ټول اولاد دَ آدم علیه السلام
په دے سره مکلف دی.
اَنۡ لَّا تَعۡبُدُوا عبادت په معنیٰ دَ طاعت دے یعنی دَ الله تعالیٰ دَ طاعت پرشان
دَ شیطان طاعت کول دا دَ شیطان عبادت دے یا دا چه هره بندګی دَ
غیر الله عبادت دَ شیطان دے ځکه چه دَ هغه په وسوسے سره دے.

وقف غفران

وَّاَنِ اعْبُدُوْنِيْ ۭ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿٦١﴾

او دا چه بندګي خاص کوئ مالره دا لار ده نيغه .

وَلَقَدْ اَضَلَّ مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيْرًا ۭ اَفَلَمْ

او يقينًا بے لارے کړے دي (په وسوسو سره) شيطان ستاسو نه ډلے ډيرے آيا پس

تَكُوْنُوْا تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٢﴾ هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ

تاسو دَ عقل نه کار نه اخستلو . دا جهنم دے هغه چه

كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴿٦٣﴾ اِصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا كُنْتُمْ

تاسو سره ئے وعده کيدے شوه . ورننوځئ ديته نن په وجه دَدے چه

تَكْفُرُوْنَ ﴿٦٤﴾ اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ

تاسو کفر کوؤ . نن ورځ به مهر اُوهو مونږ په خُلو دَدوی باندے

وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ

او خبرے به کوی مونږ سره لاسونه دَ دوی او ګواهي به کوی خپے دَ دوی

ف ٦١ :- دا امر دَ توحيد دے او دا دليل دے چه صراط مستقيم توحيد ته ويلے کيږی .

ف ٦٢ :- دا علت دے دَ دشمنئ دَ شيطان او زورنه ده مشرکينوته چه دَ تيرشوؤ ګمراه قومونو دَ حالت نه تاسو عبرت ولے نه حاصلوؤ .

جِبِلًّا مراد دَ دے نه خلق او ډلے دی او تفسير سراج المنير کښ ذکر کوی چه په دے لفظ کښ اشاره ده چه دا مخلوق دَ غرونو پشان غټ وو ليکن سره دَ دے نه شيطان دهوکه کړل .

ف ٦٣ ف ٦٤ :- يعنی جهنم به ورته ښکاره کړيشی نو دا سے خطاب به ورته اوکړيشی نو معلومه شوه چه مخکښ حال دَ ميدانِ حشر وؤ او بيا به ئے جهنم ته داخل کړی .

بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٦٥﴾ وَلَوْ نَشَآءُ لَطَمَسْنَا

په هغه کارونو باندے چه دوی کول۔ اوکه چرے اوغواړو مونږ نو ورانے به کړو

عَلٰٓى اَعْيُنِهِمْ فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَاَنّٰى

سترګے دَ دوی نو روانے کیږی به لارے ته نو څه رنګ به

۶۵:۔ په دے تخویف کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ به په آخرت کښ فیصلے صرف په خپل علم سره نه کوی بلکه دَدنیا دَ فیصلو پشان به فیصلے په اقرار او په شهادتونو سره کوی۔ اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ دَ دے مشهوره وجه داده چه دوی به انکار او کړی دَ شرک نه لکه چه په سورة انعام ۲۳ او حم مؤمن ۷۴ کښ دی او دا انکار ئے دروغ دے نو خولے به ورله بندے کړی یا دَ دے وج چه اقرار دَ غیر ناطق پوره حجت دے په نسبت دَ اقرار دَ ناطق سره۔ او دَ دے آیت تشریح په حدیث دَ مسلم او ترمذی کښ شته چه ډیرو مفسرینو دلته نقل کړیدی۔

(فوائد) اوله فائده:۔ نسبت دَ ختم الله تعالیٰ ځان ته کړے دے او نسبت دَ کلام دَ لاسونو ئے ځان ته نه دے کړے اګرچه کلام دَ لاسونو او خپو هم په قدرت دَ الله تعالیٰ سره دے په دے کښ اشاره ده چه کلام دَ لاسونو او خپو په جبر سره نه دے بلکه په اختیار سره دے او ختم دَ خولے په جبر دَ الله تعالیٰ سره دے۔

دویمه فائده:۔ لاسونو ته نسبت دَ کلام او خپوته ئے نسبت دَ شهادت او کړو وجه داده چه اکثر عملونه په لاسونو سره کیږی او خپے حاضرے وی نو قول دَ کوونکی اقرار وی او قول دَ حاضر شهادت وی۔

دریمه فائده:۔ که سوال اوشی چه لاسونو او خپو چه ناکاره عملونه کړے دی نو دوی فاسقان دی او شهادت دَ فاسق نه قبلیږی۔

اول جواب دادے چه دوی دا کارونه په اختیار سره نه دی کړی نو دوی ته نسبت دَ فسق نشی کیدلے۔

دویم جواب دادے چه دَ دوی دَ شهادت دَ ردکولو په ضمن کښ دَ شهادت قبولول دی ځکه چه دوی به دغه ورځ یا رشتیا وائی یا دروغ که رشتیا وائی نو جرمونه په دوی باندے ثابت شول او که دروغ اوائی نو ضرور به دوی په دنیا کښ هم ګناهونه کړے وی۔ لکه چه یو فاسق ته اویلے شی که تا دروغ ویلے وی په نن ورځ کښ نو زما مریئے دِ آزاد وی نو که هغه اووائی رپا تے په بل مخ

يُبْصِرُوْنَ ﴿۶۶﴾ وَلَوْ نَشَآءُ لَمَسَخْنٰهُمْ عَلٰى

او كه چرے او غواړو مونږ نو بدل به كړو شكلونه دَ دوى ولاړ به وى پيه ليدل كوى -

مَكَانَتِهِمْ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مُضِيًّا وَّلَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۶۷﴾

خپلو ځايونو باندے نو طاقت به نه لرى دَ مخكښ تللو او نه به واپس راګرځيدے شى -

چه مانړ دروغ ويلے دى نو مرېئے ازاد شو ځکه که دهٔ واقعى دروغ ويلے وى نو شرط موجود شو او که دروغ نه وى ويلے او بيا هم وائى چه ما دروغ ويلے دى نو بيا هم شرط موجود شو نو جزاء به واقع كيږى -

س۶۶ :- دا تخويف دنيوى دے ربط ئے داد ے هر كله چه تير شوى ايت كښ بندول دَ خلو ذكر كړل نو په دے ايت كښ ذكر كوى چه په دنيا كښ هم الله تعالىٰ قادر دے چه دَ دوى سترګے بندے كړى او دا په شان دَ ولوشاء الله لذهب بسمعهم وابصارهم (بقره س۲۰) دے . يعنى لكه چه الله تعالىٰ دَ دوى باطنى سترګے دَ هدايت نه ړندے كړے دى دا رنګ قادر دے چه دَ دوى ظاهرى سترګے هم بندے كړى - دويم تفسير داد ے چه الله تعالىٰ او غواړى نو دَ دوى دَ ګمراهئ سترګے به بندے كړى او دَ ګمراهئ نه به ئے هدايت ته واړوى ليكن هر كله چه الله تعالىٰ داسے نه دى كړى نو فَاَنّٰى يبصرون -

لَطَمَسْنَا طمس په اصل كښ هغه ړوندوالى ته ويلے كيږى چه دَ سترګو چودونه ئے هم نه وى او زيرے او باتره ئے هم نه وى -

س۶۷ :- دا دويم تخويف دنيوى دے تير شوى ايت كښ صرف دَ سترګو طمس وو نور صورت انسانيه باقى دے او په دے ايت كښ ټول صورت او شكل انسانى مسخ كول مراد دى چه كټے شى يا شادو او خنزير ترے جوړ شى -

عَلٰى مَكَانَتِهِمْ يعنى دَ مسخ كولو نه مخكښ چه په كوم مكان كښ ولاړ يا ناست وى نو دَ هغه ځائے نه دَ خوزيدلو نه ړواندے به مسخ شى يا مراد دَ دے مكان دَ ګناه كولو دے- مُضِيًّا ړواندے تلل وَلَا يَرْجِعُوْنَ روستو راتلل مراد دى يا داسے ځناور ترينه جوړ شى چه دَ فائدے ځائے نه پيژنى نو حيران په خپل ځائے باندے ولاړ وى-

وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِى الْخَلْقِ ط اَفَلَا

او هغه څوک چه زیات عمر ورکړو موږ هغه ته نو کمزوري ئې پیدا کړو موږ په اندامونو د ده کښې ایا نو دوی

يَعْقِلُوْنَ ﴿۶۸﴾ وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِىْ

عقل نه لري - او نه دے خودلے موږ دے (نبي ته) شعر جوړول او نه مناسب دے

لَهٗ ط اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ ﴿۶۹﴾

ده لره، نه دے دا کتاب مگر نصیحت او قرآن ښکاره دے -

ف۶۸ :- دا دلیل د ماقبل دے یعنی د قوتونو په زائل کولو باندے الله تعالیٰ قادر دے ځکه چه د بوډاوالی په حالت کښې ټول طاقتونه ظاهري او باطني کمزوري کوي لیکن انبیاء علیهم السلام د دے نه بچ دي اَلْخَلْقِ د دے نه مراد شکل او اندامونه او قوتونه دي۔

ف۶۹ :- په دے ایت کښې صداقت د قرآن او د رسول ذکر کوي متعلق دے د ابتدا د سورت سره او جواب د اعتراض د مشرکانو دے هغوی ویل چه دا قرآن شعر دے او دا نبي شاعر دے او شاعران اکثر دروغژن وي۔
او ربط د دے د تیر شوي ایت سره دا دے چه تیر شوي ایت کښې د عامو خلقو د ظاهري او باطني کمزورئ ذکر او شو نو په دے ایت کښې د پیغمبر شان ذکر کوي چه په هغه ضعف نیشته۔ وَمَا يَنْۢبَغِىْ لَهٗ یو معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ تعلیم د شعر جوړولو نه دے ورکړے نو ده لره د هغې جوړول اسان نه دي۔
دویمه معنیٰ دا ده چه شعرونه جوړول د ده د شان سره مناسب نه دي ځکه چه په شعر جوړولو کښې تکلف وي او دا د مَا اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ نه خلاف دے او دارنګ شعرونه اکثر د حقیقت نه خلاف مضمون باندے مشتمل وي او هرچه فصاحت او بلاغت دے نو هغه الله تعالیٰ نبي صلی الله علیه وسلم ته په اعلیٰ مرتبه کښې ورکړیدے۔
**فائده** :- په دے سورت کښې نفي د شعر ئې صرف او کړه نفي د کهانت او د سحر ئې نه ده کړے وجه دا ده چه کاهن به دوی هغه وخت ویل چه څه اخبار بالغیب به ئې ورکړے وو او ساحر به ئې هغه وخت ویل چه څه معجزه به ئې پیش کړے وه او شاعر به دوی هغه وخت ویل چه فصاحت بلاغت سره به مضمون ذکر شو نو په دے سورت کښې د پاتے په بل ځ)

لِّيُنْذِرَ مَنْ كَانَ حَيًّا وَّيَحِقَّ الْقَوْلُ

ددے دپاره چه ویره ورکړی دے هغه چاته چه ژوندے دی (زړه دهغه) او پوره یه شی حجت

عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷۰﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا

په کافرانو باندے. آیا او دوی ته ګوری چه یقینًا پیدا کړی دی موږ

لَهُمْ مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا فَهُمْ

دوی لره دهغه قسم نه چه جوړکړیدی لاسونو زمونږ څاروی نو دوی په

لَهَا مٰلِكُوْنَ ﴿۷۱﴾ وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا

هغې لره مالکان دی. او تابع کړځولے دی موږ هغې لره ددوی دپاره نو بعض دهغے نه

رَكُوْبُهُمْ وَمِنْهَا يَاْكُلُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَلَهُمْ

سورلۍ ددوی دی او بعض دهغے نه خوری دوی. او دوی لره

کښ اولنی دواړه (اخبار بالغیب او معجزه) نه وه بلکه دریم څیز په کښ دے نو دوی اعتراض اوکړو چه دا شعر دے نو د هغې نفی ئے خاص ذکر کړه.

ف: په دے آیت کښ دوه فائدے ذکر کوی په لف نشر مرتب سره یعنی هر کله چه ذکر دے نو فائده د دے انذار دے او هر کله چه قرآن (لوستل) ښکاره دی نو حجت به قائم شی په کافرانو باندے.

حَيًّا مراد ترینه حیات د قلب دے چه د هغوی ذکر د سورة په ۱۱ کښ شویدے.

۷۱ ۷۲ ۷۳ د دے آیت نه تر آخر پورے دریم باب دے په دے کښ درے عقلی دلیلونه دی په رد د شفاعت شرکیه باندے بیا زجر دے مشرکینو ته او تسلی ده رسول صلی الله علیه وسلم ته بیا زجر دے منکرینو د بعث بعد الموت ته او شپږ عقلی دلیلونه دی په اثبات د قیامت باندے. په دے درے آیاتونو کښ انعامات ذکر کوی په باره د څاروو کښ په اول آیت کښ نعمت د ملکیت ئے ذکر کړے دے او دا ملکیت ظاهری دے او په دویم آیت کښ درے نعمتونه ذکر کړیدی تذلیل (تابعداری کیدل) او سورلی او خوراک. او په دریم آیت کښ دوه نعمتونه ذکر کړیدی منافع د هغوی وینسته وړئے پشم څرمنے هډوکی چربی وغیره. وَمَشَارِبُ ئے جمع ذکر

فِيهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ ۖ أَفَلَا يَشْكُرُونَ ﴿٧٣﴾

په هغې کښې نفع دی او د څکلو څیزونه دی ایا نو دوی شکر نه کوی۔

وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لَّعَلَّهُمْ

او جوړ کړے دی دوی سوا د الله تعالیٰ نه حق دار د بندګئ د دے د پاره

يُنصَرُونَ ﴿٧٤﴾ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَهُمْ

چه دوی سره مدد او کړے شی۔ طاقت نه لری هغوی د مدد کولو د دوی

وَهُمْ لَهُمْ جُندٌ مُّحْضَرُونَ ﴿٧٥﴾ فَلَا يَحْزُنكَ

او دوی هغوی لره لښکر دے حاضر کړے شوے۔ نو غمژن دِ نه کړی تا لره

کړیدے اشاره ده اختلاف د اقسامو ته چه پئ، لسی، شوملے وغیره دی۔
مِمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا مِن بیانیه دے د انعامًا د پاره یعنی انعام (څاروی) الله تعالیٰ
په خپلو لاسونو سره جوړ کړیدی د بل چا یکښې هیڅ دخل نیشته اشاره ده
رد کولو ته په مشرکینو باندے چه د دوی شفعاؤ په دے څارووُ کښې
هیڅ عمل نه دے کړے نو دا مشرکان د څه وجے نه د هغوی په نوم باندے
دا څاروی منځته کوی یا د هغوی پئ په بوُ لسمه کښې ورکوی یا د هغوی
په نوم ئې ذبح کوی او دا مقصد دے په أَفَلَا يَشْكُرُونَ کښې ځکه چه د
شکر نه مراد توحید دے۔
سـ۷۴:۔ دا زجر دے په شرک سره او دا تفصیل د لا یشکرون دے۔
لَعَلَّهُمْ يُنصَرُونَ معلومه شوه چه لوے مقصد د شرک فی الالوهیة مدد د
الهو ته حاصلول دی د دے وجے نه ( امداد شه ) اوازورته کوی۔
سـ۷۵:۔ دا رد دے د دوی په امید ( د نصرت ) باندے۔ وَهُمْ لَهُمْ جُندٌ
مُّحْضَرُونَ اول ضمیر راجع دے عابدانو ( مشرکانو ته ) او دویم ضمیر راجع دے
الهو ته مراد دا دے چه دا مشرکان د دے معبودانو د پاره پشان د پولیس
او د فوج دے چه د هغوی څوکیداری کوی چه څوک ترینه څه څیز
او نه تختوی او نقصان ورته او نه رسوی او دا رنګ که څوک موحد د هغوی
عجز بیانوی نو دوی په هغوی باندے غصه کیږی او موحد لره بے عزتی کوی
او دا حال بعینه د قبر پرستو خلقو دے، او دویم احتمال دا دے چه اول ضمیر
راجع دے معبودانو ته او دویم عابدانو ته په دے کښې ( رباتی په بل مخ )

وقف لازم

قَوْلُهُمْ ۘ اِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۷۶﴾

وینا دَ دوی — یقینا موږ پوهیږو په هغه څیز چه دوی ئې پټوی — او هغه چه دوی ئې ښکاره کوی۔

اَوَلَمْ يَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ نُّطْفَةٍ

آیا نه ګوری — انسان — چه موږ پیدا کړے دے — دَ نطفے نه

فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ﴿۷۷﴾ وَضَرَبَ لَنَا

نو ناګاهه دے جګړه مار — ښکاره دے۔ — او ذکر کړے دے زموږ دَپاره یو

مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهٗ ؕ قَالَ مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ

اعتراض — او هیر کړے دے پیدائش خپل — وائی — څوک به ژوندی کړی هډوکی

وَهِيَ رَمِيْمٌ ﴿۷۸﴾ قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ

او حال داچه دایه ذرے ذرے وی۔ — ته اُوایه — ژوندے به کړی دے لره — هغه ذات

بیا دوه توجیهات دی اوله توجیه داده چه دادَ دے مشرکانو په زعم او په عقیده باطله باندے بنا دے دویمه توجیه داده چه لام په معنیٰ دَ علیٰ سره دے یعنی دَ الٰهه به دَ دوی په ضد او مخالفت کښ لښکرے حاضره وی په ورځ دَ قیامت کښ لکه چه سورة مریم ۸۲ ویکونون علیهم ضدا او سورة احقاف ۶ کښ دی۔

۷۶ :- دا تسلّی ده رسول صلّی الله علیه وسلّم ته۔ قَوْلُهُمْ مراد دَ دے نه دَ دوی اقوال شرکیه او تکذیب دَ رسول دے او انکار دَ قیامت دے چه هغه په روستو آیت کښ ذکر دے۔

۷۷ :- دا زجر دے په انکار دَ قیامت سره۔ او په دے کښ عام متکر انسان مراد دے او په دے زورنه کښ سختی ده په یو څو وجوهو سره۔
اوله وجه داده چه دے خپل خالق سره جګړه کوی۔
دویمه وجه دا چه دے ډیر سپک او ادنیٰ دے او دَ لوے اعلیٰ ذات نه مخالفت کوی۔
او دریمه وجه داده چه دَ لوے نعمت ناشکری کوی۔

۷۸ :- دا بیان دَ خصومت دَ هغه دے وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا مراد دَ دے نه صرف ذکر کول دَ عجیبه خبرے دی ځکه چه انکار کول دی، دَ رپاتے په بل مخ)

اَنۡشَاَهَاۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ وَهُوَ بِكُلِّ خَلۡقٍ

چه پیدا کړی دی اول کرت او هغه په ټول مخلوق پاندے

عَلِيۡمُ ۝٧٩ الَّذِىۡ جَعَلَ لَكُمۡ مِّنَ

ښهٔ پوهه دے داسے ذات دے پیدا کړیدے ستاسو دپاره دَ

الشَّجَرِ الۡاَخۡضَرِ نَارًا فَاِذَاۤ اَنۡتُمۡ مِّنۡهُ

شنے اونے نه اُور نو تاسو دَ هغے نه

تُوۡقِدُوۡنَ ۝٨٠ اَوَلَيۡسَ الَّذِىۡ خَلَقَ

اُور بلوئے ایا او نه دے هغه ذات چه پیدا کړیدی

قدرت او دَ علم دَ الله تعالیٰ نه ډیره عجیبه ده. یا مراد دا چه دِے انسان قدرت او علم دَ الله تعالیٰ دَ چپل قدرت او دَ علم پښان کړلے دے.
وَنَسِیَ خَلۡقَهٗ مراد دَ نسیان نه ذهول او غفلت دے.

٧٩:- دا جواب دَ قول دَ دغه منکر دے په ذکر دَ قدرت دَ الله تعالیٰ په قیاس کولو سره په اول پیدائش باندے او په ذکر دَ علم دَ الله تعالیٰ سره په ټولو ذرّاتو دَ مخلوق باندے نو په ذرّاتو دَ هډوکو دَ مړو باندے هم علم لری او په دے ایانتو کښ اشاره ده چه دَ مرګ او ژوند حلول په هډوکو کښ هم شته دے او دا اول دلیل دے په اثبات دَ حشر باندے.

٨٠:- دا بل دلیل دے په اثبات دَ قیامت باندے یعنی لکه چه اور پیدا کوی دَ شنے اونے نه او دا ډیر عجیبه ده ځکه چه په یو ځائے کښ اوبه او اور او لرګے یئے جمع کړیدی نو دا رنګ دَ اوچو خاورو نه دوباره انسان لره پیدا کولے شی.

الشَّجَرِ الۡاَخۡضَرِ مراد دَ دے نه هر شنه اونه ده. حکماؤ ویلے دی په هره اونه کښ اور شته سِوا دَ عنّاب (مخزنړے) نه او دا وجه ده چه دَ بجلئ تار په شنے اونے کښ شان (کرنټ) پیدا کوی ځکه چه دوه او رونه یو ځائے شول. یا مراد دَ دے دوه قسمه اونے دی چه مرخ او عفار ورته ویلے کیږی پانړه یا لرګے دَ مرخ (چه مذکر دے) په عفار باندے (چه مؤنث ده) او ښولوی نو اُور ترے پیدا شی.

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ
اسمانونه او زمکه قدرت لرونکے په دے خبره باندے پیدا کړی

مِثْلَهُمْ ۭ بَلٰى ۤ وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ﴿٨١﴾
د دوی پشان او هغه ډیر پیدائش کوونکے او ښه پوهه دے

وقف غفران

اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ اَرَادَ شَيْـــًٔا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ
یقینًا حکم د هغه کله چه اوغواړی پیدا کول د یو څیز چه اُوائی هغے ته او شه

فَيَكُوْنُ ﴿٨٢﴾ فَسُبْحٰنَ الَّذِيْ بِيَدِهٖ
نو هغه اوشی . نو پاکې ده د هغه ذات چه په لاس د هغه کښ

مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٨٣﴾
بادشاهی د هر څیز ده او خاص هغه ته به اوګرځولے شئ تاسو.

۵ ع ۲

سا۸۱ :. دا یل دلیل دے په اثبات د بعث بعد الموت باندے . مِثْلَهُمْ ضمیر منکرینوته راجع دے او مراد د مثل نه نفسونه او ذوات د دوی دی دا سے په سورة اسراء سا۹۹ کښ تیر شوے دی او سورة احقاف سا۳۳ کښ هم شته.
او هر کله چه په دے ایت کښ ذکر د اسمانونو او د زمکے دے چه غټه مخلوق او ډیرو اجزاؤ والادی نو د دے وجے نه خلاق او علیم ئے د مبالغے صیغے په صفاتو د الله تعالیٰ کښ ذکر کړے دی.
سا۸۲ :. دا هم دلیل دے په اثبات د قیامت باندے دلته د اَمْرُهٗ نه مراد صفت او شان د الله تعالیٰ دے یا مراد تری نه امر د ساعت (قیامت) دے یعنی امر د الله تعالیٰ په باره د قیامت کښ لکه چه سورة نحل سا۷۷ کښ دی.
سا۸۳ :. دا هم دلیل دے او نتیجه ده د ټولو دلیلونو تیر شوؤ په بیان د توحید سره په سبحان کښ او په ذکر د قیامت سره په الیه ترجعون کښ. د مَلَكُوْتُ نه مراد ملکیت او تصرف ظاهری او باطنی دے.
ختم شو تفسیر د سورة یٰسٓ په توفیق د الله تعالیٰ سره
په تاریخ ۲۰ ذوالقعده ۱۴۱۵ھ مطابق ۱۸ اپریل ۱۹۹۵ء کښ.

سُوْرَةُ الصّٰفّٰتِ ۳۷ مَكِّيَّةٌ ۵۶ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۱۸۲ رُكُوْعَاتُهَا ۵

وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ① فَالزّٰجِرٰتِ زَجْرًا ②

قسم دے په هغه ملائکو باندے چه صفونه جوړوی صفونه. بیا هغه چه شړونکی دی په شړلو سره.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سُوْرَةُ الصّٰٓفّٰتِ

**ربط** دَدے سورت دَ مخکښ سورت سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ رد ووُ په شفاعتِ قهریه (شرکیه) باندے نو په دے سورت کښ دَ هغې علت ذکر کوی چه هغه عجز او احتیاج دَ نیکانو بندګانو دے. دویمه وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ عقلی دلیلونه وو نو په دے سورت کښ نقلی دلیلونه ذکر کوی. دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ اثبات بعث بعد الموت ووُ په دلیلونو سره نو په دے سورت کښ ذکر کوی حالات دَ خلقو په ورځ دَ قیامت کښ تخویفًا او بشارةً.

**دعویٰ دَ سورت.** اثبات دَ توحید دے په ذکر کولو دَ احتیاج او دَ عجز دَ ملائکو او احتیاج او عبدیت دَ پیغمبرانو او ذلت دَ جنّاتو سرهٔ دَ رد دَ شرك بالملائکه والجن والانبیاء نه او رد دَ شرک فی العبادة والدعاء دے.

احوال دَ ملائکو په ۱ ۲ ۳ ۱۶۴ ۱۶۵ ۱۶۶ کښ او احوال دَ جنّاتو ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۵۸ ۱۶۰ کښ ذکر کوی. او احوال دَ اوؤ پیغمبرانو، نوح او ابراهیم او موسیٰ سرهٔ دَ هارون او الیاس او لوط او یونس علیهم السلام نه او ماخذ دَ دعوے په اخر دَ سورت ۱۸۱ کښ دے چه انبیاء علیهم السلام محتاج دی الله تعالیٰ ته په سلامتیا کښ او دعویٰ دَ توحید ۱۸۰ ۱۸۲ کښ ذکر دہ.

**خلاصه دَ سورت.** په دے کښ درے بابونه دی. اول باب تر ۷۴ پورے دے په دے کښ احوال دَ ملائکو دَ پاره دَ شهادت په توحید باندے دی بیا تذلیل دَ جناتو ذکر کوی تر ۱۰ پورے بیا څلور قسمه زجرونه ذکر کوی تر ۲۰ پورے بیا براءة دَ الٰهو باطلو او دَ عابدانو ر پاتے په بل مخ)

فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا ﴿۳﴾ اِنَّ اِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ ﴿۴﴾

بیا هغه چه لوستونکی دی ذکر لره په طریقه دَشهادت سره په دَ خبره باندے) چه یقیناً حق دارد بندګانو ستاسو یو ذات دے.

رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَرَبُّ

رب دَ اسمانونو او دَ زمکے او دَ مینځ دَ دِ دواړو دے او رب

دَ هغوی دَ یو بل نه ذکر کوی تخویفاً تر ۳۴ پورے بیا بشارت تفصیلیه تر ۶۱ او تخویف اخروی تفصیلی تر ۷۴ پورے ذکر کوی.

## تفسیر

۱ تر ۲ تر ۳ تر ۴ :- په دے کښې صفات دَ ملائکو دی او دا غوره قول دے چه ملائک دَ الله تعالیٰ بندګی دَ پاره په صفونو کښې ولاړ دی لکه چه صحیح حدیث کښې وارد دی چه "صفونه دَ دے امت دَ پاره دَ مونځ دَ جماعت په شان دَ صفونو دَ ملائکو دی چه اولنی صفونه پوره کوی او دَ یو بل سره پیوست ولاړ وی". او ملائک زجر کوی (شړی) شیطانانو لره دَ اسمان نه او شړی ورپځو لره دَ یو طرف نه بل طرف ته او منع کوی مؤمنانو لره دَ ګناهونو نه په الهام دَ خیر سره. او ملائک تلاوت کوی دَ وحی او ذکر کوی الله تعالیٰ لره په تسبیح او حمد او تقدیس سره. او دویم قول دا دے چه مراد دَ دے نه جماعتونه دَ مؤمنانو دی چه دا درے کارونه کوی. او دَ دے قسم کار کولو تفصیل په ابتدا دَ سورة یٰسٓ کښې تیر شویدے چه دا په طریقه دَ استشهاد سره دے یعنی دا حالات دَ ملائکو (چه دَ عجز او دَ عبدیت لِلّٰه تعالیٰ دی) شهادت کوی په توحید دَ الله تعالیٰ باندے چه دا ملائک او نور مخلوق هم دَ الله تعالیٰ سره شریک نشی کیدے.

**فائده :-** فَا په ۲ او ۳ کښې دَ پاره دَ ترتیب وجودی ده یعنی اول صفونه جوړول بیا شړل دَ شیاطینو دی او بیا تلاوت او ذکر کول دی یا فَا دَ پاره دَ تفاوت دَ دے صفتونو نه ده یا دَ پاره دَ فرق دَ موصوفاتو ده.

الْمَشَارِقِ ﴿۵﴾ إِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا

دَ مشرقونو دے ۔ یقیناً خائسته کړے دے مونږ اسمان نزدے

بِزِينَةٍ الْكَوَاكِبِ ﴿۶﴾ وَحِفْظًا مِّن كُلِّ

په خائست سره چه ستورې دی او ساتلے دے مونږ په ساتنے سره دَ هر

ف ۵:- دا دلیل عقلی دے دَپاره دَ توحید روستو دَ دلیل نقلی او دَ قسم نه ۔ الْمَشَارِقِ دا ئې جمع ذکر کړے ده لکه په سورة معارج ۴۰ کښ دی ځکه چه مراد دَدے نه دَ هرے یوے ورځے دَ نمر ښکاره کیدلو ځائے دے او هغه درے سوه ۳۶۵ او پنځه شپیته دی لکه چه امام قرطبی ذکر کړے دی او درے سوه ۳۶۰ شپیته خطیب شربینی ذکر کړے دی او یو سل ۱۸۰ اتیا ابن عطیه په محرر الوجیز کښ ذکر کړے دی والله اعلم لیکن مشهور قول اول دے ۔ او المغارب ئې نه دے ذکر کړے ځکه چه ذکر دَ مشرق دلالت کوی په مغرب باندے او بله وجه دا چه مقصود دَ نمر نه رنړا ده او هغه په ښکاره کیدلو دَ نمر سره ده او دَدے وجے نه مطالع ئې نه دی ویلے او بله وجه دا ده چه په نمر ښکاره کیدلو کښ استدلال ښکاره دے په نسبت دَ غروب دَ هغهٔ سره ۔

ف ۶:- دا هم دلیل عقلی دے په توحید باندے او تمهید دَپاره دَ حال دَ پیریانو دے چه دوی عاجز او ذلیل دی نو څه رنګ دَ الله تعالیٰ سره شریک کیدے شی یا زور اور سفارشی جوړیدے شی او رد دے په مشرکین بالجن باندے او دارنګ دارد په مشرکین بالکواکب باندے هم دے ځکه چه ستورې صرف دَ زینت او دَ حفاظت دَپاره پیدا کړے شویدی معبودان نشی جوړیدے او په دے ایت کښ ئې دَ ستورو یوه فائده ذکر کړه یعنی زینت دَ اسمان او هم دغسے سورة حجر ۱۶ کښ تیر شویدی. او هرکله چه دا ستورې دَ لاندے نه انسانانو ته دَ اسمان سره پیوست ښکاریږی اګرچه دَ اسمان نه کوز دی لکه نورو روایاتو او علم هیئت سره معلوم شویده نو زینت ئې اسمان ته منسوب کړو او دلالت کوی چه یو جائز څیز صرف دَ زینت دَپاره استعمالول جائز دی په دے شرط چه دَ حد شرعی نه بهر نه وی ۔

شَيْطٰنٍ مَّارِدٍ ۝٧ لَا يَسَّمَّعُوْنَ اِلَى الْمَلَاِ

شیطان سرکش نه . غوږ نشی کیخودلے مجلس

الْاَعْلٰى وَيُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ۝٨

بره ته او ویشتلے کیدے شی دَ هر طرف نه .

دُحُوْرًا وَّلَهُمْ عَذَابٌ وَّاصِبٌ ۝٩ اِلَّا

رټلے کیدلے شی په رټنے سره او دوی لره عذاب پیوست کیدونکے دے مگر

مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ

هغه څوک چه او تختوی څه خبره په تختولو سره نو روانه شی په هغه پسے شعله

ثَاقِبٌ ۝١٠ فَاسْتَفْتِهِمْ اَهُمْ اَشَدُّ

بلیدونکے - نو تپوس اوکړه ایا دوی پوخ

ت ۸ ت ۹ ت ۱۰ :- په دے ایاتونو کښ دویمه فائده دَ ستورو ذکر کوی لکه سورة حجر ت ۱۷ کښ تیرشویده او په دے کښ دَ شیطانانو الله حالتونه ئے ذکر کړے دی . مَّارِدٍ خالی دَ خیرنه (م رد) دلالت کوی په خالی والی باندے لکه اَمرد (دَ ګیرے نه خالی) . الْمَلَاِ الْاَعْلٰى مجلس دَ اشرافو او دَ افضل ملائکو چه هغوی دَ الله تعالیٰ دَ وحی په باره کښ مجلس کوی . وَّاصِبٌ همیشه او هغه چه اثر ئے زړهٔ ته وررسیږی . الْخَطْفَةَ یعنی یوه خبره دَ خبرو دَ ملائکو نه په پټه غوږ سارنے سره را او تختوی .
اِلَّا مَنِ استرق السمع سورة حجر ت ۱۸ کښ تیر شوید ے . شِهَابٌ هغه شغله دَ اور چه دَ ستوری نه راجدا کړے شی او رڼا کوی .
فائده :- دَ نبوت دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم نه روانه دے هم شیاطین په دا سے شغلو سره ویشتلے کیدل لیکن هغه لږ وو او روستو دَ شورو کیدلو دَ نزول قرآن نه دا شغلے ډیرے شوے دَ هر طرف دَ اسمان نه شورو شوے دَ دے دَ باره چه دَ کاهنانو دَ خبرو دَ وجے نه په قرآن کریم کښ تلبیس پیدا نشی او دَ حفاظت دَ قرآن دَ وجے او دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ همیشه صداقت دَ باره دا معامله دَ شیاطینو سره روستو دَ وفات دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم نه هم باقی ده - او بعض بحث دَ دے په اخر دَ سورة شعراء کښ هم تیر شوے دے .

خَلْقًا اَمْ مَّنْ خَلَقْنَا ؕ اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّنْ

پیدائش والا دی او که هغه څوک چه موږ پیدا کړیدی، یقینًا پیدا کړیدی موږ دوی له ده دَ

طِیْنٍ لَّازِبٍ ﴿۱۱﴾ بَلْ عَجِبْتَ وَیَسْخَرُوْنَ ﴿۱۲﴾

خټې نه چه سیښناکه وه۔ بلکه ته تعجب کوے او مسخرے کوی (دوی)۔

وَاِذَا ذُكِّرُوْا لَا یَذْكُرُوْنَ ﴿۱۳﴾ وَاِذَا رَاَوْا

او کله چه دوی ته نصیحت کیدیشی نو نصیحت نه قبلوی۔ او کله چه اُوینی

اٰیَةً یَّسْتَسْخِرُوْنَ ﴿۱۴﴾ وَقَالُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِیْنٌ ﴿۱۵﴾

معجزه نو مسخره ترینه جوړه کړی۔ او دوی وائی نه دے دا مګر جادو ښکاره دے۔

ف۱۱ :۔ دا زجر دے منکرینو دَ بعث بعد الموت ته او مراد دَ مَنْ خَلَقْنَا نه ملائک او مشرق او ستوری او شیاطین او شهابونه (شغلے) دی چه مخکښ ذکر شول چه الله تعالیٰ دَ دے څیزونو پیدائش باندے قادر دے نو دوباره پیدا کولو دَ انسانانو باندے هم قادر دے لکه سورۃ نازعات ف۲۸ او سورۃ غافر ف۵۷ کښ دی یا مراد دَ من خلقنا نه تیر شوے اُمتونه دی چه هلاک کړے شویدی چه الله تعالیٰ دَ هغوی په هلاکولو قادر ووُ نو دَ دے موجوده منکرینو په اِهلاک باندے هم قادر دے۔ لَّازِبٍ هغه خټه چه ډیر وخت پرے تیر شی خمبیره شی او بیا لاسونو پورے انښلی او هغه ته سلیخ ناکه ویلے کیږی۔

ف۱۲ :۔ دا زجر دے په انکار دَ رسالت سره وَیَسْخَرُوْنَ واو حالیه دے یعنی په حال دَ مسخرو کولو په تا پورے او په قرآن پورے ته تعجب کوے دَ انکار او دَ مسخرو دَ دوی نه یا واو عاطفه دے یعنی تعجب کوے دَ انکار دَ دوی دَ توحید او دَ قیامت نه او دوی مسخرے کوی۔

ف۱۳ ف۱۴ ف۱۵ :۔ په اول ایت کښ زجر دے په انکار دَ قرآن او دویم ایت کښ زجر دے په انکار دَ معجزے او دَ رسالت۔

یَسْتَسْخِرُوْنَ باب استفعال دَ طلب دَ پاره دے یعنی یو بل نه طلب کوی چه په دے پورے مسخره اوکړئ۔

ءَاِذَا مِتۡنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبۡعُوۡثُوۡنَ ﴿۱۶﴾

آیا کله چه مونږ مړه شو او خاورے او هډوکی شو آیا مونږ دوباره پیدا کیدے شو

اَوَ اٰبَآؤُنَا الۡاَوَّلُوۡنَ ﴿۱۷﴾ قُلۡ نَعَمۡ وَاَنۡتُمۡ

او آیا پلاران زمونږ زاړه - ته اُوایه هاؤ او تاسو

دَاخِرُوۡنَ ﴿۱۸﴾ فَاِنَّمَا هِیَ زَجۡرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَاِذَا

به ذلیل یئ - نو یقیناً دا تیزه چغه ده یوه نو دغه وخت به

هُمۡ یَنۡظُرُوۡنَ ﴿۱۹﴾ وَقَالُوۡا یٰوَیۡلَنَا هٰذَا

دوی ګوری - او وائی په هائے تباهی ده زمونږ دا

یَوۡمُ الدِّیۡنِ ﴿۲۰﴾ هٰذَا یَوۡمُ الۡفَصۡلِ

ورځ دَ جزا ده - (او به وئیلے شی) دا ورځ دَ فیصلے ده

الَّذِیۡ كُنۡتُمۡ بِهٖ تُكَذِّبُوۡنَ ﴿۲۱﴾ اُحۡشُرُوا

هغه چه تاسو هغه دروغ ګنړله - راجمعه کړئ (اے ملائکو)

رکوع ۵

۱۶ تا ۱۷ تا ۱۸ تا ۱۹ تا ۲۰ تا ۲۱ :. په دے آیاتونو کښ زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت سره. دړے کرته ئې همزه دَ استفهام راوړے دے دَ وجے دَ ډیر استبعاد نه. داخِرُوۡنَ په دے کښ اشاره ده چه دوباره ژوند کښ ستاسو اختیار نیشته بلکه ذلیل او عاجز به ئې امر دَ الله تعالیٰ ته. ینظرون دا عام دے یعنی یو بل ته به نظر کوی خپل حالت ته به ګوری یا په معنیٰ دَ انتظار دَ جزاء دے. یا نظر کنایه ده دَ ژوندی کیدلو نه. امام بقاعی وئیلی دی چه نظر ئې خاص کړو په ذکر سره چه نظر بغیر دَ حیات نه نه موجودیږی او نور حواس کله کله بغیر دَ حیات نه هم موجودیږی لکه چه اوریدل په مړو کښ په خرقِ عادت سره موجود شویدی په واقعه دَ بدر کښ. دا رنګ خطیب شربینی وئیلی دی چه تابلس کښ یوازغی داره او نه وه هرکله چه دَ هغې په خوا کښ اوښے شو چه لور راوړے چه دا پریکړو نو دَ هغې پانړے به مړاوے شوے. دا سے په دے ملک کښ هم یو بوټے دے (ټیچ می ناټ) چه لاس ورته نزدے کړے نو پانړے ئې راغونډے شی. (والله علی کلِّ شیءٍ قدیر). هٰذَا یَوۡمُ الۡفَصۡلِ دا قول دَ منکرینو دے

احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوا

هغه کسان چه ظلم یې کړے دے او د دوی ملګری او هغه کسان چه دوی یې

يَعْبُدُونَ ﴿٢٢﴾ مِنْ دُونِ اللَّهِ فَاهْدُوهُمْ

بندګی کوله سِوا د الله تعالی نه نو روان کړئ هغوی

إِلَىٰ صِرَاطِ الْجَحِيمِ ﴿٢٣﴾ وَقِفُوهُمْ إِنَّهُمْ

لارے د جهنم ته ۔ او اودرولئ دوی یقینًا د دوی نه

مَسْئُولُونَ ﴿٢٤﴾ مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُونَ ﴿٢٥﴾

تپوس کیدے شی ۔ څه وجه ده تاسو لره چه د یو بل سره مدد نه کوئ۔

بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ ﴿٢٦﴾ وَأَقْبَلَ

بلکه دوی به نن ورځ تابعدار وی ۔ او مخامخ به شی

یو بل ته یا قول دے د طرف د الله تعالیٰ ته۔

فائده :- په دے ایا تو توکښ د قیامت دوه نومونه ذکر کړے شول یوم الدین۔ او یوم الفصل ۔هرکله چه په تقسیم د جزاء او سزا سره جدائی راځی د دے وج نه الدین یې د الفصل نه مخکښ ذکر کړو۔

۲۲ تا ۲۳ ۲۴ تا ۲۵ تا ۲۶ :- په دے ایاتونوکښ تخویف اخروی په پنځه حالاتو سره ذکر کړو ۔ حشر۔ د جهنم لارے ته روانہ ے کول۔ حصار ول د تپوسو د پاره۔ یو بل سره نصرت نه کول۔ ذلیل او منقاد کیدل په مجبورئ سره۔

وَأَزْوَاجَهُمْ مراد د دے نه هغه کسان دی چه مشابه دی یو بل سره په نوعه د ظلم او ګناه کښ۔ یعنی مشرک بالملائکه به د مشرک بالملائکه سره او بت پرست به د بت پرست سره او مشرک د ستورو د خپل مشابه سره او قبر پرست د قبر پرست سره او زانی د زانی سره او شرابی د شرابی سره او بدعتی د بدعتی سره به یو ځائے کړے شی او دے ته په عام عرف کښ پیربابان ویلے کیږی۔ وَمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ د دے نه مراد هغه پیران او ملایان دی چه عوامو د دوی طاعت کړے دے په شرک او بدعاتو او ګناهونوکښ او دوی پرے رضا وو لکه دوی چه مراد وو په سورة انبیاء ۹۸ کښ۔

احْشُرُوا امر دے د الله تعالیٰ د طرف نه ملائکو ته (پاتے په بل مخ)

بَعۡضُهُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ يَّتَسَآءَلُوۡنَ ﴿٢٧﴾

بعض دَ دوی په بعضو باندے تپوسونه به کوی.

قَالُوۡۤا اِنَّكُمۡ كُنۡتُمۡ تَاۡتُوۡنَنَا عَنِ الۡيَمِيۡنِ ﴿٢٨﴾

وائی به (کشران) یقیناً تاسو وئے چه راتللے موتږته (په منع کولو سره) دَ (دین) حق نه.

قَالُوۡا بَلْ لَّمۡ تَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ ﴿٢٩﴾

او به وائی (مشران) بلکه نه وئے تاسو ایمان راوړونکی.

وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيۡكُمۡ مِّنۡ سُلۡطٰنٍ ۚ بَلۡ

او نه وُو موتږ لره په تاسو باندے هیڅ زور (دلیل) بلکه

وَقِفُوۡهُمۡ یعنی په لار دَ جهنم چه روان شی او لار به دَ جهنم دَپاسه یو پُل وی (جسرِ جهنم) نو دَ هغے دَپاسه به حصار کړیشی. اِنَّهُمۡ مَّسۡئُوۡلُوۡنَ دا شامل دے تپوس کولو ته دَ ټولو گناهونو په باره کښ او دے ته حساب ویلے کیږی. مَا لَكُمۡ لَا تَنَاصَرُوۡنَ داهم داخل دے په تپوسونو کښ او وارد دے دَ دوی په دعوی باندے په دنیا کښ چه دا معبودان به زموږ امداد کوی او دلته مراد دَ نصرت نه دَ عذاب نه بچ کول دی.

۲۷ سَ ۲۸ سَ ۲۹ سَ ۳۰ سَ ۳۱ سَ ۳۲. (ربط) هرکله چه معلومه شوه چه دوی به دَ تپوس دَ جواب نه چُپ وی نو وهم راځی چه آیا دوی به چارا کان وی ژبے به ئے بندے وی؟ نو دَ دے وهم ازاله کوی چه دوی به یو بل لره ملامته کوی او په دے آیاتونو کښ تخویف اخروی دے په طریقه دَ براءت دَ الِهو باطلو او دَ عابدانو دَ هغوی دَ یو بل نه په ورځ دَ قیامت کښ. الۡيَمِيۡنِ، دَ مجاهد نه نقل دے چه یمین دین حق او نیکو کارونو ته ویلے کیږی او تَاۡتُوۡنَنَا په معنیٰ دَ منع کولو دَ خیر نه دے او نفرت پیدا کول دَ هغے نه. او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړے شوے دی چه یمین په معنیٰ دَ قسم سره دے یعنی تاسو به موږته قسمونه کول چه شرک او کفر حق دے. بل قول دا دے چه یمین په معنیٰ دَ قوت او دَ قدرت سره دے یعنی تاسو به موږته خپل زور او قوت ښکاره کوؤ په غرسونو کولو او نور زیب و زینت سره. بَلۡ لَّمۡ تَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ یعنی تاسو دَ ابتدا نه بے ایمانه وئے نو موږ څه رنګه تاسو دَ ایمان نه راواړوُلے.

كُنْتُمْ قَوْمًا طٰغِيْنَ ﴿٣٠﴾ فَحَقَّ عَلَيْنَا

تاسو وئے قوم سرکشان - نو پوره شوے ده په مونږ باندے

قَوْلُ رَبِّنَآ ۖ إِنَّا لَذَآئِقُوْنَ ﴿٣١﴾ فَأَغْوَيْنٰكُمْ

فیصله دَ رب زمونږ یقیناً مونږ څکونکی دَ عذاب یو - نو گمراهئ ته مونږ راوبللے تاسو

إِنَّا كُنَّا غٰوِيْنَ ﴿٣٢﴾ فَإِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْعَذَابِ

ځکه چه مونږ گمراهان وو - نو یقیناً دوی به په دغه ورځ په عذاب کښ

مُشْتَرِكُوْنَ ﴿٣٣﴾ إِنَّا كَذٰلِكَ نَفْعَلُ

شریک دی - یقیناً مونږ داسے کار کوؤ

بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿٣٤﴾ إِنَّهُمْ كَانُوْٓا إِذَا قِيْلَ

دَ مجرمانو سره - یقیناً دوی وو چه کله به اُوویلے شو

---

سُلْطَانٍ په معنیٰ دَ حجت او دلیل دے یعنی مونږ تاسو ته هیڅ حجت او دلیل په شرک باندے نه دے پیش کړے یا مراد دَ سلطان نه زور او جبر کول دی.
طٰغِيْنَ مراد دَ طغیان نه بے حجته کارونه کول دی. قَوْلُ رَبِّنَا تفسیر دَ هغه لاملأن جهنم من الجنة والناس اجمعین دے او اِنَّا لذائقون دَ قول نه بدل دے.
فَاَغْوَيْنٰكُمْ. حاصل دا چه مونږ په تاسو زور نه دے کړے او نه هم درته دلیل پیش کړے صرف دعوت دَ گمراهئ مو درته کړیں ے دَ دے دَ پاره چه زمونږ ملګری دَ گمراهئ ډیر شی نو تاسو زمونږ دعوت په خپله خوښه باندے قبول کړے دے او دا رنگ سورة قصص کښ او سورة سبا کښ هم تیر شویدی.
٣٣ ،٣٤:- هر کله چه ثابته شوه چه دواړه ډلے په غوایت کښ شریک دی نو لازمه ده چه په عذاب کښ به هم شریک وی.
نَفْعَلُ په دے کښ اشاره ده چه په ورځ دَ قیامت یو بل لره ملامته کول دَ دوی او په گمراهئ باندے اقرار کول او عذاب ورکول دا دَ ټولو مجرمانو سزا ده په یو قسم متبوعینو او تابعینو پورے تخصیص نیشته.

لَهُمْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَيَقُوْلُوْنَ

دوی ته ییشته حق دار د بندګۍ سوا د الله تعالیٰ نه نو دوی په لویئ کوله . او دوی به ویل

اَئِنَّا لَتَارِكُوْٓا اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُوْنٍ ﴿۳۶﴾

آیا مونږ پریګدو معبودان خپل د وجې د شاعر لیونی نه .

بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳۷﴾

بلکه راوړے دے حق او تصدیق ئے کړے دے د رسولانو .

اِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ ﴿۳۸﴾

یقیناً تاسو خامخا څکونکی د عذاب درد ناک ئے

وَمَا تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۳۹﴾

او بدله نشی درکیدے تاسو ته مګر د هغه عملونو چه تاسو کول .

۳۵ :- دا علّت د ماقبل عذاب دے او زجر دے په انکار د توحید سره . معلومه شوه چه مشرک د الله تعالیٰ نه او د هغهٔ د صفتونو او عبادتونو نه انکار نه کوی لیکن صرف د توحید نه انکار کوی لکه چه سورة اسراء ۴۶ کښ تیر شویدی او سورة ص ۵ او زمر ۴۵ کښ به راشی.

۳۶ :- دا دویم علّت د عذاب دے او زجر دے په انکار د رسول صلی الله علیه وسلم او د هغهٔ په سپک والی سره چه شاعر دے او مجنون دے او دا خو د دے خلقو حماقت دے ځکه چه مجنون خو شعرونه نشی جوړولے او دوی د دواړو صفتونو په جمع سره هغهٔ ته نسبت کوی .

۳۷ :- دا رد دے په دغه منکرینو باندے . د حَقّ نه مراد توحید دے . او صَدَّقَ کښ اشاره ده چه توحید د ټولو انبیاء علیهم السلام یو دین دے نو د دے رسول نه انکار کول د ټولو رسولانو نه انکار کول دی.

۳۸ ۳۹ :- دا تخویف دے او تفریع ده په تیر شوی دواړه علتونو باندے د دے وجې نه دویم ایت کښ اشاره او کړه چه د دے جزا سبب د دوی عملونه دی چه کوم مخکښ ذکر شول .

إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿٤٠﴾ أُولَٰئِكَ لَهُمْ

مګر بندګان دَ الله تعالیٰ چه ❞ ساتلے شوی وی . دغه کسان دوی لره

رِزْقٌ مَّعْلُومٌ ﴿٤١﴾ فَوَاكِهُ ۖ وَهُم مُّكْرَمُونَ ﴿٤٢﴾

روزی ده معلوم صفتونو والا میوے دی او دَ دوی به عزت کیدیشی

فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٤٣﴾ عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ ﴿٤٤﴾

په جنتونو دَ نعمتونو کښی . په تختونو به وی یو بل ته مخامخ .

يُطَافُ عَلَيْهِم بِكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ ﴿٤٥﴾

ګرځولے به شی په دوی باندے کاسے ډکے دَ خاص شرابو نه .

بَيْضَاءَ لَذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ ﴿٤٦﴾ لَا فِيهَا

سپین مزه ورکوُنکی به وی څکونکو ته . نه به وی په هغے کښی

غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ ﴿٤٧﴾ وَعِندَهُمْ

آفتونه او نه به دوی له دَ هغے (شرابو) نه اُلټے ورځی . او دوی سره به وی

ښځ :. دا استثناء ده إِنَّكُمْ لَذَائِقُونَ نه او ظاهره دا ده چه استثناء منقطع ده. الْمُخْلَصِينَ نه مراد هغه کسان دی چه الله تعالیٰ خالص کړے او غوره کړے دی دَ توحید او دَ دین او دَ دوستانے دَ ګان دَپاره .
دَ ښځ نه تر ۴۹ پورے په دے ایاتونو کښی بشارت ذکر کوی په ښوارلس انعاماتو خاصو سره. مَّعْلُومٌ دلته یو سوال دے چه سورة الم سجده ۱۷ کښی اخفی لهم من قرة اعین تیرشوے هغه دلالت کوی چه دَ جنت نعمتونه هیڅ ته نه دی معلوم او دلته فرمائی رِزْقٌ مَّعْلُومٌ ؟ جواب دادے چه معلوم دی بعض صفتونه دَ هغے چه همیشه دی او بُكْرَةً وعشيًّا دی او تفصیلی حقیقت یې نه دے معلوم . فَوَاكِهُ دا بیان دَ رزق دے نو معلومه شوه چه رزق دَ جنت ټول دَ لذت او دَ مزے دَپاره دے دَ لوږے دَ وجے نه نه دے مُّكْرَمُونَ عزت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په رفع دَ درجاتو سره او په دیدار دَ الله تعالیٰ او په کلام دَ الله تعالیٰ سره دے. مُتَقَابِلِينَ یعنی دَ یو بل شا به نه وینی کنایه ده چه دَ یو بل نه به نه خفه کیږی. یا مراد دا دے چه دا تختونه به چاپیره ګرځی (رپاتے په بل مخ)

قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ عِیْنٌ ۝۴۸ كَاَنَّهُنَّ بَیْضٌ

(پیغلې) بندې لرونکی به وی نظر خپل لره خاوندانو ته ښائسته سترګو والا به وی ګویا دوی هګۍ

مَّكْنُوْنٌ ۝۴۹ فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ

پټې ساتلې شویدی. نو مخامخ به شی بعض د دوی په بعضو باندې

یَّتَسَآءَلُوْنَ ۝۵۰ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ اِنِّیْ

تپوسونه به کوی . اوبه وائی یو ویونکی د دوی نه یقینًا

كَانَ لِیْ قَرِیْنٌ ۝۵۱ یَّقُوْلُ اَئِنَّكَ

وُو مالره یو ملګرے هغه به ویل چه ایا ته

نو یو بل ته به شا ته کرځی . کَاْسٍ هر کله چه ډک وی د شرابو نه نو کاس ورته ویلے کیږی او چه خالی وی نو کاس ورته نه ویلے کیږی .
مَعِیْنٍ د معن نه دے جاری ته ویلے کیږی یا د عین نه دے یعنی په سترګو به ښکاریږی . لَذَّةٍ په معنیٰ د لذیذة دے او هر چه شراب د دنیا دی نو کړیږ او بد مزه وی . غَوْلٌ پټ ضرر ته ویلے کیږی نو دا شامل دے درد سر او درد د خیټې او نورو مرضونو ته . وَلَا هُمْ یُنْزَفُوْنَ په معنیٰ د فساد د عقل دے په سبب د نشه کیدلو سره او دا تخصیص بعد التعمیم دے ځکه چه لفظ غَوْل هم نشے ته شامل دے او نشه کیدل لوئے آفت دے .
قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ دا د زنانو بهترین صفت دے په دنیا او آخرت کښ چه د خاوندانو نه علاوه بل چاته سترګے نه اړوی . عِیْنٌ ښائسته سترګو والا یعنی چه غټے وی په اندازے سره او سپین والے د هغ بنهٔ سپین وی او توروالے د هغ بنهٔ تور وی . بَیْضٌ مَّكْنُوْنٌ مراد د دے نه اګۍ د شترمرغ ده چه پټه وی د ځیرو او د غبار نه او مائله وی زیړوالی ته یا مراد د دے نه هغه اګۍ ده چه روغه اوئیشو شی او بیا تر ینه د پاسه پوست لرے کړیشی نو لا نړ صفا سپین وی . یا مراد دے نه مطلق اګۍ ده چه پټه ساتلے شویوی او د زنانو تشبیه د هغ سره په تناسب د اجزاؤ کښ ورکیدے شی . تر دے ځائے پورے نعمتونه د خوراک او د رهائش او څښاک او د بیبیانو په باره کښ ذکر شول .
د ۵۰ نه تر ۶۱ پورے دا هم په بشارت کښ داخل دے ځکه چه عذاب په دشمن باندے او بچ کیدل د سبب د عذاب ته لوے نعمت دے .

لَمِنَ الْمُصَدِّقِيْنَ ﴿۵۲﴾ ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا

خامخا د منونکو نه يې (رد توحيد او د قيامت). آيا چه مړه شو مونږ او شو مونږ

تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَدِيْنُوْنَ ﴿۵۳﴾ قَالَ

خاورې او هډوکي آيا مونږ له به جزا راکيدې شي. او به وائي

هَلْ اَنْتُمْ مُّطَّلِعُوْنَ ﴿۵۴﴾ فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ

آيا تاسو يې ورښکاره کيدونکي. نو ښکاره به شي نو اوبه وينې هغه لره

فِيْ سَوَآءِ الْجَحِيْمِ ﴿۵۵﴾ قَالَ تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ

په مينځ د دوزخ کښ. ورته به وائي قسم دې په الله تعالى بانديې يقيناً نزدې وې ته

لَتُرْدِيْنِ ﴿۵۶﴾ وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّيْ لَكُنْتُ

چه زه دې ارغړولې وې او که نه وې احسان د رب زما خامخا زه به وې

مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ﴿۵۷﴾ اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ ﴿۵۸﴾

د حاضر کړې شوو نه په عذاب کښ. آيا نه يو مونږ مړه کيدونکي.

اِلَّا مَوْتَتَنَا الْاُوْلٰى وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۵۹﴾

مګر مرګ زمونږ دې وړومبې او نه يو مونږ عذاب راکړې شوي

فَاَقْبَلَ دوی خو يو بل ته مخاطع دی ځکه چه متقابلين ويلې شوې دی ليکن دَ دې اقبال نه مراد په دې تساؤل کښ شروع کول دی.
قَرِيْنٌ دَ دې نه مراد مقابله کوونکې دې يو عمر والا همزولې ځکه چه قرين په اصل کښ يو قرن والا ته ويلې کيږي. سَوَآءِ په معنیٰ دَ وسط دې ځکه چه هغه ته ټول طرفونه برابر وی. نِعْمَةُ رَبِّیْ مراد دَ دې نه بچ کول دی دَ شرک او دَ انکار دَ قيامت نه او مضبوط والې دې په ايمان باندې.
الْمُحْضَرِيْنَ احضار په شر کښ استعماليږی. اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ هر کله چه سبب دَ بچ کيدلو دَ عذاب نه ذکر کړو نو اوس بچ کيدل دَ عذاب نه (چه هغه مسبب دې) ذکر کوی. همزه دَ استفهام داخل دې په فاء عاطفه باندې نو معطوف عليه محذوف دې انحن مخلدون منعمون فما نحن بميتين او استفهام تقريری دې. رپاتې په بل مخ)

إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٦٠﴾ لِمِثْلِ هٰذَا

یقیناً دا خامخا کامیابی لویه ده ۔ دَپاره دَ دغسې جزا ،

فَلْيَعْمَلِ الْعٰمِلُونَ ﴿٦١﴾ أَذٰلِكَ خَيْرٌ نُزُلًا

پس عمل دِ کوی عمل کوؤنکی ۔ ایا دا غوره دی په میلمستیا کښ

أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ ﴿٦٢﴾ إِنَّا جَعَلْنٰهَا فِتْنَةً

او که اُونه دَ زقوم ۔ یقیناً گرځولے ده مونږ هغه امتحان

لِّلظّٰلِمِينَ ﴿٦٣﴾ إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ

دَپاره دَ ظالمانو ۔ یقیناً هغه اُونه ده چه راوځی

فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ ﴿٦٤﴾ طَلْعُهَا كَأَنَّهُ

په ویخ دَ دوزخ کښ غاښکے دَ هغې گویا کے چه

إِلَّا مَوْتَتَنَا الْأُولٰى استثناء منقطع ده یعنی اول مرګ زمونږ وؤ په دنیا کښ لکه سورة دخان ۵۶ کښ دی ۔ إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ اه دا قول دَ الله تعالیٰ دے دنیاوالو ته دَپاره دَ ترغیب ورکولو۔ یا قول دَ جنتی دے په طریقه دَ تحدیث نعمت سره۔ لِمِثْلِ هٰذَا یعنی دَ دنیا دَ مقصدونو او شهواتو دَپاره محنت نه دے پکار بلکه دَ جنت دَ نعمتونو دَ حصول دَپاره کړاؤ ضروری دے ۔
دَ ۶۲ نه تر ۶۸ پورے په دے ایاتونو کښ تخویف اخروی دے نُزُلًا هغه غذاء ته ویلے کیږی چه صالح وی چه خلق دَ هغې دَپاره نازل شی او دیره شی او دا هغه خوراک دے چه تیار یږی دَپاره دَ نازل (میلمه) ۔ فِتْنَةً په معنیٰ دَ عذاب او دَ محنت دے یا په معنیٰ دَ امتحان او دَ ابتلاء دے یعنی هرکله چه مشرکانو دا واوریدل چه په جهنم کښ اُونه ده نو هغوی مسخره شورو کړه چه په اور کښ ختگه اُونه کیدیشی۔ طَلْعُهَا، طلع په کجوره کښ هغه شے دے چه اوّل ښکاره شی بیا ترے غنچک جوړ شی۔
كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيٰطِينِ مراد دَ دے نه سرکش ماران دی چه هیبت ناک شکلونه لری یا مراد دَ دے نه ابلیس او دَ هغه اولاد دی او هغوی اگرچه په اصل صورت او شکل انسانانو لیدلے نه دی لیکن په عرف کښ مشهور دی په بد شکلے سره لکه راغلی دی یو مثل کښ چه یو بوډئ دَ یو زرګر نه (مصوّر)

رُءُوْسُ الشَّيٰطِيْنِ ﴿۶۵﴾ فَاِنَّهُمْ لَاٰكِلُوْنَ

سرونه دَ شیطانانو دی - نو یقینًا دوی به خامخا خوری

مِنْهَا فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ ﴿۶۶﴾ ثُمَّ

دَ هغې نه نو ډکوی به دَ هغې نه خیټې - بیا به

اِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿۶۷﴾

یقینًا دوی لره دَ هغې دَپاسه ګډون دی دَ خوټکیدلو اوبو نه -

ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَاِلَى الْجَحِيْمِ ﴿۶۸﴾

بیا به یقینًا واپس کیدل دَ دوی خامخا دوزخ دَ اور ته دی -

نه مطالیه او کړه چه ماله دَ شیطان شکل جوړ کړه نو هغه ورته اوبل چه ماله نمونه راوړه ماخو شیطان نه دے لیدلے نو هغې بوړئے جاحظ عالم (مشهور اهل لغت ادیب معتزلی وو) راوسته راو هغه ډیر بد صورته وو) نوزر کړته یئے اوبل چه دَ دهٔ په مثل ماله شیطان جوړ کړه . نو دا تشبیه دَ وج دَ شهرت نه ده لکه تشبیه دَ حُسن دَ پاره دَ خاپیرو سره ورکیږی اګر چه خاپیری چا ته دی لیدلی دا رنګ دَ یوسف علیه السّلام تشبیه دَ مَلَك سره ورکړے شوے وه اګر چه مَلَك هغه زنا نو لیدلے نه وو -

فَمَالِـُٔوْنَ اشاره ده چه دا خوراک دَ مړه ولو فائده نه ورکوی لیکن صرف خیټه به ډکوی او دَ ډکے خیټې نه ډیر تکلیفونه او مرضونه پیدا کیږی بیا هر کله چه دَ خوراک سره ډکیدل دَ خیټې متصل دی نو فاءَ یئے ذکر کړے دے او هر کله چه اوبه څکل دَ خوراک سره متصل ضروری نه دی نو په ثُمَّ سره یئے ذکر کړه ثُمَّ اِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ یعنی دَ اوبو ګرموالے او دَ اوبو تریخوالے به دواړه ګډ شی . یا دا چه دا اوبه په دَ وینو زوؤ دَ جهنمیانو سره ګډے کړے شی . ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ هر کله چه دَ خوراک او څکاک طبقه په جهنّم کښ جدا ده او په اور سره دَ سوزیدلو طبقه (جحیم) جدا ده نو دَ دے وج نه یئے او فرمائیل چه روستو دَ خوراک او څکاک نه دَ دوی واپسی جحیم ته ده -

إِنَّهُمْ أَلْفَوْا آبَاءَهُمْ ضَالِّينَ ﴿٦٩﴾ فَهُمْ

یقیناً دوی موندلی وو مشران خپل ګمراهان نو دوی په

عَلَىٰ آثَارِهِمْ يُهْرَعُونَ ﴿٧٠﴾ وَلَقَدْ ضَلَّ

دَ هغوی په قدمونو باندې زغلیدلی شول. او یقیناً ګمراه شوی وو

قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٧١﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا

دَ دوی نه مخکښ ډیر دَ زړو خلقو نه او یقیناً لیږلی وو مونږ

فِيهِمْ مُنْذِرِينَ ﴿٧٢﴾ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ

په هغوی کښ ویره ورکوونکی. نو اوګوره چه څه رنګې شو

عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِينَ ﴿٧٣﴾ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ

آخری انجام دَ ویره ورکړې شوو. مګر بندګان دَ الله تعالیٰ

الْمُخْلَصِينَ ﴿٧٤﴾ وَلَقَدْ نَادَانَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ

چه بچ ساتلی شوی دی. او یقیناً آواز راکړی وو مونږ ته نوح علیه السّلام نو ډیر ښهٔ

ع ۳

۶۹ تا ۷۰ :- په دې آیاتو کښ سبب ذکر کوی دَ عذاب سابق چه هغه تقلید دَ ګمراهانو دې بغیر دَ غور او فکر او دلیل نه. يُهْرَعُونَ دا مجهول دې په معنیٰ دَ معلوم سره لیکن مجهول ئې په دې وجه ذکر کړې دې چه ګویا که چه دَ دوی زغلونکې دَ دوی جهل او خواهش دې.

۷۱ ۷۲ ۷۳ ۷۴ :- دا تخویف دنیوی دې منکرینو ته په عذابونو دَ تیرشوی مکذبینو سره او تسلّی ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته په راتللو دَ عذاب سره په مخالفینو باندې او نجات موندلو دَ مؤحدینو سره.

إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ دا استثناء ده دَ منذرين نه استثناء متصل ده یا دَ اولین استثناء منقطع ده.

الْمُجِيبُونَ ﴿۷۵﴾ وَنَجَّيْنٰهُ وَأَهْلَهُ مِنَ الْكَرْبِ

جواب ورکوونکي وو - او خلاص کړو مونږ دے او کورنۍ ددهٔ د غم

الْعَظِيمِ ﴿۷۶﴾ وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبٰقِينَ ﴿۷۷﴾

لوے نه - او اوګرځوؤ مونږ اولاد ددهٔ باقي په دنيا کښ -

۷۵ د دے ایت نه تر ۱۴۹ پورے دویم باب دے په دے کښ حالات د اوؤ پیغمبرانو ذکر کوی چه دوی محتاج وو الله تعالیٰ ته او د هغهٔ بندګان وو لفظ د نَا ضمیر جمع متکلم (چه مراد ترینه الله تعالیٰ دے) د دوی په واقعاتو کښ ذکر کوی اشاره ده چه دوی په دغه حالاتو کښ الله تعالیٰ ته محتاج وو. هغه انبیاء علیهم السّلام نوح، ابراهیم، موسیٰ او هارون، الیاس لوط او یونس علیهم السّلام وو. او ربط د دے د المخلصین سره دے چه هغه پیغمبران او د هغوی تابعداران وو. نَادٰانَا، مراد د دے نه دُعاګانے د نوح علیه السلام دی چه په سورة نوح کښ تفصیلاً ذکر شویدی -

فَلَنِعْمَ فاء دلالت کوی په دغه دعا په ډیر اخلاص او تضرع سره چه سبب د اجابت وؤ -

۷۶:- دا د اجابت د دعا بوه طریقه ده چه د غرق نه بچ کیدل دی یعنی په دے نعمت کښ الله تعالیٰ ته محتاج وو.

الْكَرْبِ الْعَظِيمِ غرق کیدل د ټول قوم لوئے واره دا غټ غم دے یا مراد د دے نه عذاب د ورځ د قیامت دے.

۷۷:- دا بل انعام دے په نوح علیه السلام باندے چه په دے کښ هم هغه الله تعالیٰ ته محتاج وؤ مراد د دے دا دے چه د نوح علیه السّلام نه روستو ټول دنیا والا اولاد ددهٔ دی او په دے کښ اشاره ده چه په کشتۍ کښ صرف ددهٔ اولاد وؤ او نور خلق ټول غرق شول. او دا رنګ سورة یونس ۳۰ کښ تیر شویدی. مفسرینو لیکلی دی چه ددهٔ درے ځامن بچ شول حام، سام، یافث، نو د حام اولاد سند، هند، نوب، زنج، حبش او قبط او بر بر وغیره دی او د سام اولاد عرب، فارس او روم او بنی اسرائیل وغیره دی او د یافث اولاد. ترک صقلب یاجوج ماجوج چین وغیره دی.

وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ﴿٧٨﴾ سَلَامٌ عَلَىٰ

او پریخودلے دے موږ په دهٔ باندے په روستو خلقو کښ۔ سلام دے په

نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ ﴿٧٩﴾ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي

نوح علیه السّلام باندے په عالمو کښ ۔ یقیناً موږ دغه شان بدله ورکوو

الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٠﴾ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿٨١﴾

خائسته عمل کوونکو ته۔ یقیناً دے دَ بندګانو زموږ نه وؤ چه مؤمنان دی۔

ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ ﴿٨٢﴾ وَإِنَّ مِنْ

بیا غرق کړل موږ روستنی خلق۔ او یقیناً دَ

شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ ﴿٨٣﴾ إِذْ جَاءَ رَبَّهُ بِقَلْبٍ

هغه ډلے نه خامخا ابراهیم علیه السّلام وؤ۔ کله چه راغے خپل رب ته په زړه

وقف لازم

۷۸ تر ۷۹ تر ۸۰ تر ۸۱ تر ۸۲ په دے کښ نور انعامات ذکر کړے شوے دی۔ ترکنا دَ دے مفعول حذف دے یعنی الثناء الحسن والذکر الجمیل. سَلٰمٌ دَ دے مفعول حذف دے او معنیٰ دَ سلام داده چه دَ ده ذکر ته ہیچ او سالم دے په روستو خلقو کښ او په دے کښ هم تقدیر دے یعنی سَلٰمٌ مِّنَّا یعنی دا سلامتیا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه ده۔ الْعٰلَمِيْنَ مراد دَ دے نه ملائک او جن او انس دی۔ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ په دے کښ اشاره ده تسلّی دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ته او دلیل دے چه سبب دَ دے انعاماتو احسان دَ نوح علیه السلام دے او احسان نه مراد دعوت الی الحق دے په اخلاص سره۔ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ داهم تفسیر دَ احسان دے او تصریح ده چه نوح علیه السّلام دَ الله تعالیٰ دَ خاص بندګانو نه یو خاص بنده وؤ او محتاج وؤ۔

۸۳:۔ دا دویمه واقعه ده دَ ابراهیم علیه السلام او دلیل نقلی دے په دے کښ ذکر دَ عبدیت دَ ابراهیم السلام ذکر کوی په دوه طریقو سره، اول مجاهده کول په دعوت دَ توحید کښ او په مصیبتونو باندے صبر کول دویم دَ الله تعالیٰ په امر سره خپل ځوئے قربانی کول۔ او ذکر کوی احتیاج ددهٔ الله تعالیٰ ته په سلامتیا او بشارت او برکاتو کښ چه دے الله تعالیٰ ته محتاج وؤ۔ شِيْعَتِهٖ یعنی ابراهیم علیه السلام په مجاهده کولو کښ دَ توحید دَ دعوت دَ پاره دَ ډلے دَ نوح علیه السلام نه وؤ یعنی دَ هغهٔ پشان وؤ۔

سَلِيْمٍ ﴿٨٤﴾ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَاذَا

روغ موټ . کله چه اُوئیل ئې پلار خپل او قوم خپل ته دَ څه څيز وتو

تَعْبُدُوْنَ ﴿٨٥﴾ اَئِفْكًا اٰلِهَةً دُوْنَ اللّٰهِ

عبادت کوئے تاسو . ایا دَ دروغ معبودان سوا دَ الله تعالیٰ نه

تُرِيْدُوْنَ ﴿٨٦﴾ فَمَا ظَنُّكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٧﴾

غواړئے تاسو . نو څه ګمان دے ستاسو په رب دَ عالمینو باندے .

۸۴: دا بیان دَ تابعدارئ دَ دۀ دے جَآءَ رَبَّهٗ دَ دے نه مراد توجه کول دی رب ته په دعوت کولو سره توحید ته. سَلِيْمٍ خالی دَ شرک نه او دَ شبهاتو دَ شرک نه او دَ میلان کولو نه مشرکانو ته. مخلص په دعوت کولو کښ. ویره کوئے دَ الله تعالیٰ نه چه رپیږی دَ ویرے دَ وجے نه لکه چه انسان او چیچلے شی او رپیږی (دا نول احتمالونه دی).

۸۵: مَاذَا مراد دَ دے نه تپوس کول دَ دلیل دَ شرک دی او طلب دَ وصف دَ معبودیت دے دَ دوی په معبودانو باطلو کښ لکه چه سورة مریم ۴۲ کښ تیر شوی دی.

۸۶: هر کله چه هغوی عاجز دی دَ ذکر دَ دلیل نه او دَ اثبات دَ وصف دَ معبودیت دَ هغوی نه نو ابراهیم علیه السلام ورته دا اویل اَئِفْكًا اٰلِهَةً په دے عبارت کښ اول ترکیب دا دے. تریدون فعل دے دون الله ظرف دے او اٰلِهَةً مفعول به دے افکًا مفعول له دے معمولات ئې په عامل باندے دَ اهتمام دَ وجے نه مخکښ کړے دی او مفعول له کښ تصریح ده په بُطلان دَ طریقے دَ دوی نو هغه ئې په سر کښ ذکر کړو. دویم ترکیب دا دے افکًا مفعول به دے مبدل منه، اٰلِهَةً دَ هغے نه بدل دے په طریقه دَ مبالغے سره. دریم دا دے چه اٰلِهَةً مفعول به دے او اَئِفْكًا په معنیٰ دَ اٰفکین سره حال دے دَ مفعول نه. افک په اصل کښ اوړیدلو ته وائی یعنی هغه سخت دروغ چه دَ حقیقت نه بالکل خلاف وی.

۸۷: زجر دے په شرک باندے دلیله په دے کښ توجیهات دی اوله دا ده ایا تاسو ګمان کوئے چه الله تعالیٰ دِ دے عاجز مخلوق لره دَ ځان سره شریک کړے دی. دویمه توجیه دا ده ایا تاسو ګمان کوئے چه الله تعالیٰ دَ جنس دَ مخلوق نه دے چه تاسو دَ هغه تشبیه ورکوئے دَ مخلوق سره. (پاتے په بل مخ)

فَنَظَرَ نَظْرَةً فِی النُّجُوْمِ ﴿۸۸﴾ فَقَالَ اِنِّیْ

نو نظر یې اوکړو یو نظر په ستورو کښې نو اُوئیل یې یقیناً زه

سَقِیْمٌ ﴿۸۹﴾ فَتَوَلَّوْا عَنْهُ مُدْبِرِیْنَ ﴿۹۰﴾

ناجوړه یم - نو روان شول دوی دَ هغه نه شاګرځوُنکی -

دریمه توجیه په طریقه دَ تخویف سره یعنی تاسو په الله تعالیٰ باندے څهٔ ګمان کوئ چه په حالت دَ شرک کښې مرهٔ شئ او هغه ته به پیش شئ.

۸۸ تا ۸۹ :- مراد دا دے چه په رد دَ شرک دَ هغوی کښې استدلال یې اوکړو یوځل استدلال دَ ستورونه او تفصیل دَ هغې په سورة انعام ۷۶ کښې تیر شوے دے بیا یې اوئیل زه بیمار یم یعنی زړهٔ م خفه دے ستاسو دَ شرک دَ وجے نه.
یا مراد دا دے چه دوی ورته دعوت ورکړو چه زمونږ دَ الهؤ عرس دے مونږ سره لاړ شه چه زمونږ اثر قبول کړے نو هغه دَ دوی دَ خبرو او دَ کارونو په مختلفو حصو کښې فکر او چلوؤ دَ پاره دَ دے چه ځان نزیته په څه بهانه سره پاتے کړی نو اوئیل یې چه اِنِّیْ سَقِیْمٌ. یا مراد دا دے چه ستورو ته یې اوکتل په اراده دَ دے چه دَ الله تعالیٰ دَ قدرت نمونے دی لیکن دوی خیال اوکړو چه ابراهیم زمونږ په طریقے سره ستورو ته کتلے دی. بنا په روستو توجیه سره دا توریه عملی ده او اِنِّیْ سَقِیْمٌ توریه قولی ده - مراد دَ توریې دا دے چه "متکلم یو خبره اوکړی او صحیح معنیٰ نزینه په خپله ارادے سره مقصود کړی لیکن مخاطب دَ هغې نه بله معنیٰ اراده کړی".
نو دلته هم سقیم نه ابراهیم علیه السّلام خفګان دَ زړه مراد کړے دے یا په معنیٰ سأسقم (زر دے چه بیمار به شم) او هر انسان ضرور بیماریږی نو دا رشتیا ده او هغهٔ قوم دا مراد واغستلو چه دَ دهٔ بدن بیمار دے او دوی به دَ هرے بیمارے نه نفرت کوؤ نو دَ دے وجے هغه ته یې شاګانے اوګرځولے او روان شول. (سوال) که څوک اووائی چه په حدیث صحیح کښې دے لفظ سقیم ته کذب ویلے شویدی او حال دا دے چه انبیاء علیهم السّلام خو دَ ګناهونو نه پاک دی؟
اول جواب دا دے چه کذب په معنیٰ دَ توریې سره دے یعنی هر کله چه دا معنیٰ دَ هغوی دَ مراد نه مخالف وه نو دَ دے وجے نه مجازاً یې ورته کذب اوئیل. دویم جواب دا دے چه مفسر رازی ویلے دی چه اطلاق دَ کذب

فَرَاغَ اِلٰۤى اٰلِهَتِهِمْ فَقَالَ اَلَا تَاْكُلُوْنَ ﴿۹۱﴾

نو پټ راغے دَ دوی په معبودانو پسے تو اُوئیل ئے آیا نه خورئے تاسو .

مَا لَكُمْ لَا تَنْطِقُوْنَ ﴿۹۲﴾ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ

څه وجه ده تاسو لره چه خبرے هم نه کوئے . نو شو ورو شو په هغوی

ضَرْبًاۢ بِالْيَمِيْنِ ﴿۹۳﴾ فَاَقْبَلُوْۤا اِلَيْهِ

په وهلو سره په حق لاس بانن ے . نو مخامخ شو هغه خلق دهٔ طرف ته

يَزِفُّوْنَ ﴿۹۴﴾ قَالَ اَتَعْبُدُوْنَ مَا تَنْحِتُوْنَ ﴿۹۵﴾

منډے وهلے . اُوئیل ئے آیا بندګی کوئے تاسو دَ هغه څیزونو چه په لاسو نو ئے ګنسټل کوئے

راوی دَ ځان نه جوړکړے دے په طریقه دَ روایت بالمعنیٰ سره ځکه چه نسبت کول دَ خطائی روایت کوونکی ته غوره دی دَ نسبت کولو دَ دروغو ویلو ته ابراهیم علیه السّلام ته .

۹۱ تا ۹۲ :- دا ذکر دَ مجاهدے کولو دَ ابراهیم علیه السّلام دے دَ پاره دَ رد دَ شرک . رَاغَ پټ راتللو دَ پاره دا لفظ استعمالیږی دِ دے هم دَ قوم نه پټ راغے . او هغه قوم به دَ دے اٰلِهو په وړاندے خوراکونه کیخودل دَ پاره دَ دے چه برکت پکښ پیدا اشی بیا به ئے لګ دَ هغے نه دَ تبرک دَ پاره ځان له راوړوا وباقی به ئے منجوراتو ته پریخودو نو ابراهیم علیه السلام په دے خطابونو کښ دا خبره ثابته کړه چه دوی خوراک او خبرے نشی کولے نو دوی دَ عبادت لائق نه دی او دا خطابونه اګرچه بتانو ته دی لیکن الزام دے په دغه مشرکانو باندے . (ویلے کیږی یو ته اُوروے کیږی بل ته) دا مثل دے .

۹۳ :- هر کله چه په وهلو کښ معنیٰ دَ ضرر ده دَ دے وجه نه ئے دلته دَ فَرَاغَ په صله کښ علیٰ ذکر کړو . بِالْيَمِيْنِ نه ښے لاس مراد دے ځکه چه په هغے کښ قوت ډیر وی یا قسم مراد دے هغهٔ چه سورة انبیاء ۵۷ کښ ذکر دے او باء سببیه ده . یا عدل ته ئے ویلے دے یعنی هغه عدل (توحید) چه بیعت ئے کړے وو دَ الله تعالیٰ سره په ورځ دَ میثاق کښ .

۹۴ :- يَزِفُّوْنَ په تیزے سره راتلل په ابراهیم علیه السلام پسے روستو دَ خبریدلو دَ دوی په دے واقعه باندے . یا مراد دا دے چه په تکبر سره راتلل . دَ زفاف دَ ناوے نه ماخوذ دے .

۹۵ تا ۹۶ :- دا رد دے دَ هغوی په شرک باندے په دوه طریقو سره (پاتے په بل مخ)

وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٦﴾ قَالُوا ابْنُوْا لَهٗ

او الله تعالٰی پیدا کړی یئ تاسو او ستاسو عملونه ۔ اُویل دوی جوړ کړئ دده دپاره

بُنْيَانًا فَاَلْقُوْهُ فِي الْجَحِيْمِ ﴿٩٧﴾ فَاَرَادُوْا بِهٖ

آبادی نو اوغورځوئ دهٔ لره په اُور کښ ۔ نو او غوښتلو دوی (چې اوکړی) هغه سره

كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَسْفَلِيْنَ ﴿٩٨﴾ وَقَالَ اِنِّيْ

چل ول نو اوګرځول مونږ دوی ذلیلان ۔ اُویل هغه یقینًا زه

---

اوله طریقه تَنْحِتُوْنَ یعنی تاسو دا بُتان دَ لرګو اوګټو وغیره نه په خپلو لاسو تو جوړ کړیږی نو هغه دَ عبادت حق دار نشی کیدے او په دے کښ هغه قبرونه هم داخل دی چه په چونه او سیمټو سره پاخه کړے شوے وی اوډولی کړے شوے وی او بیا ورته سجدے لګوی او حاجات ترینه غواړی.
دویمه طریقه وَمَا تَعْمَلُوْنَ یعنی ستاسو او ستاسو دَ عملونو خالق صرف الله تعالٰی دے او په دے کښ دا معبودانِ باطله اوَدَ هغوی بندګی کول هم داخل دی.
او دا دلیل دَ اهلِ سنت والجماعة دے په دے عقیده باندے چه الله تعالٰی خالق دَ هر عمل دے که خیروی اوکه شر وی او اختیاری وی اوکه غیراختیاری وی دَدے وجے نه اضلال او هدایت او دَ ختم او طبع نسبت الله تعالٰی ته په حقیقت باندے بنادے او اعمالو اختیار یو کښ کسب دَ بنده لره دخل شته دے حساب دَ بنده سره دَ هغهٔ دَ کسب دَ وجے نه کیږی او قدریه معتزله وائی چه افعالِ اختیاری دَ بندګانو، مخلوق دَ بندګانو دے نو دوی دَ الله تعالٰی سره په صفت دَ خلق کښ شریک جوړ کړو او جبریه وائی چه دَ انسان کسب لره هیڅ دخل نیشته مجبورِ محض دے او حال دادے چه په مینځ دَ کټے او دَ انسان ژوندی کښ او هم دا سے په مینځ دَ روغ لاس او ګوزن والی لاس کښ فرق تمام اهلِ عقل منی نو دَ دوی دا قول دَ عقل نه هم خلاف دے۔

۹۷ ۹۸ :۔ هر کله چه دَ دوی سره دلیل نووُ په شرک باندے نو دَ ظلم لار یئ اختیار کړه او مشوره یئ اوکړه چه یو لویه آبادی (دَ تنور په شکل باندے) جوړه کړئ، نو هغه یئ جوړه کړه او دَ خاشاک نه یئ ډکه کړه او اور یئ پکښ بل کړو او ابراهیم علیه السلام یئ پکښ اوغورځووُ او دے تولے کارنامے ته یئ كَيْدًا اوویل لیکن هر کله چه په

ذَاهِبٌ اِلٰی رَبِّیْ سَیَهْدِیْنِ ﴿۹۹﴾ رَبِّ هَبْ لِیْ

ځمه طرف د رب خپل ته خامخا ماته لار اوخائي - اے ربه زما او بخښه ماته (ولد)

مِنَ الصّٰلِحِیْنَ ﴿۱۰۰﴾ فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِیْمٍ ﴿۱۰۱﴾

د نیکانو نه - نو زیرے ورکړو مونږ هغه ته په هلک صبرناک سره

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْیَ قَالَ یٰبُنَیَّ اِنِّیْٓ

نو هرکله چه اورسیدلو د هغه سره کار کولو ته اوویل هغه اے ځویه زما یقیناً زه

اَرٰی فِی الْمَنَامِ اَنِّیْٓ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا

وینم په خوب کښ چه ذبح کوم تا نو سوچ اوکړه چه څه

تَرٰی ۭ قَالَ یٰٓاَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ ۡ سَتَجِدُنِیْٓ

رائے لرے، هغه اُوویل اے پلاره زما اوکړه هغه چه تاته حکم کیدے شی. زر دے او به مومے ته ما لره

دلیل هم دوی پرهٔ شول او اور ئے بے اثره شو د دے وجے نه ئے اوویل الْاَسْفَلِیْنَ او هرکله چه مال او خشاک او وخت ئے بے فائدے شول نو دیته ئے په سورة انبیاء کښ الاخسرین ویلے وو.

ف ۹۹:- په دے کښ دوه اقوال دی اول دا چه اور ته ئے بوتللو نو دا کلمه ئے اوویله نو معنیٰ دا ده "زه روان یم هغه ځیز ته چه رب زما مقرر کړے دے زر دے چه ما لره به طریقه د نجات جوړه کړی". دویم قول دا دے چه روستو د بچ کیدلو د اور نه عزم د هجرت ئے اوکړو او په سورة عنکبوت ۲۶ کښ هم د دے تائید دے او اِلٰی رَبِّیْ کښ اِلٰی په معنیٰ د لام دے د پاره د رضا د رب یا په معنیٰ د هغه ځائے چه امر کوی ماته رب زما. مفسرین وائی چه اول هجرت د رب د پاره ابراهیم علیه السلام کړے دے او هجرت ئے کړے وو ملک شام ته.

ف ۱۰۰ ۱۰۱:- هرکله چه د دین د بقا د پاره د اولاد ضرورت دے چه د دین دعوت جاری او ساتلے شی د دے وجے نه د ځوئی په باره کښ ئے دُعا اوغوښتله او هغه دعا قبوله شوه او لفظ حَلِیْم کښ اشاره ده چه دے به بلوغ ته ورسیږی ځکه چه صفت د صبر د بالغانو په ملاح کښ ویلے کیږی.

إِنْ شَآءَ اللَّهُ مِنَ الصَّٰبِرِينَ ﴿١٠٢﴾ فَلَمَّا

که چرے الله تعالی اوغواړی دَ صبرناکو نه - نو هرکله

س ۱۰۲:- دَ دے ایت نه دَ بلے ابتلاء دَ ابراهیم علیه السّلام واقعه ذکر کوی. السَّعْیَ یعنی دا سے عمر ته اورسیدلو چه دَ پلار سره کاروبار ئے کولے شو او عبادت ئے هم کولے شو او په دا سے عمر کښ دَ اولاد مرګ ډیر غم سبب وی. أَرَىٰ فِي الْمَنَامِ دا دلیل دے چه رؤیا دَ انبیاء علیهم السّلام قطعی وحی ده چه په هغې باندے عمل کول فرض دی. فَانْظُرْ مَاذَا تَرَىٰ دا دَ رائے نه ماخوذ دے. (سوال) هرکله چه حکم دَ الله تعالیٰ واجب العمل دے نو دَ ځوئی سره پکښ مشوره ولے کوی؟ جواب: دا دَ دے دپاره چه دَ ځوئی صبر او طاعت دَ امر دَ الله تعالیٰ معلوم کړی نو زړه به ئے ډیر خوشحال شی. لفظ دَ إِنْ شَآءَ اللَّهُ سبب دے دپاره دَ توفیق دَ صبر.
(بحث دَ ذبیح) اختلاف دے دَ اهلِ علمو چه ذبیح اسماعیل علیه السلام دے او که اسحاق علیه السّلام دے په دے کښ درے قولونه دی.
۱ اول قول دَ توقف دے زجاج وغیره دَ دلیلونو دَ تعارض دَ وجے نه په دے کښ توقف کړے دے. ۲ دویم قول دا چه ذبیح اسحاق علیه السّلام دے او دا روایت دے دَ عبد الله بن مسعودؓ او دَ ابن عباسؓ او علیؓ بن طالب او عکرمه او سعید بن جبیر او مجاهد او شعبی وغیرهم نه، او دا غوره کړے دے ابن جریر او قرطبی. (دلیلونه دَ دے قول دا دی) دلیل اول احادیث موقوفه دی چه په هغې کښ وارد دی. یوسف بن یعقوب بن اسحاق ذبیح الله بن ابراهیم خلیل الله. دلیل ثانی حدیث مرفوع په واسطه دَ عباسؓ بن عبد المطلب چه ذبیح اسحاقؑ دے. دلیل ثالث عبارت دَ تورات دے اذبح ولدك وحیدك اسحاق. لیکن درے واړه دلیلونه ضعیف دی هرچه اول دے نو مفسر ابن کثیر فرمائیلی دی چه دغه ټول اقوال په اصل کښ نقل دی دَ کعب الاحبار نه دَ هغهٔ نه په صحابه کرامو او تابعینو نقل کوؤ دَ روایات اسرائیلیو او امام بخاری ذکر کړے دی چه دَ دهٔ په روایتونو کښ به اکثر دروغ وو. هرچه دویم دلیل دے نو په سند دَ دغه حدیث مرفوع کښ حسن بن دینار بصری او علی بن زید بن جدعان دے اول راوی متروک دے او دویم منکر الحدیث دے. هرچه دریم دلیل دے نو ابن قیم

أَسْلَمَا وَتَلَّهٗ لِلْجَبِيْنِ ﴿١٠٣﴾ وَنَادَيْنٰهُ أَنْ

چه غاړه کېښوده دواړو حکم د الله تعالیٰ ته- او څملولی ئې هغه لره په اړخ د سر باندې- او آواز وکړو موږ هغه ته چه

الجوزیه په اغاثة اللهفان ص ۳۲۸/۲ کښ ثابت کړے ده چه دا په تورات کښ تحریف لفظی د یهودیانو دے په اصل کښ وحیدك اسماعیل وو نو دوی د اسماعیل په ځائے باندے اسحاق اولیکو. ۳ دریم قول دا دے چه ذبیح اسماعیل علیه السلام دے او دا قول د عبد الله بن عمر رض او ابی هریرة رض او علی رض او ابو الطفیل او سعید بن مسیب وغیرهم دے او اکثر مفسرینو محدثینو دا قول صحیح کړځولے دے، (دلیلونه د دے قول) اول دلیل احادیث موقوفه د ابن عباس او د ابن عمر او روایات د مجاهد او د شعبی او محمد بن کعب قرظی او د حسن بصری دی

او ابن کثیر نقل کړے دی په دے روایتونو کښ تصریح ده چه ذبیح اسماعیل علیه السلام دے او یهودیانو ویلے دی چه اسحاق علیه السلام دے لیکن هغوی دروغ وائی. دویم دلیل ابراهیم علیه السلام د دے (ذبیح) ولد په باره کښ دعا کړے وه رب هب لی من الصالحین او اسحاق علیه السلام په غیر د دُعا د هغه نه پیدا شوے دے. دریم دلیل د اسحاق علیه السلام په باره کښ قرآن کریم کښ غلام علیم ویلے شوے دے او دلته غلام حلیم دے معلومه شوه چه دا اسماعیل علیه السلام دے. څلورم دلیل په دے آیاتونو (د سورة صافات) کښ دوه کرته بشارت ذکر دے دویم بشارت کښ تصریح ده په اسحاق علیه السلام باندے نو اول بشارت کښ چه هم دے مراد کړے شی نو تکرار به راشی. پنځم دلیل په اتفاق سره ثابته شویده چه واقعه د ذبح په مکه کښ په منیٰ کښ شویده او هلته کښ مقیم اسماعیل علیه السلام وو سره د مور نه. شپږم دلیل د اسحاق علیه السلام په باره کښ چه بشارت دے نو په هغې کښ ورسره بشارت په یعقوب علیه السّلام سره ذکر دے چه هغه ځوئے د اسحاق علیه السلام دے نو د هغې نه معلومیږی چه اسحاق علیه السّلام به نه مړ کیږی چه څو پورے د هغه ځوئے یعقوب علیه السّلام نه وی پیدا شوے نو ابتلاء په ذبح سره نشی کیدے. اووم دلیل حدیث د انا ابن الذبیحین دے یو ذبیح عبد الله وو پلار د رسول الله صلّی الله علیه وسلّم چه نذر کړے وو خپل پلار عبد المطلب او په باره د ذبح د هغه کښ ئے بیا د هغه په ځائے سل اوښان یا یوکښ ذبح کړو. (پاتے په بل مخ)

يٰٓاِبْرٰهِيْمُ ﴿۱۰۴﴾ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا ۚ اِنَّا

اے ابراهیم یقینًا رشتیے کړو تا خوب لره یقینًا

كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۰۵﴾ اِنَّ

دغه شان بدله ورکوو موږ ښائسته عمل کوونکو ته ـ یقینًا

هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِيْنُ ﴿۱۰۶﴾ وَفَدَيْنٰهُ

دا خامخا ازمائیښت ښکاره دے ـ او بدله ورکړه موږ دغه ته

او دویم ذبیح اسماعیل علیه السّلام دے. ( دا مضمون دَ اغاثة اللهفان نه راغستلے شوے دے ) نو معلومه شوه چه ذبیح اسماعیل علیه السّلام دے او مقابل قول ضعیف دے.

۱۰۳ تا ۱۰۵ :. اَسْلَمَا دواړه حکم دَ الله تعالیٰ ته تابع شول یعنی ابراهیم علیه السلام اسباب دَ ذبح کولو تیار کړل او اسماعیل علیه السّلام مذبوحیت دَپاره تیار شو.
لِلْجَبِيْنِ جبین دَ تندی هر دواړو طرفونو ته ویلے کیږی او جبهه تندی ته ویلے کیږی یعنی په اړخ باندے واچوؤ لکه چه ذبح کولو دَپاره عامه طریقه ده او جزا دَ لَمَّا پټه ده ( فديناه بكبش ) یا ( كان ما كان من حالهما ) "او شول هغه کارونه چه کیدل" او جزاء ئے حذف کړے ده دَ دے وجے نه چه په هغے تفصیل او حقیقت باندے یو الله تعالیٰ عالم دے.
قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا ( سوال ) ذبح ته ده شوے نو څه رنګ خوب رشتینے شو؟ ( جواب ) خوب کښی ئے اذبحك ویلے دی ذبحتُ ئے ته دے ویلے یعنی ذبح کولو ته تیاری کول ئے په خوب کښی لیدلے وه او هغه معلومه شوه اَسْلَمَا سره ـ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ یعنی اخلاص کوونکی په بندګئ دَ الله تعالیٰ کښی دَ هغوی بندګی الله تعالیٰ قبلوی او په هغوی باندے ازمائښتیا راولی.

۱۰۶ :. بلاء په معنیٰ دَ امتحان او ابتلاء دے او دا معنیٰ ظاهره ده یا په معنیٰ دَ نعمت او احسان دے او هذا اشاره ده روستو آیت ته یعنی بدله پکښی سره

بِذِبۡحٍ عَظِيۡمٍ ﴿۱۰۷﴾ وَتَرَكۡنَا عَلَيۡهِ

په حلال شوی لوی - او پریخودلو موږ په هغه باندې

فِى الۡاٰخِرِيۡنَ ﴿۱۰۸﴾ سَلٰمٌ عَلٰٓى اِبۡرٰهِيۡمَ ﴿۱۰۹﴾

په روستنو خلقو کښ - (داچه) سلام دې په ابراهیم علیه السّلام باندې -

كَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ ﴿۱۱۰﴾ اِنَّهٗ

دغه شان بدله ورکوو موږ ښائسته عمل والو ته - یقینًا دے دۀ

مِنۡ عِبَادِنَا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۱۱۱﴾ وَبَشَّرۡنٰهُ بِاِسۡحٰقَ

زموږ د بندګانو مؤمنانو نه - او زیرے ورکړو موږ دۀ ته په اسحاق علیه السّلام سره

نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيۡنَ ﴿۱۱۲﴾ وَبٰرَكۡنَا عَلَيۡهِ

نبی دۀ د نیکانو نه دۀ - او برکتونه واچول موږ په هغه باندې

۱۰۷ :- وفدیناه فدیه ورکول دَیو بندیوان دَخلاصولو دَپاره وی یعنی ابراهیم علیه السّلام ځوئ لره ته پریخودلو لیکن موږ ترینه په فدیه سره خلاص کړو - ذِبح په زیر دَ ذال سره په معنیٰ دَ مذبوح دے او په زور سره مصدر دے - عَظِیۡم یعنی قدر او مرتبه ئې لویه وه ځکه چه دَ لوئې سرې په بدله کښ ئې لوئې سرې لره ورکړو او هغه یوګډ وو چه الله تعالیٰ دَ غیبونه را اولیږلو او ابراهیم علیه السّلام ته امر او شو چه دِے ذبح کړه - دا دلیل دے چه قربانی کول په ګډ سره افضل دی - او بعض مفسرینو ویلی دی چه دا قربانی کول چه سنّت دَ ابراهیم علیه السّلام په ټولو امتونو کښ جاری دے دا ذِبح عظیم ده - او دارنګ دَ دینه عبدالله بن عباس رضی الله عنهما استدلال کړے دے چه چا نذر اوکړو په ذبح دَ ولد سره نو په ذبح کولو دَ ګډ سره دِ نذر پوره کړی لیکن دا هغه وخت چه ذبح کول دَ ولد حلال ته ګڼړی که حلال ګڼړی نو دا نذر دے په ګناه سرۀ هغه خو صحیح نه دے -
۱۰۸ ۱۰۹ ۱۱۰ ۱۱۱ په دے آیاتونو کښ ذکر کړے دے احتیاج دَ ابراهیم علیه السلام الله تعالیٰ ته په سلامتیا او جزا کښ او ذکر دے عبدیت دَ هغۀ دَپاره دَ الله تعالیٰ - نور تفسیر مخکښ تیر شوید ے -
۱۱۲ :- دا دویم بشارت دے معلومه شوه چه اول ( پاتے په بل مخ )

وَ عَلٰی اِسْحٰقَ ؕ وَ مِنْ ذُرِّیَّتِهِمَا مُحْسِنٌ

او په اسحاق علیه السلام باندے او دَ اولاد دَ دواړو نه څوک خائسته عمل والا دی

وَّ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ مُبِیْنٌ ﴿۱۱۳﴾ وَ لَقَدْ مَنَنَّا

او څوک ظلم کوی په خپل ځان باندے ښکاره۔ او یقیناً احسان کړیدے مونږ

عَلٰی مُوْسٰی وَ هٰرُوْنَ ﴿۱۱۴﴾ وَ نَجَّیْنٰهُمَا

په موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام باندے۔ او خلاص کړل مونږ دوی

وَ قَوْمَهُمَا مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِیْمِ ﴿۱۱۵﴾

او قوم دَ دوی دَ غم لوئے نه

وَ نَصَرْنٰهُمْ فَكَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِیْنَ ﴿۱۱۶﴾

او مدد اوکړو مونږ دَ دوی سره نو دوی شول زور اور

بشارت په اسماعیل علیه السّلام سره وؤ۔ مِنَ الصّٰلِحِیْنَ دا صفت روستو دَ نَبِیًّا نه دَپاره دَ تاکین دے په کمال صلاحیت سره په کمال دَ نفس خپل او په تکمیل سره دَ غیر کښ۔

۱۱۳:۔ اشاره ده چه دوی په برکاتو کښ الله تعالیٰ ته محتاج وؤ۔ دَ برکت نه چه روستو عَلٰی راشی نو دلالت کوی چه اثر دَ دے برکاتو په ظاهر کښ هم دے لکه چه په باطن کښ دے او فیه چه راشی نو دلالت کوی په برکاتو باطیتو باندے او دلته برکتِ ظاهریه دا دے چه الله تعالیٰ دے دواړو ته ډیر اولاد ورکړل او پیغمبران ئے دَ دوی په اولاد کښ پیدا کړے دی۔

وَمِنْ ذُرِّیَّتِهِمَا یعنی دَ دوی اولاد دوه ډلے دی مؤحدین او غیر مؤحدین۔ او په دے کښ اشاره ده چه پیدا کیدل دَ پیغمبرانو دَ پلار دَپاره سبب دَ نجات نه دے کله چه هغه ظالم او مشرک وی او دارنګ مشرک او ظالم کیدل دَ اولاد پلار ته نقصان نه رسوی کله چه هغه ځپله صالح وی۔

دَ ۱۱۴ نه تر ۱۲۲ پورے دا دریمه قصه ده په دے کښ ذکر کوی احتیاج دَ موسیٰ او هارون علیهما السّلام په ټولو نعمتونو او کمالاتو کښ الله ته۔ اول احسان دَ نبوت دویم نجات دَ غرق نه دریم نصرت او غلبه څلورم

وَاٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ ﴿١١٧﴾ وَهَدَيْنٰهُمَا

او ورکړو مونږ دوی ته کتاب ښه ښکاره حکمونو والا ۔ او پاخه کړے موږ دوی دواړه

الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿١١٨﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِمَا

په لاره نیغه باندے ۔ او پریخودلے وو مونږ په دے دواړو باندے

فِى الْاٰخِرِيْنَ ﴿١١٩﴾ سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى

په روستو خلقو کښ سلام دے په موسٰی

وَهٰرُوْنَ ﴿١٢٠﴾ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٢١﴾

او هارون علیهما السلام باندے۔ یقینًا دغه شان بدله ورکوو مونږ ښائسته عمل والو ته

اِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٢٢﴾ وَاِنَّ

یقینًا دا دواړه زمونږ دَ بندګانو مؤمنانو نه وو ۔ او یقینًا

اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٢٣﴾ اِذْ قَالَ

الیاس علیه السلام خامخا دَ رسولانو نه وو ۔ کله چه اُویل ئے

لِقَوْمِهٖٓ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٢٤﴾ اَتَدْعُوْنَ

قوم خپل ته ایا نه بچ کیږے دَ شرک نه ۔ ایا رابلئ تاسو په حاجتونو کښ

کتاب الله پنځم هدایت دَ صراط مستقیم شپږم ثناءِ حسن او سلامتیا اووم جزاء دَ احسان او اخلاص او په آخرکښ ذکر دے عبدیتِ خاصه دَ دے دواړو، نو دا دلیل دے چه دوی شفعاءِ شرکیه (آلهه) نشي کیدلے۔
الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ مراد دَ دے نه غرق دے یا غلامی دَ فرعونیانو۔
وَنَصَرْنٰهُمْ ضمیر موسٰی او هارون علیهما السّلام او قوم ته راجع دے۔
الْمُسْتَبِيْنَ چه پوره تورپکښ وی او جامع وی دَ علومو او حکمتونو نه او هغه تورات وو۔ وَهَدَيْنٰهُمَا مراد دَ دے نه سنت دَ دے دواړو دے چه هغه شرحه وه دَ تورات دَ پاره۔
دَ ۱۲۳ نه تر ۱۳۲ پورے دا څلورمه قصه ده۔ په دے کښ ذکر کوی عبدیت دَ الیاس علیه السلام په طریقه دَ دعوت کولو دَ هغهٔ توحید ته او رد کول په شرک باندے او بیا ذکر کوی (پاتے په بل مخ)

بَعْلًا وَّ تَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ ﴿۱۲۵﴾

بعل لره او پرېږدئ تاسو ښائسته د شکل جوړوونکو نه

اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۲۶﴾

چه الله دے رب ستاسو او رب د مشرانو ستاسو پخوانو دے۔

فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾ اِلَّا

نو دروغژن ئې اوبلل هغه ته نو يقيناً دوی به خامخا حاضر کړيشي په عذاب کښ مګر

عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ

بندګان د الله تعالیٰ بچ ساتلے شوی۔ او پرېخودو موږ په دهٔ باندے

فِی الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۲۹﴾ سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلْ يَاسِيْنَ ﴿۱۳۰﴾

په روستو خلقو کښ سلام دے په الياسين عليه السّلام باندے۔

فائده: الله تعالیٰ د ے رسول نا دا عليه

احتياج د دهٔ الله تعالیٰ ته په ثناءِ حسن او سلامتيا کښ او اخر کښ ذکر کوی عبديتِ خاصه ددهٔ۔ وَاِنَّ اِلْيَاسَ اتفاق دے د مفسرينو چه دا رسول وؤ په بنی اسرائيلو کښ هرکله چه هغوی په شرک کښ اخته شول او د عکرمه او ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دے چه د دهٔ نوم ادريس وؤ نو کيدے شی چه الياس ئې لقب وی او ادريس ئې عَلَم وی يا په عکس سره او د دهٔ په باره کښ چه کوم حديث قرطبی او نورو ذکر کړے دے چه هغه ژوندے دے او د رسول الله صلّی الله عليه وسلّم ورسره ملاقات شوے نو سيوطی د امام ذهبی نه نقل کړے دی چه دا حديث موضوعی دے دارنګ حديث د ژوند د خِضر او د الياس عليهما السلام صوفياؤ بے سنده ذکر کړے دی او هرکله چه دهٔ د شرک ښکاره مقابله کړے وه نو د دے وجه نه ئې وصف د لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ذکر کړو۔ اَلَا تَتَّقُوْنَ مراد د تقویٰ نه د شرک نه بچ کيدل دی۔ اَتَدْعُوْنَ دا تفسير د عدم تقویٰ دے۔ بَعْلًا مفسرينو ليکلی دی چه بعل بُت (شکل) د سخٔ وؤ د سرو زرو نه ئې جوړ کړے وؤ او شل ذِ راعه اوګد وؤ او د هغ څلور سوه منجوران خدمتګاران وو او شيطان به کله کله په هغه بُت کښ د ننه داخل شو او د دوی سره به ئې د ګمراهئ خبرے کولے۔ او بَكٌ د هغه ځائے

إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿١٣١﴾

يقيناً دغه شان بدله ورکوو موږ خايسته عمل والو ته -

إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٣٢﴾ وَإِنَّ

يقيناً دے زموږ دَ بندګانو مؤمنانو نه وو- او يقيناً

لُوطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٣٣﴾ إِذْ نَجَّيْنَاهُ

لوط علیه السلام وو خامخا دَ رسولانو نه . کله چه خلاصے ورکړو موږ ده له

وَأَهْلَهُ أَجْمَعِينَ ﴿١٣٤﴾ إِلَّا عَجُوزًا

او کورنئ دَ ده ټولو لره مګر بوډے وه

بادشاه وو او دَ خپل ښار توم ئے بعلبک کیخودلے وو-
وَتَذَرُونَ أَحْسَنَ الْخَالِقِينَ وذر په هغه ځائے کښ استعماليږی چه روستو دَ تعلق نه ئے پريږدی نو هر مشرک دَ الله تعالیٰ سره ، سرهٔ دَ تعلق ساتلو نه شرک کوی . الْخَالِقِينَ خلق په معنیٰ دَ تصوير دے لکه چه سورة مؤمنون ١٤ کښ هم ذکر شويدی . لَمُحْضَرُونَ مطلق احضار دَ عذاب په ځائے کښ استعماليږی . إِلْيَاسِينَ غوره داده چه مراد په دے سره الياس دے ليکن عرب په اسماءِ عجميه کښ ډير تصرفات کوی چه په هغے سره مقصد ته نقصان نه رسيږی . إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ صحيح داده چه دا استثناء ده دَ ضمير دَ كَذَّبُوهُ نه.
دَ ١٣٣ نه تر ١٣٨ پورے . دا پنځمه قصه ده په دے کښ احتياج دَ لوط علیه السلام ذکر کوی په خپل نجات کښ او دَ اهل په نجات کښ او په هلاکت دَ قوم کښ سرهٔ دَ زجر او تخويف نه منکر بيتو ته -
مُّصْبِحِينَ وَبِاللَّيْلِ په دے کښ خطاب دے اهلِ مکه ته چه هر کله به دوی شام ته تلل په سفر دَ تجارت سره نو چه دَ مکے نه به ماښام روان شول نو صبائی وخت کښ به کلو دَ قوم لوط علیه السلام ته اورسيدل او که صبا وخت به ئے سفر شورو کړو نو دَ شپے وخت کښ به هلته اورسيدل . او مصبحين ئے په صيغه دَ اسم سره ذکر کړو اشاره ده چه اوله طريقه دَ سفر چه دَ شپے سفر دے دا به ډيره وه په نسبت دَ سفر دَ ورځے ځکه قافلے اکثر دَ شپے سفر کوی - ( پاتے په بل مخ)

فِى الْغٰبِرِيْنَ ﴿۱۳۵﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿۱۳۶﴾

په پاتے کیدونکو کښ . بیا تباه کړل مونږ نور خلق .

وَاِنَّكُمْ لَتَمُرُّوْنَ عَلَيْهِمْ مُّصْبِحِيْنَ ﴿۱۳۷﴾

او یقیناً تاسو ورتیریږئ په دوی باندے د صبا په وخت کښ

وَبِالَّيْلِ ۚ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ وَاِنَّ

او د شپے ایا نو د عقل نه کار نه اخلئ تاسو . او یقیناً

يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۳۹﴾ اِذْ اَبَقَ

یونس علیه السّلام خامخا د رسولانو نه وو . کله چه لاړ (بے اجازته)

اِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿۱۴۰﴾ فَسَاهَمَ

ډکے کړے شوے نه کشتۍ نو خسنړے اوکړو

**فائده:-** په دے واقعه د لوط علیه السّلام کښ (سلام) او (انه من عبادنا) ئے نه دے ذکر کړے اشاره ده چه نوح او ابراهیم او موسٰی او الیاس علیهم السّلام هغه انبیاء وو چه د هغوی د قتل کولو اراده قومونو کړے وه لیکن د الله تعالیٰ د طرف نه هغوی ته سلامتیا او حفاظت ورکړے شوے وو او د لوط علیه السّلام د قتل کولو د اراده ذکر نه دے کړے شوے. او دارنګ تیر شوے انبیاء علیهم السّلام هغه وو چه په دعوت الی التوحید کښ ډیر تکالیف ئے برداشت کړے وو او روستو د وفات کیدلو د هغوی نه بعض خلقو د هغوی د الوهیت عقیدے ساتلے وے او د لوط علیه السّلام حال داسے نه وو د دے وج نه دلته ئے (انه من عبادنا) ذکر نه کړو او نورو سره ئے ذکر کړے وو (والله اعلم بالصواب).

د ۱۳۹ نه ۱۴۸ پورے دا شپږمه قصّه ده او په دے کښ ذکر کوی تفصیلی حال د یونس علیه السّلام په بیان د عبدیت د هغهٔ په پنځه طریقو سره. رسول وو. بے اجازته تلے وو. خسنړئ اچولو کښ پړ شو. مهی (کب) تیر کړو. تسبیح ئے ویله. او احتیاج د دهٔ ئے ذکر کړے دے په څلورو طریقو سره. راویستل د خیټے د مهی نه. او نه د هغه د

فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ ﴿١٤١﴾ فَالْتَقَمَهُ

نو شو د پړ شوؤ نه . نو تیر کړه دهٔ لره

الْحُوْتُ وَهُوَ مُلِيْمٌ ﴿١٤٢﴾ فَلَوْلَآ اَنَّهٗ كَانَ

مهی او دے وؤ ځان ملامته کوؤنکے . نو که چرے نه وے دے

مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ ﴿١٤٣﴾ لَلَبِثَ فِيْ بَطْنِهٖٓ

د تسبیح ویونکو نه نو حصار شوے به وؤ په خیټه د مهی کښ

اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿١٤٤﴾ ج النصف فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَآءِ

تر ورځ د دوباره ژوند پورے . نو اوغورځوؤ مونږ دهٔ لره په ډاګه بانډے

وَهُوَ سَقِيْمٌ ﴿١٤٥﴾ وَاَنْۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً

او دے ناجوړه وؤ . او را اوټوکوله مونږ په دهٔ بانډے اُوته

مِّنْ يَّقْطِيْنٍ ﴿١٤٦﴾ وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ

د قِسم د کدُو نه . او اولیږلو مونږ دے یو لاکھ

النصف

ډپاسه زرغونه ول بیا لیږل په رسالت سره ، متاع وَرکول . نو دا ټول دلیلونه دی چه یونس علیه السلام د الله تعالیٰ سره شریک نه شی کیدے او نه شفیع قهری کیدے شی . اَبَقَ بغیر د اجازت د مولیٰ نه تللو ته اباق ویلے کیږی . دے هم هرکله چه نا امیده شو د ایمان د قوم نه او وخت د عذاب د ھغوی هم نزدے شو نو اجتهاد ئے اوکړو چه پیغمبران خو د قوم د عذاب په وخت کښ د هغه کلی نه اوځی نو دِے د دے وج نه د هغه کلی نه بهر لاړو او د الله تعالیٰ د خاص حکم انتظار ئے اونکړو نو یو کشتئ کښ سور شو چه په هغ کښ سورلے ډیرے وے هرکله چه کشتئ د دریاب مینځ ته اورسیدله نو ډیر دروندوالی د وج نه غرقیدلو ته نزدے شوه نو کشتئ والو فیصله اوکړله چه د دے نه یوه سورلی کمه ول ضروری دی چه کشتئ سپکه شی نو د دریاب په مینځ کښ د کشتئ نه غورځولو ته هیڅوک تیار نه وو نو دوی اتفاق اوکړو چه قرعه اندازی به اوکړو چه د چا قرعه راوځی نو هغه به مجبورًا د کشتئ نه اوغورځوو نو قرعه د یونس علیه السّلام راوتله دا مطلب دے د دے قول فساهم فکان من المدحضین . (پاتے په بل مخ)

أَلۡفٍ أَوۡ يَزِيدُونَ ﴿١٤٧﴾ فَـَٔامَنُواْ فَمَتَّعۡنَٰهُمۡ

خلقو ته بلکه زیاتیدل - نو ایمان راوړو هغوی نو مزے ورکړے مونږ هغوی ته

إِلَىٰ حِينٖ ﴿١٤٨﴾ فَٱسۡتَفۡتِهِمۡ أَلِرَبِّكَ ٱلۡبَنَاتُ

تر یو وخت پورے - پس ته تپوس اوکړه د دوی نه آیا ستا رب لره لونړه دی

فائده :- قرعه کول په هغه حالت کښ شرعًا جائز دی چه د هر سړی حق هغه ته اورسیږی لیکن د ړوانړو والی او روستو والی د پاره یا د معمولی فرق د وجے نه د پاره د تطیب قلب قرعه اوکړے شی او هیڅوک د خپل حق نه محروم نشی نو دا جائز ده هم دا رنګ چه څو واجبه د هیچا نۀ وی لیکن د انعام او د احسان په طور سره په ډیرو کسانو کښ یو شخص له انعام ورکوی نو د هغه تعیین اوکړیشی په قرعه کولو سره. او مفسر قرطبی لیکلے دی چه د نبی صلّی الله علیه وسلّم نه درے مواضعو کښ قرعه کول ثابت دی. ۱ په حال د سفر کښ د بیبیانو په مینځ کښ قرعه کول چه کوم یوه څان سره بوځی. ۲ یو شخص وو شپږ مریان ئے آزاد کړے وو او نور مال ئے نوو نو نبی صلّی الله علیه وسلّم د ثلث د پاره قرعه اوکړه یعنی دوه ئے د هغے نه آزاد کړل ۳ په تقسیم د میراث کښ - او هر چه واقعه د یونس علیه السلام ده نو دا مختص وو په هغه وخت پورے او په هغے کښ د الله تعالیٰ ډیر حکمتونه وو او س زمانه کښ که داسے واقعه راشی نو نه دی جائز چه یو تن لره د دریاب تر او غورځولے شی بلکه صبر به کوی په قضا د الله تعالیٰ باندے او الله تعالیٰ ته به التجاء کوی.

مُلِيمٌ ځان لره ملامته کوونکے وو په اقرار کولو سره چه انی کنت من الظالمین. الْمُسَبِّحِينَ مراد دا دے چه دے د مخکښ وخت نه ډیر ذکر کوونکے وو نو دا مصداق دے چه اذکروا الله فی الرخاء یذکرکم فی الشدة ریادوئ الله تعالیٰ لره په حالت د فراخ کښ نو الله تعالیٰ به یاد کړی تاسو په سختئ کښ) یا مراد دا دے چه د مهی په خیټه کښ لا اله الا انت سبحانك ذکر ئے کولو - او په دے کښ ترغیب دے د ذکر کولو د الله تعالیٰ نه په کثرت سره په هر حالت کښ او په سبب د هغے سره مصیبتونه دفع کیږی. فَنَبَذۡنَٰهُ وَهُوَ سَقِيمٞ یعنی مهی ته الله تعالیٰ حکم اوکړو نو هغه د دریاب په غاړه باندے او غورځولو. الْعَرَآءِ میدان.

وَلَهُمُ الْبَنُوْنَ ﴿۱۴۹﴾ اَمْ خَلَقْنَا الْمَلٰٓئِكَةَ

او دوی لره ځامن دي ايا پيدا كړيدي مونږ ملائك

خالي مكان او غاړې دَ درياب ته ويلے كيږي. سَقِيْمٌ چه بدن ئې بيمار وي لكه بچي چه دَ مور نه پيدا شي او بدن ئې كچه وي. (سوال) سورة قلم ۴۹ كښ دي (ولا ان تداركه نعمة من ربه لنبذ بالعراء وهو مذموم) دَ دے دواړو ايا تونو په مينځ كښ په ظاهر كښ تعارض دے جواب دادے چه دَ سورة قلم مطلب دادے چه دَ مذموم حالت نه بچ او ساتلے شو او دَ دے ايت مطلب دادے چه په غاړه باندے ئې او غورځوؤ صرف بيمار وؤ ليكن مذموم او بدحاله نه وؤ بلكه الله تعالىٰ دَ هغهٔ حفاظت اوكړو شجره (اوته) ئې دَ هغه په خوا كښ پيدا كړه دَ هغې په پاڼړو سره ئې په هغهٔ باندے سورے اوكړو او دَ هغې دَ وَج نه دَ دهٔ بدن ته مچان هم نشو نزدے كيدلے او مشهوره داده چه اوته (ربوټے) دَ يَقْطِيْنٍ وؤ يعني كدو. وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ په دے كښ مقصد دوباره واپس راليږل دي خپل قوم ته. اګر چه دے دَ مخكښ نه هم رسول وؤ او كوم روايت چه بعض مفسرينو نقل كړے چه دے دَ كب دَ خيټے دَ راوتلو نه روستو رسول كړے شو دا روايت ضعيف دے په هغې كښ شهر بن حوشب راوي دے او هغه متروك او ضعيف دے. اَوْ يَزِيْدُوْنَ اَوْ په معنىٰ دَ بَلْ سره دے يعني دَ دے نه روستو الله تعالىٰ هغه قوم وخت په وخت زياتي كول او بركات ئې پكښ واچوؤل. فَاٰمَنُوْا (سوال) سورة يونس ۹۸ كښ تير شويدي چه دوی ايمان راوړو په وخت دَ ليدلو دَ علاماتو دَ عذاب كښ او دلته نه معلومه شوه چه روستو ئې ايمان راوړو ؟ جواب دادے چه دلته مراد دے چه يونس عليه السّلام واپس راغے نو دوی تفصيلي ايمان راوړو او مخكښ ئې صرف اجمالي ايمان راوړے وؤ.

دَ ۱۴۹ نه تر ۱۸۲ پورے دَ دے نه دريم باب دے تر آخر دَ سورت پورے. په دے كښ رد دے په مشركين بالملائكه باندے او مشركين بالجن باندے. بيا بيان دَ ملائكو دے په طريقه دَ رد په عابدانو دَ دوی باندے او زجر دے منكرينو ته او بشارت دے او تسلّي ده رسول الله صلّى الله عليه وسلّم ته سرهٔ دَ تخويف دَ منكرينو نه او په آخر كښ دعوىٰ دَ توحيد ده او دعوىٰ دَ سورت ده (پاتے په بل مخ)

إِنَاثًا وَّهُمْ شٰهِدُوْنَ ﴿۱۵۰﴾ أَلَآ إِنَّهُمْ مِّنْ

زنانه او دوی حاضر وو - خبر شئ یقیناً دوی د وجه د

إِفْكِهِمْ لَيَقُوْلُوْنَ ﴿۱۵۱﴾ وَلَدَ اللّٰهُ

دروغو د دوی نه خامخا وائی ولدنیولے دے الله تعالیٰ

وَإِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱۵۲﴾ أَصْطَفَى الْبَنَاتِ

او یقیناً دوی خامخا دروغژن دی - ایا غوره کړے دی الله تعالیٰ لونړه

عَلَى الْبَنِيْنَ ﴿۱۵۳﴾ مَا لَكُمْ قف كَيْفَ

په ځامنو باندے څه دلیل دے ستاسو څه رنګ

تَحْكُمُوْنَ ﴿۱۵۴﴾ أَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۱۵۵﴾ أَمْ لَكُمْ

فیصلے کوئے تاسو - ایا نو تاسو نصیحت نه اخلئ یا تاسو لره شته

سُلْطٰنٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۵۶﴾ فَأْتُوْا بِكِتٰبِكُمْ

دلیل ښکاره نو راوړئ کتاب ستاسو

إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۵۷﴾ وَجَعَلُوْا بَيْنَهٗ

که چرے تاسو رشتینی یئ - او جوړ کړے دے دوی په مینځ د الله تعالیٰ

په ذکر د احتیاج د رسول نو الله تعالیٰ ته په سلامتیا کښ۔ دا رسلم ۱۴۹ متعلق دے د ابتدا د سورت سره او رد دے د مشرکین بالملائکه په درے عقیدو باندے اول تقسیم چه الله تعالیٰ لره بنات (لونړه) ثابتوی او د ځان د پاره ځامن. دویم ملائکو ته مؤنث وائی. دریم ملائک د الله تعالیٰ لونړه ګنړی یعنی هغه لره ولد ثابتوی۔ وَهُمْ شٰهِدُوْنَ یعنی ذکورة او انوثة د مشاهدے سره تعلق لری نو دوی خو د هغوی پیدا ایښ نه دے لیدلے دا رنګ سورة زخرف ۱۹ کښ راځي۔ مِنْ إِفْكِهِمْ یعنی دا دواړه تیرے شوے عقیدے د دوی خو د حقیقت نه بالکل مخالف دی او دغه سبب دے د پاره د دریم قول چه (ولد الله) او په دے قول کښ هم کاذب دی او د کاذب په قول باندے اعتبار نشی کیدلے.
مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ دا مطالبه د دلیل عقلی ده د دوی نه یعنی عقل خو دا

وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا ۚ وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ

او د پیریانو کښی نسب او یقیناً پوهیږی پیریان

إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ ﴿۱۵۸﴾ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا

چه دوی په خامخا حاضر کړے شی په عذاب کښی پاک دے الله تعالیٰ د هغے نه چه دوی

يَصِفُونَ ﴿۱۵۹﴾ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿۱۶۰﴾

بیانوی. مگر بندګان د الله تعالیٰ چه بیچ ساتلے شویدی.

نه منی چه الله تعالیٰ چه افضل نوع (نارینه اولاد) پریږدی او لوئره د غوره کوی دا فیصله بے دلیله ده. اَمْ لَكُمْ سُلْطٰنٌ مُّبِيْنٌ په دے کښی طلب د دلیل نقلی دے د تیرشوو انبیاء علیهم السّلام نه فَاْتُوْا بِكِتٰبِكُمْ په دے کښی مطالبه د دلیل وحی ده ځکه چه مراد د کتاب نه کتاب د الله تعالیٰ دے.

۱۵۸ تا ۱۵۹ تا ۱۶۰ :- په دے ایاتونو کښی رد دے په مشرکین بالجن باندے یعنی هغه خلق چه جنّات ئے د الله تعالیٰ سره شریکان گنړلی دی په صفاتو د علم غیب او بناهی ورکولو کښی او په عبادت کولو کښی لکه چه سورة سبا او سورة جن کښی معلومیږی او بعض مفسرینو ویلے دی چه دا رد دے په مجوسیانو باندے چه هغوی ویلے دی چه الله تعالیٰ او شیطان (ابلیس) دواړه رونړه دی یو خاوند د خیر دے او بل خاوند د شر دے نو د نَسَبًا نه مراد په اوله توجیه باندے نسبت د شرکت دے او دا قول د حسن بصری نه نقل دے او په دویمه توجیه باندے اخوت (رورولی) مراد دے. اِنَّهُمْ ضمیر راجع دے جنّاتو ته ځکه چه هغه جنات چه دوی د الله تعالیٰ سره شریک جوړول گمراهان او مفسدان وو یا ضمیر راجع دے مشرکانو ته. عَمَّا يَصِفُوْنَ مراد وصف نه نسبت د ولد او شریک دے الله تعالیٰ ته او الله تعالیٰ د دے نه پاک دے. اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ په دے استثناء کښی درے وجوه دی اوله وجه دا چه استثناء ده د ضمیر د جعلوا نه دویمه دا چه استثناء ده د یصفون نه دریمه دا چه استثناء ده د لمحضرون نه او په مینځ کښی جمله معترضه ده او ظاهر دا ده چه استثناء په ټولو حالاتو کښی متصله ده.

فَاِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۶۱﴾ مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ

نو یقینًا تاسو او هغه کسان چه تاسو بندګی کوئے دَ هغوی ـ نه یئے تاسو په هغے باندے

بِفٰتِنِيْنَ ﴿۱۶۲﴾ اِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيْمِ ﴿۱۶۳﴾

ګمراه کوُونکی چالره مګر هغه چالره چه هغه داخلیدونکے وی اُور ته.

وَمَا مِنَّآ اِلَّا لَهٗ مَقَامٌ مَّعْلُوْمٌ ﴿۱۶۴﴾ وَّ

او نیشته زمونږ نه هیڅوک مګر هغه دَپاره ځائے معلوم دے.. او

اِنَّا لَنَحْنُ الصَّآفُّوْنَ ﴿۱۶۵﴾ وَاِنَّا لَنَحْنُ

یقینًا مونږ خامخا صفونه جوړ وو. او یقینًا مونږ

۱۶۱ تا ۱۶۲ تا ۱۶۳ :۔ دا تقریع ده په ماقبل باندے یعنی هرکله چه ملائک او انبیاء علیهم السّلام او جنات عاجز او محتاج مخلوق دے نو دوی او تاسو هیچا لره نه شے ګمراه کولے یعنی عقل والا یو هیړی چه دا عاجز مخلوق دَ الله تعالیٰ شریک نشی کیدے لیکن هغه څوک چه الله تعالیٰ دَ هغه دَپاره جحیم مقرر کړے وی نو هغه به ګمراه او مشرک شی. او دَ دے ایاتونو نه معلومه شوه چه هدایت او ضلال په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دے. او دا رد دے په منکرینو دَ تقدیر باندے او مفسر قرطبی دَ دے ایت په تفسیر کښ روایت دَ عمر بن عبد العزیز رحمة الله نقل کړے دے. عَلَيْهِ ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته یعنی په مقابله دَ الله تعالیٰ کښ یا راجع دے ماتعبدون ته او علیٰ په معنیٰ دَ با سره دے.

۱۶۴ تا ۱۶۵ تا ۱۶۶ :۔ دا دلیل نقلی دے دَ ملائکو نه یعنی ستاسو معبودان دَ ګمراه کولو نه عاجز دی ځکه چه هغوی بذاتِ خود الله تعالی ته عاجزی کوی او دلته عبارت کښ تقدیر دے یعنی تقول الملائکة او دا رد دے په مشرکین بالملائکه باندے پشان دَ ابتداءِ دَ سورت او بعض مفسرینو دا قول دَ نبی صلی الله علیه وسلّم ګرځولے دے پس دا علت دَ ماقبل دے یعنی تاسو مونږه نشئے ګمراه کولے ځکه چه مونږ په توحید باندے مضبوط یو. مَقَامٌ مَّعْلُوْمٌ حدیث دَ ترمذی نه ثابت ده چه په اسمانونو کښ دَ سپیک او دَ لیشت ځائے هم خالی نیشته بلکه په هغے باندے ملک ولاړ دے یا سجده کوُونکے دے

الْمُسَبِّحُوْنَ ﴿۱۶۶﴾ وَاِنْ كَانُوْا لَيَقُوْلُوْنَ ﴿۱۶۷﴾

تسبیح ویونکی یو۔ او وُ دوی خامخا ویئیل به یې۔

لَوْ اَنَّ عِنْدَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۶۸﴾

که چرې وې زموږ سره یاد داشت دَ مخکنو

لَكُنَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۶۹﴾ فَكَفَرُوْا بِهٖ

خامخا وې به موږ بندګان دَ الله تعالیٰ بچ ساتلې شوی دَ ګناه نه۔ نو انکار اوکړو دوی دَ هغه ذکر

فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۷۰﴾ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا

نو زر ده چه دوی به پوهه شي۔ او یقینًا مخکښ شویده وعده زموږ

اوبیا ئې طریقه دَ قیام ذکر کړه یعنی په صفونو باندې ولاړ دی اوحدیث صحیح سره ثابت دی چه زموږ صفونه په مونځ کولو کښ پشان دَ صفونو دَ ملائکو دی اولنی صفونه پوره کول دی نو بیا وروسته صفونه جوړول او دَ یو بل سره جوخت پیوستا اودریدل، او بیا ئې دَ حالت دَ قیام او سجدې ذکر راوړو چه هغه تسبیح ده۔ حدیث کښ ذکر ده چه ملائک تسبیح وائي سبوحٌ قدوس۔ نو معلومه شوه چه ملائک عابدان او عاجزی کوونکې دی نو هغوی معبودان او شفعاء قهریه نشی کیدلې۔

۱۶۷ تا ۱۶۸، ۱۶۹ تا ۱۷۰:۔ دا زجر دې مشرکینو ته روستو دَ اثبات دَ حجت نه په هغوی باندې۔ ذِكْرًا مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ مراد دَدې نه واقعات او قِصّې دَ تیر شوو انبیاء علیهم السّلام دی لکه چه په دې سورة کښ ذکر شول نو دَدوی تمنّا پوره شوه بیا هم ایمان نه راوړی یا مراد دَ ذکر نه کتاب دې دَ جنس دَ کتابونو مخکنو نه یعنی نازل کړې شوې کتاب دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه، او دوی ته هغه کتاب راغې چه قرآن کریم دې لیکن دوی پرې کفر اوکړو نو دَ عذاب انتظار دې اوکړی۔

لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ ﴿۱۷۱﴾ إِنَّهُمْ لَهُمُ

دَ بندګانو زموږ سره چه رسولان دی ۔ یقیناً خاځا دوی

الْمَنصُورُونَ ﴿۱۷۲﴾ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ

سره په مدد کیدے شی ۔ او یقیناً لښکرے زموږ خاځا دوی په

الْغَالِبُونَ ﴿۱۷۳﴾ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّىٰ

غالب دی ۔ نو مخ واړوه دَ دوی نه تر یو

۱۷۱ تا ۱۷۳:۔ دَ زجر او تخویف دَ منکرینو نه روستو بشارت دنیویه دے رسولانو او مؤمنانو ته او دا سے ذکر دے په سورة غافر ۵۱ او سورة مجادله ۲۱ کښې۔ نصرت، په پیښ اتش دَ اسبابو او په نصرت غیبیه سره او دنیوی او اخروی دواړو ته شامل دے دارنګ غلبه پس دَ نصرت نه نتیجه غلبه ده ظاهری او دنیوی غلبه یا په حجت سره یا اخروی غلبه دے ټولو ته شامل ده۔

سوال :۔ په قرآن کریم کښې لس ایاتو کښې دَ قتل دَ انبیاؤ ذکر په طریقه دَ اخبار سره موجود دے نو دا خو دَ نصرت او دَ غلبے سره منافی ده؟۔ جواب :۔ دَ دے په ډیرو وجوهو سره دے اول۔ خطیب شربینی او نورو مفسرینو ذکر کړے دی "چه نصرت او غلبه کله کله په حجت سره وی او کله کله په دولت او استیلاء سره وی او کله کله په دوام او ثبات دَ دین سره وی پس مؤمن اګرچه مغلوب وی په بعض اوقاتو کښې په سبب دَ ضعف دَ احوالو دَ دنیا خو دے به غالب وی په آخرت کښې نو حکم په اعتبار دَ اغلب سره دے نو دا منافی نه دے دَ قتل دَ بعض انبیاؤ او دَ هزیمت دَ ډیرو مؤمنانو سره" (ترجمه عبارت سراج المنیر)!

دویم جواب دا دے چه دا وعده دَ رسولانو دَ اصحابو دَ شرائعو سره ده او قتل دَ انبیاء یعنی غیر اصحاب الشرائع ثابت دے او دا قول دَ حسن بصری نه قرطبی نقل کړے دے او دَ دے وجه نه دَ نصرت په ایاتو کښې لفظ دَ رسولانو ذکر دے او دَ قتل په ایاتو کښې صفت دَ نبوت ذکر دے او دا غوره جواب دے!

دریم جواب دا دے چه وعده دَ نصرت او غلبے خو دَ مؤمنانو سره هم

حِيۡنٍ ﴿۱۷۴﴾ وَّاَبۡصِرۡهُمۡ فَسَوۡفَ يُبۡصِرُوۡنَ ﴿۱۷۵﴾

وخت پورې او گوره دوى ته زر دے دوى به هم اوگورى۔

اَفَبِعَذَابِنَا يَسۡتَعۡجِلُوۡنَ ﴿۱۷۶﴾ فَاِذَا نَزَلَ

آيا عذاب زمونږ په تادئ سره غواړئ۔ نو كله چه راكوزشى

بِسَاحَتِهِمۡ فَسَآءَ صَبَاحُ الۡمُنۡذَرِيۡنَ ﴿۱۷۷﴾

دَدوى په ميدانونو باندے نو بد دے صبا دَ ويره ولو شو خلقو۔

شويدلاه اوحال دادے چه دَ مؤمنانو دَ قتل او هزيمت نه خوانكاركول جهل دے نو دَ هغې چه څنګه تطبيق اوجواب دے نو هغه په باره دَ پيغمبرانو كښې هم دے۔ اوځوک چه دَ دے آياتونو دَ نصرت په ېناه دَ پيغمبرانو دَ قتل نه مطلقا انكاركوى او دَ قتل دَ آياتونو تاويلونه كوى نو دا تحريف معنوى سره مشابهت دے قرآن دَ داسے بعيں تاويلونو نه برئ دے اوحديث هم په دے باب كښې صريح دے راشد الناس عذابا يوم القيامة من قتل نبيًا اوقتله نبى (نهايه ابن اثير ص۱۳)۔

۱۷۴ تا ۱۷۵ :- روستو دَ بشارت نه دا تسلّى ده۔ حِيۡنٍ دَ دے نه مراد يو وخت مقرر دے په علم دَ الله تعالىٰ كښې كه فتح مكه وى اوكه غزوه بدر يا نور عذابونه دَ دُنيا۔ اَبۡصِرۡهُمۡ په معنىٰ دَ انتظار دے فَسَوۡفَ دادَ وعيں دَ پاره دے تبعيں دَ پاره نه دے۔

۱۷۶ تا ۱۷۷ :- هركله چه دَ عذاب ذكر اوشو نو منكرينو استهزاء شورو كړه چه عذاب دِ زرراشى نوپه هغې باندے زجر دے او تخويف دے۔ بِسَاحَتِهِمۡ ساحة په اصل كښې صحن دَ كورته وائي مراد ترينه عذاب راتلل دئ ناسا په په داسے طريقه سره چه دَ خلاصئ روتر نه موهى۔ صَبَاحُ اكثر عذابونه دَ الله تعالىٰ په وخت دَ صبا كښې راغلى دى چه په دغه مبارک وخت كښې دا منكرين غافل وى۔ او حديث كښې وارد دى چه نبى صلّى الله عليه وسلّم به كله په يو قوم باندے دَ شپے راغے نو انتظار دَ صبا به ئے كوؤ نو هركله چه په خيبر والو دَ شپے راغے او صبا ئے كړو نو رسول الله صلّى الله عليه وسلّم اوفرمائيل" الله اكبر خربت خيبر انا اذا نزلنا بساحة قوم فساء صباح المنذرين"۔

وَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۱۷۸﴾ وَّاَبْصِرْ

او مخ ترینه واړوه تر یو وخت پورې او ګوره

فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷۹﴾ سُبْحٰنَ رَبِّكَ

زر دے دوی به هم اوګوری - پاکی ده رب ستا لره

رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۱۸۰﴾ وَسَلٰمٌ عَلَى

چه رب دَ عزت دے دَ هغه نه چه دوی بیانوی. او سلام دے (دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه) په

الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۸۱﴾ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۸۲﴾

رسولانو باندے - او صفتونه دَ خدائے دی الله تعالیٰ لره چه رب دَ عالمینو دے -

ف ۱۷۸ ف ۱۷۹ :- په دے کښ هم تسلّی ده لیکن اول کښ دَ حِيْنٍ نه مراد عذاب دَ دنیا وو او دلته عذاب اخروی مراد دے نو تکرار نیشته -

**فائده** :- اول ئے اَبْصِرْهُمْ ذکر کړے وو او دلته ئے بغیر دَ ضمیر نه ذکر کړو اشاره ده چه دَ دنیا عذاب په بعض خاصو خلقو باندے او دَ قیامت عذاب په ټولو منکریتو باندے راځی نو تخصیص ته حاجت نیشته -

ف ۱۸۰ ف ۱۸۱ ف ۱۸۲ :- دا تفریع ده په کل سورت باندے او دعویٰ دَ توحید ده یعنی هر کله چه دَ ملائکو او دَ انبیاء علیهم السّلام او دَ جناتو عجز او احتیاج ثابت شو نو معلومه شوه چه دوی دَ الله تعالیٰ سره شریک نشی کیدے او شفعاء قهریه هم نشی کیدے دا مراد دے دَ تسبیح نه -

رَبِّكَ کښ اشاره ده کمالِ رحمت دَ الله تعالیٰ ته په بندګانو صالحانو باندے.

رَبِّ الْعِزَّةِ اشاره ده کمال قدرت او غلبے دَ الله تعالیٰ ته -

سوال :- عزت دَ صفاتو دَ ذات نه دے لکه قدرت نو دَ رَبِّ اضافت هغه ته نه صحیح کیږی لکه رب القدرة صحیح نه دے ؟

جواب اول ، چه رب په معنیٰ دَ مالك متصف دے یعنی موصوف دے په عزت سره !

جواب دویم دا دے چه عزة کله صفت دَ ذات وی لکه فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعًا او کله صفت دَ فعل وی دلته دویمه معنیٰ مراد ده یعنی عزتمند کیدل دَ بندګانو په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دی لکه چه په دے

سورت کښې عزت د ملائکو او د انبیاء علیهم السّلام ذکر شو تو دا په اختیار د الله تعالیٰ کښې دے. وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ دا دعویٰ د سورت ده یعنی د انبیاء علیهم السّلام کمال دا دے چه هغوی له سلامتیا د عذاب د دُنیا او د آخرت نه الله تعالیٰ ورکوی. په عبارت کښې تقدیر دے سلام من الله تعالیٰ علی المرسلین.

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ دا هم دعویٰ د توحید ده اشاره ده چه هلاکت د کافرانو او نصرت د پیغمبرانو چه په دے سورت کښې ذکر شو په دے باندے د الله تعالیٰ حمد دے او دا نعمتونه دی د الله تعالیٰ د طرف نه.

معالم التنزیل کښې د علی رضی الله تعالیٰ عنه نه مرفوعًا نقل کړے دی چه څوک خوشحالیږی په دے خبره باندے چه الله تعالیٰ هغه ته په پوره پیمانه باندے د قیامت په ورځ کښې ثواب ورکړی نو د مجلس په اختتام کښې دِ دا درے آیاتونه اولولی او قرطبی د موځ په اختتام کښې روایت مرفوعه نقل کړیدے.

(تفسیر د سورة صافات ختم شو په توفیق د الله تعالیٰ سره)

| رکوعاتها ۵ | آیاتها ۸۸ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سورة صٓ ۳۸ مکیة ۳۸ |
|---|---|---|---|

صٓ وَالْقُرْاٰنِ ذِی الذِّکْرِ ۝۱ بَلِ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا

اللہ تعالیٰ دَ دے په مطلب ښهٔ پوهه دے، قسم دے په قرآن باندے چه نصیحت والا دے۔ بلکه کافران

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سُورة صٓ مکیه۔

**ربط** دَ دے سورت دَ ماقبل سره په ډیرو طریقو سره دے اوله طریقه داده، تیرشوی سورت کښې عجز او احتیاج دَ نیکانو بندګانو ذکر کړے شو نو په دے سورت کښې په هغوی باندے ابتلاءات ذکر کوی دَ پاره دَ دلالت په دے خبره باندے چه دوی شفعاء قهریه نشی کیدے. دویمه طریقه داده مخکښې سورت کښې دَ توحید نه استکبار دَ مشرکینو یٔے ذکر کړو نو په دے سورت کښې وجه دَ استکبار ذکر کوی. دریمه طریقه داده چه سورت صافات کښې ذکر وؤ دَ براءت دَ عابدانو دَ یو بل نه په یو طریقه سره نو په دے سورت کښې ذکر کوی دغه براءت په بله طریقه سره۔

**دعویٰ دَ سورت** ۔ اثبات دَ توحید په ذکر دَ ابتلاءاتو سره په انبیاء او ملائیک علیهم السّلام باندے سرهٔ دَ ابتلاء نه په ابلیس باندے. او دعویٰ دَ توحید ۶۵ تر ۶۶ کښې۔ او دا ابتلاءات تفصیلیه یٔے دَ دے پیغمبرانو باندے ذکر کړے دی اوله ابتلاء په باره دَ اجتهادی خطایٔے کولو سره په احکام شرعیو کښې او هغه ګناه نه دے دویمه ابتلاء په ترک دَ انشاء الله تعالیٰ نسیاناً او هغه ګناه نه دے۔ دریمه ابتلاء بدنی او مالی دَ پاره دَ ابتلاء دَ صبر اګرچه هیڅ ګناه یٔے نه دے کړے۔ او دا درے انبیاء علیهم السّلام دَ روم په علاقه باندے تیر شویدی اولنی دواړه دَ نبوت دَ صفت سره بادشاهان وو او دریم دَ صفت دَ نبوت سره مالدار وؤ۔

**خلاصه دَ سورت** ۔ دا سورت تقسیم دے درے بابونو ته اول باب تر ۱۸ پورے دے په دیکښې اولٔه شهادت دَ قرآن کریم او تخویف ذکر کوی بیا زجرونه په انکار دَ خلورو مقصدونو سره انکار دَ توحید او دَ رسالت او دَ قرآن او بعث بعد الموت نه او زجر دے په اسبابو دَ انکار سره او دَ تخویف دنیوی دَ پاره ذکر دے دَ اقوام مکذبو اجمالاً۔

فِيْ عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ ﴿۲﴾ كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ

په تکبّر او دُشمنئ کښې دی. ډیر هلاک کړے دی موږ مخکښې د دوی نه

مِّنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا وَّلَاتَ حِيْنَ مَنَاصٍ ﴿۳﴾

پیړئ نو چغے اووهلے هغوی او نه وُ دغه وخت د خلاصی

وَعَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ ز وَقَالَ

او تعجب کوی دوی د دے نه چه راغلے دے دوی ته ویره ورکوونکے د دوی نه او اُو ویل

## تفسیر

۱ ـ ۲ :۔ صٓ د مقطعاتو نه دے او د دے په باره کښې مفسرینو دیارلس اقوال ذکر کړے دی لیکن غوره دا ده چه د دے په معنیٰ باندے الله تعالیٰ عالم دے او لوئے حکمت پکښې دلیل او تنبیه ده په اعجاز د قرآن کریم باندے ذِی الذِّکْرِ یعنی مشتمل دے په بیان د توحید او نورو اوامر او نواهی د د الله تعالیٰ باندے او جواب قسم کښې ډیر اقوال دی او غوره دا ده (چه نیشته شریک او شفیع قهری د الله تعالیٰ لکه چه مشرکان گمان کوی) بیا ذکر کوی سبب د انکار د کافرانو چه هغه عزت او شقاق دے۔

مراد د عِزَّتٍ نه ځان عزت مند گنړل او د هغے په وجه د حق منلو نه تکبّر کول او شِقَاقٍ نه مراد د حق نه مخالفت کول په سبب د ضد او عناد سره او عِزَّةٍ وصف باطنی دے او شِقَاقٍ حالت ظاهری دے او دواړه ئے نکره راوړل د پاره د عظمت او د ډیروالی۔

۳ :۔ دا تخویف دنیوی دے شقاق کوونکو ته روستو د زجر نه هغوی ته۔ فَنَادَوْا اوازونه اوچت کړل په توبه او استغفار کولو سره یا په فریادونو او مدد غوښتلو سره وَّلَاتَ بعض نحویانو ویلے دی دا لَا دے او تا په کښې زیاتی راغلے بنا په عادت د عربو سره لکه ثم کښې ثمت او قول د سیبویه دا دے چه لات مشابه د لیس سره دے او ضمیر د اسم پکښې پټ دے یعنی لیس الحین۔

مَنَاصٍ په معنیٰ د روستوالی د عذاب او په معنیٰ د تخنیدلو او په معنیٰ د خلاصی سره دے۔

الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا سٰحِرٌ كَذَّابٌ ﴿۴﴾ اَجَعَلَ

کافرانو دا جادوگر ډیر دروغژن دے . ایا جوړ کړے دی ده

الْاٰلِهَةَ اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ اِنَّ هٰذَا لَشَیْءٌ

ډیر معبودانو لره معبود یو ، یقینًا دا خیز

عُجَابٌ ﴿۵﴾ وَانْطَلَقَ الْمَلَاُ مِنْهُمْ اَنِ امْشُوْا

ډیر ناآشنا دے . او روانه شوه یوه ډله د دوی نه چه ځائے

وَاصْبِرُوْا عَلٰۤی اٰلِهَتِكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَشَیْءٌ

او کلک شئ په (بندګئ) د خپلو معبودانو باندے ، یقینًا دا خاخا یو کار دے

سے :- دا تفصیل د تکبر او د شقاق د دوی دے او زجر دے په انکار د رسالت سره . مُنْذِرٌ مِّنْهُمْ یعنی بشر دے د جنس د دوی نه تو دوی د هغه د رسالت نه تعجب اوکړو لکه سورة یونس سے ۲ کښ دی . وَ قَالَ الْكٰفِرُوْنَ په دے لفظ کښ اشاره ده چه پیغمبر لره دروغژن ګنړونکے یقینی کافر دے او مراد د کافرانه انکار کوونکے دے په ضد او عناد سره. سَاحِرٌ نه مراد دهوکه ورکول په باطل د کلام سره یا جادو کوونکے دے او چه خلقو کښ نفرقه اچوی په سبب د جادو کولو یا معجزے ته ئے نسبت د جادو کوو . كَذَّابٌ یعنی په مسئله توحید کښ او په دعوی د نبوت کښ دروغژن دے .

سے :- دا زجر دے په انکار د توحید سره . اول ذکر د تعجب وو د دعوی د نبوت نه سره د بشریت نه او دا تعجب دے د مسئلے د توحید نه اول تعجب کول خفیف وو نو په صیغه د فعل سره ئے ذکر کړو او دویم تعجب ډیر ثقیل دے نو په صیغه د مبالغ سره ئے ذکر کړو ځکه چه خلیل امام د لغت فرق کړے دے په مینځ د عجیب او د عجاب کښ یعنی عجاب هغه شے دے چه د حد د تعجّب نه ئے تجاوز کړے وی .

مقصد دا دے چه مشرکانو د هر حاجت روائے د پاره او د هر قوم د پاره جُدا جُدا معبود او حاجت روا جوړ کړے وو عقیده ئے داوه چه یو ذات دا ټول کارونه نشی کولے او قیاس ئے کوو په مخلوق باندے نو پیغمبر توحید ته دعوت ورکړو یعنی ټول حاجتونه پوره کوونکے او د ټول مخلوق الله یو الله تعالیٰ دے نو دوی د دے نه تعجب اوکړو او انکار ئے اوکړو ، دا د دوی لویه بے عقلی او جهل دے .

يُّرَادُ ۝٦ مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ ۚ إِنْ

چه قصد کړے شوے دے. نه دی اورید لے موږ دا په دین روستنی کښ ، نه دی

هٰذَآ إِلَّا اخْتِلَاقٌ ۝٧ ءَأُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ

دا مګر دروغ جوړ کړیشوی. آیا نازل کړے شویدے په دهٔ بانده وحی

مِنْ بَيْنِنَا ۚ بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِّنْ ذِكْرِي ۚ

دَ مینځ زموږ نه - بلکه دوی په شک کښ دی دَ وحی زما نه

بَلْ لَّمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ ۝٨ أَمْ عِنْدَهُمْ

بلکه تراوسه نه دے څکلے دوی عذاب زما . آیا دوی سره

س۶ :- روستو دَ انکار دَ توحید نه په شرک بانده کلک کیدل ذکر کوی او دَ دے آیت په تفسیر کښ مفسرینو واقعه دَ قریشو دَ ابوطالب په مخکښ دَ نبی صلی الله علیه وسلم ذکر کړے ده وَانْطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْهُمْ یعنی دَ توحید دَ مسئلے په اوریدلو سره ئے نفرت ډیر شو او روان شو لکه چه سورة اسراء س۴۶ کښ تیر شویدی او انطلاق نه مراد په تلوار سره تلل دی . امشوا مراد دَ دے نه دَ مجلس دَ توحید نه تلل دی یا روانیدل دی همیشه په لاره دَ شرک بانده . او زمخشری ویلی دی چه مراد دَ دے دا دے چه ګڼړ او ډیر راغونډ شئ دَ پاره دَ مقابلے دَ پیغمبر. اِنَّ هٰذَا اشاره ده توحید ته یعنی دَ دے نبی مراد زموږ دا دے چه توحید او منو. یا اشاره ده صبر کولو ته په شرک بانده یعنی دَ شرک کولو او په دے بانده دَ کلک پاتے کیدلو اراده کول پکار دی نو بنا په اول بانده تقدیر دَ عبارت دا دے لشئ یراد منا او په دویم بانده تقدیر ینبغی ان یراد هذا فقط لا غیر .

س۷ :- دا وجه دَ تعجب او دَ انکار ده چه دوی دَ مشرانو نه دا مسئله نه ده اوریدلے الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ مراد دَ دے نه عام دے یعنی دَ دوی مشران او دا رنګ متأخرین نصاری او یهودیان ځکه چه دے ټولو دَ توحید نه انکار کړے وو او توحید ئے نه وو بیان کړے. لکه اوس زمانه کښ هم جاهلان وائی چه موږ (مسئله دَ توحید او سنت) نه منو ځکه چه زموږ مشرانو ملایانو دا نه ده بیان کړے.

س۸ :- دا زجر دے په انکار کولو سره دَ قرآن نه . مِنْ بَيْنِنَا یعنی دَ دے نه ډیر مشران او اشراف او مالداران شته په هغوی بانده دا وحی ولے نه نازلیږی نو سبب دَ انکار دَ دوی حسد او دُنیا پرستی ده .

خَزَآئِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ الْوَهَّابِ ⑨ أَمْ
خزانې دي دَ رحمت دَ رب ستا چه زوراور دے بخښش ورکوونکے دے۔ آیا

لَهُم مُّلْكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ
دوی لره بادشاهي دَ اسمانونو او زمکے او دَ مینځ دَ دے دواړو ده،

فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ⑩ جُندٌ مَّا هُنَالِكَ
نو او دِ خیژي په انن رپایو کښ۔ دَ دوی لښکر دے لږ دغه وخت به ورکړے شي

مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ ⑪ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ
شکست دوی دَ جنس دَ عنادیانو دَ ډلو نه دی۔ تکذیب کړے وؤ مخکښ دَ دوی نه قوم

بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ دَ دے ځائے نه رد دے په دے منکرینو باندے په څلورو طریقو سره اوله طریقه دا ده یعني دوی خو دے نبي صلّی الله علیه وسلّم ته تر اوسه پورے رښتنے او امین وئیلو لیکن هر کله چه دهٔ قرآن او مسئله دَ توحید شورو کړه نو دے خلقو دَ دهٔ نه انکار اوکړو دَ وجے دَ شک نه په توحید کښ۔ یعني شک دَ توحید سبب دَ انکار دَ رسالت او دَ قرآن دے

بَلْ لَّمَّا يَذُوقُوا دا دویمه طریقه ده یعني سرهٔ دَ انکار او دَ شک نه دوی ته مهلت ورکړے شوے دے او عذاب ورباندے نه دے راغلے نو دوی خیال کوي چه موږه په حقه لار باندے روان یو۔

س۹:۔ دا دریمه طریقه ده یعني ذکر نازلیدل رحمت دَ الله تعالی دے نو آیا دَ دے رحمت خزانې دَ دوی په اختیار کښ دي چه دوی وائي چه دے رسول لره رسالت پکار نه وؤ او دا سے په سورة زخرف س۳۲ کښ هم راځي۔ الْعَزِيزِ کښ اشاره ده چه دا خزانې دَ الله تعالی نه هیڅوک په زور نشي اغستلے او چالره چه دَ دے رحمت نه څه حِصّه ورکړیده نو دا دَ چا زور نه دے بلکه په هبه (بخښش) سره ئے ورکړیده ځکه چه الوهاب دے۔

س۱۰:۔ دا څلورمه طریقه دَ رد ده یعني که چرے دَ دوی سره بادشاهي دَ اسمانونو او دَ زمکے وی او وحي خو اسمانونو نه نازلیږي نو دوی دِ پره اسمانونو ته اوخیژي او وحي نازلیدل په دے پیغمبر باندے دِ بند کړي۔ الْأَسْبَابِ هر هغه څیز چه بل څیز ته رسول کوي نو هغے ته سبب وئیلے کیږي که دروازه وي او که لارې وي نو مراد ترینه دروازه او لارے دَ اسمانونو دي۔ او لفظ دَ اسباب کښ اشاره ده چه دَ اسمان څیزونه نمر، سپوږمۍ، ستوري او وریځې وغیره الله تعالی اسباب ګرځولے دي دَ پاره دَ تاثیراتو په خکته عالم کښ۔

س۱۱:۔ په دے کښ تسلی ده نبي صلّی الله علیه وسلّم ته په اهلاک دَ رپاتے په بل مخ)

نُوْحٍ وَّعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ ذُو الْاَوْتَادِ ﴿۱۲﴾ وَثَمُوْدُ وَقَوْمُ

دَ نوح علیه السلام او عادیانو او فرعون میخونو والا او ثمودیانو او قوم

لُوْطٍ وَّاَصْحٰبُ لْئَیْكَةِ ؕ اُولٰٓئِكَ الْاَحْزَابُ ﴿۱۳﴾ اِنْ

دَ لوط علیه السلام او بنړ والو ، دغه دی عنادیان ډلے ډلے۔ نه دی

كُلٌّ اِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ ﴿۱۴﴾ ع

دا ټول مگر تکذیب ئے کړے وؤ دَ رسولانو نو یقینی راغے په دوی باندے عذاب زما.

قریش مکّه سره یعنی زر ده چه دوی به په دغه ځائے کښ (چه مکّه ده) چه دوی په هغے کښ انکار کوی شکست خورده شی نو دَ دوی په دے انکاری خبرو باندے پرواه مه کوه. جُنْدٌ خبر دَ مبتدا محذوف دے یعنی هم جُنْدٌ لفظ ما صفت دَ جند دے دَ پاره دَ تحقیر یعنی معمولی لښکر دے. هُنَالِكَ صفت ثانیه دَ جند دے یعنی دا سے لښکر دے چه په مکّه مکرّمه کښ او سیږی یا ظرف دے دَ مهزوم دَ پاره او مهزوم صفت دے دَ پاره دَ جند یعنی شکست به ورکړے شی دوی ته په دغه ځائے کښ کوم ځائے کښ چه دَ انکار خبرے کوی چه هغه مکّه ده او دا دلیل دے چه په دے ایت کښ مراد فتح دَ مکے دَ چه دوی په خپل کلی کښ شکست اوموندلو. مِنَ الْاَحْزَابِ دا هم صفت دَ جند دے یعنی دَ جنس دَ هغه جانه دی چه دَ انبیاء علیهم السّلام په مخالفت کښ په یئے ډله بازی او تعصب کوؤ.

۱۲ تا ۱۴ :- دا تخویف دنیوی په ذکر دَ قومونو تیر شوؤ سره دے چه هغوی تکذیب کړے وؤ دَ مسئلے دَ توحید نه پشان دَ تکذیب دَ موجوده کسانو او لکه چه هغه قومونه خپلو مرادونو ته نه وو رسیدلی نو دا موجوده هم نشی رسیدلے او لکه چه هغوی په مختلفو عذابونو سره هلاک کړے شول نو دوی به هم په یو عذاب سره هلاک کړے شی. او دوی خپل خپل مختلف قوّتونه دَ پیغمبرانو په خلاف کښ استعمال کړے وو لیکن هیڅ مقصد ته او نه رسیدل. دا سے ذکر په سورة ق ۱۲ کښ هم شته لیکن په دے سورت کښ دَ دغه قومونو قوّتونو او په مختلف طریقو سره دَ انبیاء علیهم السّلام سره مقابلے کول مراد دی نو دَ دے وجه نه لفظ الاحزاب ئے ذکر کړو او ترتیب دَ قوّتونو ته ئے اشاره اوکړه قوم دَ نوح علیه السّلام کښ کثرتِ سرکشی، عادیانو کښ قوّت دَ بدنونو، فرعونیانو کښ قوّت دَ بادشاهۍ او کثرت ظلم کول او ثمودیانو کښ قوت دَ کاریګرئے (صنعت کاری) او قوم دَ لوط علیه السّلام کښ قوّت جهل او خباثت او اصحاب الایکة کښ قوّت مالی او تجارت وؤ دَ دے قوتونو په سبب ئے تکذیب کړے وؤ او دَ انبیاؤ علیهم السّلام مقابلے ئے کولے. ذُو الْاَوْتَادِ دَ فرعون ډیر ظلم ته (پاتے په بل مخ)

وَمَا يَنْظُرُ هٰٓؤُلَآءِ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً

او انتظار نه کوی دا خلق مگر دَ چغې یو ے

مَّا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ ۝١٥ وَقَالُوْا رَبَّنَا عَجِّلْ

چه نیشته هغې لره هیڅ ایسار یدل ۔ او دوی وائي اے ربه زموږه زر راکړه

لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ۝١٦ اِصْبِرْ

موږ له برخه زموږ مخکښ دَ ورځې دَ حساب نه ۔ صبر کوه

اشاره ده چه چالره به ئې سزا ورکوله بیا خاص مؤحدینو ته تو په لاسو تو او خپو باندے ئې ورله میخونه تک وهل او قوّت دَ بادشاهۍ ته هم اشاره ده ځکه چه دَ میخونو خاوند ویلے کیږی مضبوط او محکم ته

سـ۱۵ :۔ دا تخویف اخروی ذکر کوی روستو دَ تخویف دنیوی ته او په دے کښ زجر هم دے په انکار دَ قیامت سره صَيْحَةً وَّاحِدَةً مراد تربیه اوله شپیله وهل دی دَ پاره دَ فنا دَ عالم لکه سورة یٰسٓ سـ۴۹ کښ ذکر شویدی یا مراد تربیه چغه دَ عذاب دَ دنیا ده چه په هغې سره به یو ځل باندے هلاک کړیشی ۔ مَا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ

فَوَاقٍ په اصل کښ دا دے چه اوښه یا غوا لنګه یو ځل اولشی بیا ورته بچے پریږدی دَ پاره دَ دے چه نور پئے راپریږدی نو دوباره ئې اولشی نو مراد دا دے چه دا شپیلے چه شروع شی نو په مینځ کښ به وقفه او دمه کول نه وی بلکه اوږده او ممتده به وی ۔ یا مراد دا دے چه دوی له به مهلت نشی ورکیدلے په مقدار دَ فواق سره لکه چه تیر شویدی فاذا جاء اجلهم لا یستأخرون ساعة ولا یستقدمون ۔

سـ۱۶ :۔ دا هم زجر دے په استهزا کولو دَ دوی په قیامت پورے ۔ قِطَّ ټکړے دَ څیز ته ویلے کیدیشی یعنی برخه او کتاب او روزئ وغیره ته شامل دے ۔ یعنی دوی ویل چه حِصّه دَ نعمتونو دَ جنّت موږ له په دنیا کښ راکړه یا حِصّه دَ عذاب زموږ په دنیا کښ راکړه لکه چه سورة انفال سـ۳۲ کښ تیر شویدی یا عملنامه زموږ په دنیا کښ راکړه او دا ټول په طریقه دَ استهزا سره یه دوی ویل ۔

عَلٰی مَا یَقُوْلُوْنَ وَاذْکُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ

په هغه چه دوی وائی او یادکړه بنده زمونږ داؤد علیه السلام

ذَا الْاَیْدِ ۚ اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ ﴿۱۷﴾ اِنَّا سَخَّرْنَا

همت والا وؤ یقینًا دے ډیر ګرځیدونکے وؤ الله تعالیٰ ته۔ یقینًا ملګرے کړی وومونږ

۱۷:۔ دَ دے ایت نه دویم باب دے تر ۶۹ پورے په دے کښې تسلّی ده نبی صلّی الله علیه وسلّم ته په ذکر کولو دَ درے ابتلاءاتو سره په درے انبیاء علیهم السّلام باندے خصوصًا او تفصیلًا او په شپږو باندے اجمالًا۔ او روستو دَ ذکر د ابتلاء اوّل ته زجرونه دی۔ او روستو دَ بحث دَ ابتلاءاتو نه بشارت او تخویف اخروی تفصیلی دے او په اخر دَ دے باب کښې دعوی دَ توحید ده۔ په دے (۱۷) کښې اولا امر دے په صبر کولو سره روستو دَ ذکر کولو دَ غلورو انکارونو دَ منکرینو نه۔ او بیا امر دے په ذکر دَ انبیاء علیهم السّلام سره یعنی لکه چه په دغه انبیاء علیهم السّلام (داؤد او سلیمان او ایوب) علیهم السّلام باندے سره دَ بادشاهئ او مالدارئ او نبوت دَ دوی نه ابتلاءات راغلے وو لیکن هغوی صبر کړے وؤ نو ته هم صبر کوه۔ یا دا چه دوی دَ توحید نه انکار کوی او وائی چه بزرګان زمونږ شفعاء دی نو په دے کښې ذکر کوی چه په دے بزرګانو باندے ابتلاءات راغلی وو او په چا باندے چه ابتلاءات راځی نو هغه شفیع قهری په الله تعالیٰ باندے نشی جوړیدلے۔

**فائده:۔** دا ابتلاءګانے درے قسمه دی اول قسم په باره دَ تعلق دَ بندګانو سره په باره دَ شرعی فیصلو دَ هغوی۔ دویم قسم په باره دَ تعلق بالله تعالیٰ په ترک دَ انشاءالله تعالیٰ (چه ذکر الٰهی دے) او دریم ابتلاء په باره دَ نفس خپل کښې په مصیبتونو باندے او مالی سره۔ دَ ابتلاء ذکر کولو نه روانده مدحه په ذکر دَ اوصافو عالیو دَ داؤد علیه السّلام سره کوی اشاره ده که ډیرے لوئے بندګان وی لیکن دَ ابتلاءاتو نه نشی بچ کیدلے۔ نو په دے ایت کښې درے صفتونه دَ داؤد علیه السّلام یے ذکر کړیدی ۱: عبدنا مراد تربنه عبدیت خاصه دے۔
۲: ذَا الْاَیْدِ۔ اَیْدِ اسم مصدر دے قوت ته ویلے کیږی مراد تربنه قوت دَ عبادت دے چه حدیث کښې وارد دی "چه ډیره محبوبه طریقه په روژو

پاتے په بل مخ

الْجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ﴿۱۸﴾

غرونه د دهٔ سره تسبیح به یئ ویله بیګایئ او د نمر ختلو په وخت کښ.

وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً ۗ كُلٌّ لَّهٗۤ أَوَّابٌ ﴿۱۹﴾

او مارغان راغونډ کړے شوے وو ټول وو هغه ته راګرځیدونکی.

کښ روژے د داؤد علیه السّلام وے یو ورځ به یئ روژه نیوله او بله ورځ به یئ افطار کاؤ او ډیره محبوبه طریقه په مونځونو کښ طریقه د داؤد علیه السّلام وه ترنیمے شپے به یئ خوب کاؤ بیا به دریمه حِصّه د شپے مونځ کاؤ بیا به آخری شپږمه حِصّه کښ یئ آرام کاؤ" یا مراد ترینه قوّت د بادشاهئ د هغه دے ۳ إِنَّهٗۤ أَوَّابٌ هغه چاته اواب وائی چه هرکله یو ګناه کول یئ په زړه کښ تیر شی نو زر استغفر الله اوائی یا یئ ګناه کړے وی او توبه یئ ترینه ویستلے وی لیکن هرکله چه هغه ګناه ورته وریاد شی نو بیا استغفار غواړی.

۱۸:- په دے آیت کښ د هغه څلورم صفت دے په طریقه د معجزے سره. یعنی غرونه چه په مخلوق کښ ډیر سخت مخلوق دے لیکن هرکله چه داؤد علیه السّلام به تسبیح ویله یا به یئ زبور تلاوت کاؤ نو غرونو به ورسره هم تسبیح او تلاوت د زبور کوؤ. بِالْعَشِيِّ ویلے کیږی روستنی نصف د ورځ ته مازیګر، ماښام او ماسخوتن پکښ داخل دی. إِشْرَاقِ په دے کښ صلوة الاشراق (چه هرکله نمر یو نیزه دوه نیزے د غرونو نه راوچت شی) ته اشاره ده او دارنګ اشاره ده صلوة الضحٰی ته چه هغ ته صلوة الاوابین هم ویلے کیږی. او څوک چه د ماښام نقل مونځ ته صلوة الاوابین وائی دا صحیح نه ده.

۱۹:- دا بل معجزانه صفت دے. لَّهٗۤ ضمیر راجع دے داؤد علیه السّلام ته یعنی د وج د تسبیح د هغه نه یا ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته د أَوَّابٌ سره متعلق دے او كُلٌّ لَّهٗۤ أَوَّابٌ په اوله معنیٰ صفت دے د داؤد علیه السّلام او مرغان په مخلوق کښ ډیر نرم زړه والا دی تو مقابل دی د غرونو. یعنی ډیر سخت او ډیر نرم دواړو د هغه سره یو ځائے تسبیح ویلو کښ ملګری وو.

وَشَدَدْنَا مُلْكَهٗ وَاٰتَيْنٰهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ

او کلکه کړے وه مونږ بادشاهی د دهٔ او ورکړے وه مونږ هغه ته ښهٔ پوهه د دین او فیصله کونکے

الْخِطَابِ ﴿٢٠﴾ وَهَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ

خبرے۔ او ایا راغلے دے تاته خبر د جګړه کوونکو

اِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ﴿٢١﴾ اِذْ دَخَلُوْا عَلٰى

کله چه اوختل دوی په دیوال د عبادت خانے باندے کله چه داخل شول په

دَاوٗدَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ قَالُوْا لَا تَخَفْ ج

داؤد علیه السّلام باندے نو ګبراؤ شو د دوی نه دوی اُویل مهٔ ویریګه .

---

۲۰ :۔ په دے ایت کښ د هغه نور درے صفتونه ذکر کوی ۱ شَدَدْنَا مُلْكَهٗ ۔ مُلْك کثرة د مِلکیت کښ استعمالیږی د دهٔ لښکرے ډیرے وے او هیبت او رعب ئے په خلقو باندے وو او ورسره تائید او نصرتِ الٰهیه هم وو ۲ وَاٰتَيْنٰهُ الْحِكْمَةَ علم د کتاب الله او د سنت۔ معرفة د دقائقو او لطائفو په نصوصو او احکامو شرعیو کښ ۳ فَصْلَ الْخِطَابِ دا لفظ شامل دے مختصر او جامع کلام ته او د حمد و صلٰوة نه روستو کلمے د اَمَّابَعد ته هغه علم کامل ته چه د مدعی او مدعا علیه تر مینځه فیصله کولے شی۔ او په دے باره کښ مُفسر قرطبی واقعات د علی رضی الله عنه او د امام ابو حنیفه رحمة الله نقل کړے دی۔

۲۱ :۔ روستو د ذکر د صفاتو د داؤد علیه السّلام نه چه دلالت کوی د هغه په عزت د لوئی باندے ذکر کوی ابتلاء د هغه او بیا رجوع د هغه الله تعالیٰ ته۔ هَلْ استفهام دے لیکن مراد ترینه ترغیب ورکول دی اوریدلو د مابعد واقع ته۔ الْخَصْمِ دا اسم جنس دے مفرد تثنیه او جمع منکر او مؤنث ټولو ته عام دے۔ اِذْ تَسَوَّرُوا تثنیه ته ضمیر د جمع راجع کول هم جائز دی۔ او دا د سور نه ماخوذ دے په معنیٰ د دیوال د قلعے دے۔ الْمِحْرَابَ، په شرع د بنی اسرائیلو کښ د خاص بندګانو د عبادت ځائے به مستقل او جدا وو هغے ته به ئے محراب ویل او محراب ئے د دے وجے نه ویل چه هغه مکان د مقابلے کولو د شیطان وو او دا سے سورة العمران کښ تیر شوی دی۔

وقف لازم

خَصۡمٰنِ بَغٰی بَعۡضُنَا عَلٰی بَعۡضٍ فَاحۡکُمۡ

موږ دعویدار یو په یو بل باندے، زیاتے کړے دے یو په بل باندے تو فیصله اوکړه

بَیۡنَنَا بِالۡحَقِّ وَلَا تُشۡطِطۡ وَاهۡدِنَاۤ اِلٰی سَوَآءِ

زموږ په مینځ کښ حقه فیصله او د حد نه زیاتے مکوه او خودنه اوکړه موږ ته د برابر

الصِّرَاطِ ﴿۲۲﴾ اِنَّ هٰذَاۤ اَخِیۡ ۟ لَهٗ تِسۡعٌ وَّ

لارے۔ یقینًا دا زما رور دے دهٔ لره یو کم

تِسۡعُوۡنَ نَعۡجَةً وَّلِیَ نَعۡجَةٌ وَّاحِدَةٌ ۟

سل ګډے دی او زما یوه ګډه ده

۲۲:۔ هر کله چه دروازے د عبادت خانے بندے وے او دا کسان (خصمان) فیصلے ته محتاج وو نو دوی مجبورًا په دیوال باندے را اوختل۔

فَفَزِعَ مِنۡهُمۡ په نا اشنا طریقه باندے بے اجازته داخلیدل ضرور سبب د ویرے او د ګبراهټ وی۔

فَزِعَ دے ته ویلے کیږی چه د یرے اثار په ظاهر بدن باندے ښکاره شی هر کله چه دوی د اثارو نه معلومه کړه چه دے زموږ په وجه او یریدلو چه کیدیشی دا په دشمنان وی نو هغوی اوّل تسلّی ورکړه په لَا تَخَفۡ سره او بیائے خپل حال پیش کړو چه خَصۡمٰنِ مراد ترینه مدعی او مدعا علیه دی او اجمالی سبب د خصومت یئے ذکر کړو په دے قول سره بَغٰی بَعۡضُنَا عَلٰی بَعۡضٍ۔ بَغٰی د بل چا حق باندے ظلمًا تعدّی کولو ته ویلے کیږی۔

فَاحۡکُمۡ بَیۡنَنَا په دے کښ طلب د فیصلے د انصاق دے او دا د خصمانو عادت وی چه د تاکید د پاره د حاکم ته عدل مطالبه کوی اګرچه هغه پوره عادل وی وَاهۡدِنَاۤ په دے کښ اشاره ده چه روستو د فیصلے کولو نه موږ ته داسے اداب اوخیه چه ائنده د پاره جنګ نه پیدا کیږی او دا د هوښیار حاکم طریقه وی۔

فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ ﴿٢٣﴾

نو دے وائی دا ماته اوسپاره او زور اور دے په ما باندے په خبرو کښې.

قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ

اُویل هغه یقیناً دهٔ ظلم کړے دے په تا باندے په سبب د طلب کولو د ګډے ستا

نِعَاجِهِۦ ۖ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي

ګډو خپلو ته او یقیناً ډیر د شرکت کوونکو نه خامخا ظلم کوی

بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ إِلَّا الَّذِينَ

بعضے د دوی په بعضو باندے مګر هغه کسان

آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ۗ

چه ایمان ئے راوړے دے او عمل ئے کړیدے په موافق د سنت سره او لږ دی دوی

وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُۥ

او ګمان اوکړو داؤد علیه السلام چه یقیناً امتحان کړے دے موږ په دهٔ باندے نو بخنه ئے اوغوختله د رب خپل نه

وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ۩ ﴿٢٤﴾ فَغَفَرْنَا لَهُۥ

او پریوتلو رکوع کوونکے او اوګرځیدو الله تعالیٰ ته . نو بخنه اوکړه موږ دهٔ ته

السجدة ١٠

٢٣ :۔ دا تفصیل د خصومت دے او تیر شوی ایت کښې د خصمانو شریک بیان وو او په دے ایت کښې د یو خصم بیان دے نو لفظ قال احدهما پکښې مقدر دے او دا مدعا علیه دے ځکه چه هغه بل خصم د دهٔ په یوه ګډه باندے دعویٰ کړیده او دے ترینه منکر دے اَکْفِلْنِیْهَا زور نسبی وُو یا دینی وُو دواړه احتماله شته. وَعَزَّنِیْ فِی الْخِطَابِ وجه د غلبے په خبرو داده چه هغه فصیح او چالاک وُو یا د مالدارے د وجے نه غالب او زور اور وُو.

٢٤ :۔ مفسر قرطبی د ابو عبد الله حلیمی نه نقل کړے دے چه داؤد علیه السلام په شکایت کوونکی کښې اثار د کمزورے اولیدل نو یقین ئے راغے چه دے مظلوم دے او دا سبب اوګرځیدلو د دے خبرے چه د هغه بل خصم نه ئے هیڅ تپوس اونکړو او د عجلت نه ئے کار واخستلو او فیصله ئے اوکړله. لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ اِلٰی نِعَاجِهٖ او هغه بل

ذٰلِكَ ۚ وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ

دَ دغه خبرے | او | یقیناً | دهٔ لره | زمونږ سره | خامخا نزدے والے | او خاپسته ځائے

ته ئے ظالم اویل او دا مصداق دَ فتنے دے چه روستو ذکر کیږی ځکه دا سے عجلت دَ نبی دَ شان سره مناسب نه دے بلکه دَ بل جانب نه تپوس کول ضروری وو۔ لیکن نعمت دَ الله تعالیٰ ورسره دا اوشو چه بغیر دَ نسبت دَ ظلم نه ئے نوره سزا او عقوبت هغه ته ورنه کړو او دَ دے نعمت په شکریه کښ داؤد علیه السلام سجده کړیده او دَ دے وجے حدیث کښ وارد دی چه داؤد علیه السلام دا سجده دَ شکر کړے ده او مونږه ئے دَ هغه دَ اقتدا دَ وجے نه کاو۔ دا روایت قرطبی ذکر کړیدے لیکن صحیح روایت دا دے چه داؤد علیه السلام دا سجده دَ توبے په طور کړیده او مونږ به دَ شکر په طور سره کوو او دَا ابن کثیر په روایت دَ امام نسائیؒ سره نقل کړے دے او ویلے دی چه دا سند صحیح دے۔ وَإِنَّ كَثِيرًا په دے سره زجر ورکوی دے مدعا علیه ته اشارةً چه تا وَلے دَ دے سړی سره خپل مال گډ کړے دے ځکه چه مال گډه وَل اکثر سبب دَ بغی جوړیږی او دا په تجربے او په تعامل دَ خلقو سره ثابته خبره ده۔ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا په دے کښ اشاره ده مانع دَ بغی ته سره دَ اختلاط نه یعنی چه کمال دَ ایمان وی نو بیا په هیڅ حالت کښ په یو بل باندے ظلم نه کوی په دے کښ زور ته دَ دواړو ته چه تا سو کښ به دَ ایمان نقصان وی دَ دے وجے نه یو بل سره جګړے کوئے۔ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ما دَ پاره دَ تاکید دَ قِلّت دے او دا سے سورة سبا ۱۳ کښ هم دی. مفسر قرطبی لیکلی دی چه عمر رضی الله تعالیٰ عنه دَ یو سړی نه په دُعا کښ واوریدل اللهم اجعلنی من عبادك القلیل هغه ورته اویل چه دَ دے دُعا څه مطلب دے نو هغه سړی په دے ایت سره جواب ورکړو۔ وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ مصداق دَ فتنے تعجیل کول وی په فیصله کښ لکه چه اوس تیر شول او مراد ترینه خطا کیدل دی په سبب دَ عجلت کولو سره اګر چه دا معصیة نه دے ځکه چه دَ هغه په شرع کښ دا واجب نه وه چه دَ بل جانب نه دِ تپوس کیدے شی لیکن مناسب وه نو دا ترك اولیٰ دے چه انبیاء علیهم السلام په دے یا تدے هم خفه کیږی ځکه چه حسنات الابرار (پاتے په بل مخ)

مَاٰبٍ ﴿۲۵﴾ يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً

(دَ راتلو دے ۔ اے داؤد یقیناً مونږ گرځولے یې ته خلیفه (فیصلے کوؤنکے)

سیئات المقربین یعنی دَ عامو نیکانو یو جائز کار دَ خاص بندګانو په نسبت بد ګڼړلے کیږی۔ یا مصداق دَ فتنے داوؤ چه داؤد علیه السّلام خپل اوقات تقسیم کړے وو چه یو ورځ به یې فیصلے دَ خلقو کولے او دویمه ورځ به یې عبادت خانه کښ خلوت نشینی کوله دَ پاره دَ عبادت دَ الله تعالیٰ او دا دَ هغه اجتهاد وؤ لیکن په دے واقع سره الله تعالیٰ هغه ته تنبیه ورکړه چه هرکله ستا دَ عبادت په ورځ دَ جاجګړه راشی او فیصلے شرعی ته محتاج وی نو دا فیصله به څوک کوی او حال دا چه دَ شرعی فیصلے کولو ثواب او اجر دَ نفلی عبادتو نه بهتر دے لکه چه ابن کثیر دَ امام احمد په سند سره حدیث نقل کړے دے چه "الله تعالیٰ ته ډیر محبوب دَ خلقو نه او ډیر نزدے په اعتبار دَ مجلس سره امام عادل دے"۔ او دا رنګ حدیث دَ سبعة یظلهم الله کښ یې اول شخص امام عادل ذکر کړے دے نو دَ تنبیه دَ الله تعالیٰ نه داؤد علیه السّلام ته معلومه شوه چه دا تقسیم زما دَ طرف نه مناسب نه دے او دا خلاق اولیٰ دے۔ دَ دے وجے نه ګمان یې اوکړو چه څه په فتنه کښ واقع شوم۔ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ استغفار دَ انبیاؤ علیهم السّلام دَ ګناه نه نه وی ځکه چه هغوی معصوم دی لیکن دا استغفار تعبداً وی یعنی ځان دَ الله تعالیٰ خاص بنده اوګڼړی او بعضے حالات خپل مناسب او نه ګڼړی نو دَ هغے نه توبے اوباسی۔ وَخَرَّ رَاكِعًا وَّاَنَابَ۔ رکوع په معنیٰ دَ سجدے ده په دلیل دَ لفظ دَ خَرَّ سره او په لغت کښ رکوع او سجود دواړه په معنیٰ دَ انحناء سره راځی دَ دے وجے نه ډیو بل په معنیٰ سره استعمالیږی یا دا چه اول به رکوع شو نو بیا به سجده کښ ورپریوتو یعنی دَ حالت دَ رکوع نه په سجده کښ ورپریوتلو۔

۲۵:۔ اوله نتیجه دَ استغفار ده او دویمه نتیجه دَ سجدے کولو ده او دریمه نتیجه دَ انابت الے الله تعالیٰ ده۔

فائده:۔ دَ دے ایت په تفسیر کښ اکثر مفسرینو قصه دَ اوریا دَ ښځے ذکر کړیده او په هغے کښ دَ دوی څلور اقوال دی۔

اول قول دا دے چه داؤد علیه السّلام یو ځل یو مرغ پسے یره اوختلو نو دَ اوریا ښځه باندے نظر اولګیدلو او هغے غسل کوؤ نو دَ دهٔ ورسره

# فِي الْأَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ

په ملک کښې نو فیصلے کوه په مینځ د خلقو کښې په حق سره

محبّت پیدا شو بیا ئې عزم اوکړو چه اوریا په یو ذریعه قتل کړیشي نو سخت معرکو ته ئې لیږلو آخر هغه قتل کړے شو د عدت د تیریدلو نه روستو د هغې سره ئې نکاح اوکړو او سلیمان علیه السّلام تری نه پیدا شو نو الله تعالیٰ ملائک په شکل د خصمان را اولیږل د پاره د تنبیه داؤد علیه السلام ته چه ستا یو کم ۹۹ سل ښځې شته او بیا هم د اوریا د ښځې په طلب کښې دِ ظلم اوکړو نو هغه توبه اویستله (العیاذ بالله).
دویم قول دادے چه د دهٔ د هغه ښځې سره محبت بے اختیاره پیدا شو نو زړه کښې ئې اراده اوکړه چه اوریا مړ شي یا قتل شي نو دا ښځه به زه په نکاح باندے واخلم اګرچه د هغه د قتل اراده ئې نه وه کړے.
دریم قول دا دے چه دهٔ د اوریا نه طلب اوکړو چه دا ښځه دِ ما ته پریږده نو هغه طلاق ورکړل او دهٔ ورسره نکاح اوکړو او دا عادت وو په هغه زمانه کښې.
څلورم قول دادے چه د دغه ښځې خطبه (غوښتنه د نکاح) اوریا کړے وه لیکن داؤد علیه السّلام بغیر د پتوس نه د هغه د پاسه خطبه اوکړه او هغه خلقو داؤد علیه السلام ته ورکړه. لیکن دا اقوال باطل دی په دے کښې نسبت د ګناه کبیره یا صغیره یا وهم او شبه د ګناه راځي په داؤد علیه السّلام باندے او انبیاء علیهم السّلام د داسے امورونه معصوم دی د قولِ اول ابطال په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه الله تعالیٰ امر کړے دے زمونږ نبی صلّی الله علیه السلام ته د قصے په سر کښې په اصبر او اذکر سره یعنی د داؤد علیه السلام پشان صبر اوکړه او دا واقعات د صفت د صبر نه خلاق دی. دویمه وجه تیر شوی نهه صفتونه د هغهٔ چه ذکر شویدی نو هغه قول د دے واقع سره منافات لری لکه چه امام رازی تفسیر کبیر کښې تفصیل کړے دے. دریمه وجه دا ده چه د دے واقعے په سند کښې یزید الرقاشی دے او ابن کثیر وایي دی چه دا یزید اګرچه د صالحینو نه دے خو په حدیث کښې ضعیف دے او دا واقعه د اسرائیلیاتو نه ده. څلورمه وجه دا ده قرطبی وایي دی چه اکثر د دے راوایاتو نه صحیح او متصل الاسناد نه دی

وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ط

او تابعداری او نکړے دَ خواهش نو وابه ېوی تالره دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه

او نه دی مناسب چه بغیر دَ صحت دَ هغې نه په دا سے خبرو باندے څوک جرأت اوکړی۔ پنځمه وجه په دے کښ نسبت دَ عزم دَ قتل دَ مسلمان او محبت او عشق دَ پردے زنا ته سره پیغمبر ته منسوب دی او انبیاء علیهم السّلام دَ ګناهونه قبل النبوة او بعد النبوة معصوم او پاک دی او دا مسئله تفصیلاً په خپل ځائے کښ راځی او ابوحیان اندلسی په تفسیر البحرالمحیط کښ په دے مقام کښ ذکر کړیدی چه قطعاً معلومه ده چه انبیاء علیهم السّلام معصوم دی دَ خطایانه، امکان نه لری چه دوی په ګناهونو کښ واقع شی ځکه چه دا ګناهونه کول دَ انبیاؤ نه صادر کیدل امکان اولری نو شریعتونه به باطل شی او دَ دوی په وحی باندے اعتماد باقی نه پاتے کیږی (ص ۳۹۳/۷)۔ شپږمه وجه دا ده حارث الاعور اوسدی دَ علی رضی الله عنه نه روایت کړے دے چه چا دا واقعه په دا سے طریقه بیان کړه لکه چه قصّاصان ئے بیانوی او په دے باندے عقیده لری نو هغه به زه یو سل اوشپیته دُرّے اوهم (دا روایت اګرچه دَ سند په لحاظ سره ضعیف دے لیکن دَ تیر شوے وجوهو دَ تائید دَ پاره مفسرینو ذکر کړیدے۔ اومه وجه دا ده چه دا قصه په قرآن او په حدیث صحیح مرفوع کښ نیشته نو څه باعث دے چه دَ قرآن ظاهر لره پریږدو او دا قصه تفسیر اوګرځوو۔ اتمه وجه دا ده چه په دے توجیها تو کښ دَ پیغمبر دَ بیبیانو تشبیه ورکول دَ ګډو سره بے ادبی ده او دا وینا دَ ملائکو چه خصمان بغی بعضنا علی بعض هم تاویل ته محتاج دے بغیر دَ ضرورت نه تاویلونه په کلام الله تعالیٰ کښ بے مناسبه کار دے۔ دویم قول په دے وجه باطل دے چه په هغې کښ هم نسبت دَ محبت غیر شرعی دے پیغمبر ته او آخری وجه (چه مخکښ ذکر شوه) هغه هم پکښ ده۔ دریم قول او څلورم قول هم په آخری وجے سره باطل دی او ابن کثیر لیکلی دی چه دَ قرآن کریم آیاتو نه په ظاهری معنیٰ باندے جاری کول پکار دی دَ دغه قِصّو نه پکښ پرهیز کول ضروری دی۔ بیا پوهه شه چه دَ اوریا دَ قِصّے نه علاوه مفسرینو وجه دَ فتنے او ابتلاء په درے طریقو سره

إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ

يقينًا هغه كسان چه اړوي دَ لارے دَ الله تعالىٰ نه

ليكلے ده. اوله طريقه داده چه دا دوه كسان دَ فيصلے دَپاره په ديوال باندے راوړيدل نو داؤد عليه السّلام په دوى باندے گمان اوكړو چه دوى زما دَ قتل دَپاره راغلے دى ځكه چه دَ هغه دشمنان هم په هغه وخت كښ موجودوو هركله چه پس دَ فيصلے نه هغوى واپس لاړل نو معلومه شوه چه په دغه گمان كښ داؤد عليه السّلام خطا شوے وو دے خطا كيدلو ته ئے فتنه اويل او استغفار ئے او غوښتلو دا طريقه دَ قرآن دَ ظاهر سره ښه مناسب ده. دويمه طريقه مخكښ مونږ ذكر كړيده چه داؤد عليه السّلام دَ ورځو تقسيم كړے وو او دا تقسيم كول الله تعالىٰ ته خوخ نه وو نو دا واقعه ورباندے راوستله چه داؤد عليه السّلام پوهه شى چه دا تقسيم كول مناسب كار نه دے او دينه ئے فتنه اويل دا طريقه هم دَ قرآن دَ ظاهر سره مناسبت لرى بغير دَ څه تاويل كولو نه. دريمه طريقه هم مخكښ ذكر كړے شويده چه داؤد عليه السّلام دَ يو شخص په بيان سره په بل باندے فيصله اوكړه، عجلت ئے اوكړو ليكن دَ علماتو ظاهر يو دَ بيان كوؤنكى نه ئے استنباط كړے وو په دے طريقه باندے بعض مفسرينو رد كړے دے چه دا هم دَ نبى دَ شان سره مناسب نه ده چه هغه دِ دَ دواړو بيان ته اورى او فيصله دِ كوى ليكن جواب دا دے چه هركله دَ علماتو نه هغه استنباط اوكړو نو دَ بل طرف بيان اوريدلو ته ئے ضرورت محسوس نكړو او يله دا چه دَ طرفينو نه بيان اوريدل دَپاره دَ فيصلے كولو زمونږ په ملت كښ ضرورى دى كيدے شى چه دَ هغه په ملت كښ ضرورى نه وو او دا توجيه هم دَ قرآن دَ ظاهر سره مناسب ده هيڅ تاويل ته ضرورت نه لرى. او بنا په دے درے طريقو باندے نعجه نه مراد ظاهرى معنى ده او خصمان نه مراد هم انسانان دى چه دَ هغوى جګړه هم په حقيقت كښ وه تمثيل او تشبيه نه وه.

لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا يَوْمَ
دوی لره عذاب سخت دے په دے وجه چه دوی هیره کړے ده ورځ

الْحِسَابِ ﴿۲۶﴾ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ
دَ حساب . او نه دی پیدا کړی مونږ اسمان او زمکه

۲۶: "ربط دَ دے ایت تقاضا کوی چه ماقبل واقعه دَ فیصلے کولو سره تعلق لری لکه چه روستو دوه طریقے بیان شویدی او دَ واقعے دَ اوریا سره هیڅ تعلق نه لری او په دے ایت کښ تنبیت دے داؤد علیه السّلام ته او ادب او طریقه خودل دی دَ شرعی فیصلو کولو او تنبیه ده نورو خلقو ته دَ اتباع دَ خواهش په باره کښ او هرچه داؤد علیه السّلام دے نو هغه خو معصوم دے دَ هغه نه دا خطره نیشته چه تابعداری دَ خواهش به ئے کړے وی یا به ایئنده دَ پاره اوکړی" داسے مفسر الوسی په تفسیر روح المعانی کښ لیکلے دی نو کومو مفسرینو چه ویلے دی چه دا تنبیه داؤد علیه السّلام ته ورکوی ځکه چه هغه دَ اوریا دَ ښځے په حصول کښ اتباع دَ هوئ نه دخل ورکړے وو نو دغه مفسرینو دَ انصاف نه بهر خبره کړے ده او دائے دَ انبیاؤ په شان کښ گستاخی کړیده.
خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ خطیب شربینی لیکلے دی چه دَ خلیفه دوه معانی دی اوله معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ ته دَ تیر شوے انبیاؤ علیهم السّلام نه نائب گرځولے یئے په دعوة الی الله تعالیٰ او په سیاست دَ خلقو کښ او دویمه معنیٰ دا چه تاله طاقت در کړے دے چه احکام دَ الله تعالیٰ په زمکه کښ نافذ کړے نو په دے معنیٰ باندے خلیفة الله ویل جائز دی نو خلافت په معنیٰ حقیقی چه اوله معنیٰ ده په حق دَ الله تعالیٰ کښ ممتنع دے نو داسے نشی ویلے کیدے چه فلان نائب دَ الله تعالیٰ دے.
فائده :- په خلیفة الله لفظ استعمالولو کښ درے قولونه دی اوّل قول دَ جواز مطلقاً په دلیل دَ قول دَ علی رضی الله عنه سره دے اولٰئِک خلفاء الله فی ارضه او په قول دَ راعی سره چه خطاب ئے ابوبکر رضی الله عنه ته کړے وو خلیفة الرحمٰن انا معشر. حنفاء نسجد بکرة واصیلا.
دویم قول دَ منع دے مطلقاً په دلیل دَ قول دَ ابوبکر رضی الله عنه سر لست بخلیفة الله و لکنی خلیفة رسول الله صلی الله علیه وسلّم او په دلیل
پاتے په بل مخ

وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ۚ ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ

او هغه چه دَ دے په مینځ کښ دی بے فائدے دا گمان دے دَ

كَفَرُوْا ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا

کافرانو نو تباهي ده کافرانو لره

مِنَ النَّارِ ﴿۲۷﴾ اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

دَ اور نه - آیا گرځوو مونږ هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْاَرْضِ ؗ

او عملونه ئے کړی دی موافق دَ سنت سره پشان دَ هغه کسانو چه فساد کوی په ملک کښ

دَ دے چه معنیٰ حقیقی دَ خلافت دَ الله تعالیٰ په باره کښ ممتنع او محال ده او دریم قول که مراد دَ اضافت (خلیفة الله) نه نائب وی دَ الله تعالی نه نو منع دے او که اضافت نه مراد داوی چه الله تعالیٰ دِ دے خلیفه جوړ کړیدے دَ یل چانه نو دا جائز دے. لیکن هر کله چه دا لفظ موهم دے او دلیل شرعی صحیح دَ دے دَ جواز دَ پاره نیشته نو دَ دے وجے نه صحیح دا ده چه دا لفظ استعمالول شرعاً منع دی او دَ دے مسئلے تفصیل ابن قیم رحمة الله په مفتاح دارالسعادة ص۱۶۵ او زادالمعاد ص۳/۲۷ کښ کړے دے.

۲۷:- ربط دَ دے آیت مخکښ سره دا دے چه مخکښ تخویف وؤ په نسیان دَ یوم الحساب نو په دے آیتونو کښ رد په منکرینو دَ یوم الحساب او اثبات دَ قیامت دے. بَاطِلًا مراد دَ دے نه عبث او لوبے دی چه دَ هغ هیڅ فائده نه وی بلکه فائده ضرور شته او کامله فائده به په دویم ژوند کښ ښکاره کیږی چه بعث بعد الموت دے ځکه چه دَ دنیا منافع خو کالعدم دی - نو معلومه شوه چه پیدائش دَ دے مخلوق دلیل دے په دوباره ژوند باندے - او دا آیت دلیل دے چه څوک دا مخلوق عبث او لوبے گڼړی نو هغه کافر دا او دا گمان ئے سبب دَ جهنم دے.

أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِينَ كَالْفُجَّارِ ﴿٢٨﴾ كِتَٰبٌ

آیا گرځوو مونږ متقیانو لره پشان دَ نافرمانو - دا کتاب دے

أَنزَلْنَٰهُ إِلَيْكَ مُبَٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوٓا۟ ءَايَٰتِهِۦ

نازل کړے دے مونږ تاته برکتونو والا دے دَ دے دَپاره چه دوی سوچ اوکړی په آیاتونو دَ دهٔ کښې

وَلِيَتَذَكَّرَ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿٢٩﴾ وَوَهَبْنَا لِدَاوُۥدَ

او دَپاره دَ دے چه نصیحت واخلی خالص عقل والا - او اوبخو مونږ داؤد علیه السّلام ته

۲۸:. او دا دویم رد دے په منکرینو دَ قیامت باندے یعنی جزا او سزا چه حق نوی تو بیاخو مؤمن او غیر مؤمن یو شان به وی او دا بے انصافی او ظلم دے - په دے آیت کښې افساد په معنیٰ دَ کفر او شرک او دَ خلاف سنّت دے . او تکرار دَ عدم مساوات ئے ذکر کړو په جدا جدا صفتونو سره اشاره ده چه هر یو دَ صفاتو دَ ایمان او دَ افساد، او دَ تقویٰ او دَ جرم ښکاره علّت دے دَپاره دَ عدم مساوات.

۲۹:. ترغیب دے قرآن کریم ته دَ پاره دَ اثبات دَ توحید او دَپاره دَ تذکیر دَ قیامت او دَپاره دَ اثبات دَ فرق په مینځ دَ دواړو فریقو کښې چه مخکښې آیت کښې ذکر وو. مُبَٰرَكٌ تفسیر نیشاپوری کښې په تفسیر دَ سورة انعام کښې ویلے دی چه خیر دَ قرآن ډیر دے نفع همیشه ده باعث دے په ښهٔ کارونو او منع کوونکے دے دَ بدکارونو نه. او دَ الله تعالیٰ سنّت جاری دے چه څوک شغل دَ قرآن سره لری او تمسک کوی په دهٔ باندے نوځکه به عزت والا وی په دنیا او آخرت کښې او دا په تجربے سره ثابته ده.
لِّيَدَّبَّرُوٓا۟ ءَايَٰتِهِۦ مقصد دَ قرآن کریم صرف تلاوت نه دے بلکه په هغې باندے ځان پوهه ول دی او سوچ کول دی او قرطبی لیکلے دی چه په دے کښې دلیل دے چه معانی دَ قرآن ایزده کول واجب دی او دا رنگ ترتیل ( په آرام آرام سره لوستل ) افضل دی دَ تیز لوستلو نه
وَلِيَتَذَكَّرَ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ روستو دَ تدبر او فکر کولو نه بعض خلق نصیحت قبول کړی او بعض نه قبلوی چاچه قبول کړو نوهغه ته ئے خالص عقل والا اوویل. اشاره ده چه دَ علم دَ قرآن نه مقصد عمل کول دی.

سُلَيْمٰنَ ۚ نِعْمَ الْعَبْدُ ۚ اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ ﴿۳۰﴾ اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ

سلیمان علیه السلام بنده دی یقینًا دے الله تعالی ته ډیر ورګرځیدونکے وۀ. کله چه پیش کړے شو په هغه باندے

بِالْعَشِیِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ ﴿۳۱﴾ فَقَالَ اِنِّیْۤ اَحْبَبْتُ

په ماز یګر کښ په درے ښپو باندے ولاړ اسونه کړۀ. نو اُوئیل هغه یقینًا زۀ محبت کوم

حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّیْ ۚ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ﴿۳۲﴾

محبت دَ مال (اسونو) سره دَ وجے دَ یادولو دَ رب زمانه ربه دے سبب سره) ترد ے پورے چه پټ شو په پرده کښ.

۳۰:- دا دویمه قصه ده په دے کښ ذکر کوی خائسته صفات دَ سلیمان علیه السلام او ورپسے ذکر کوی ابتلاء دَ هغه دَ پاره دَ رد په مشرکینو چه ابتلاء په چا باندے راځی نو هغه شفیع قهری نشی کیدے اګرچه ډیر لوئے بزرګ وی. وَوَهَبْنَا دا بخشش دا سے دے لکه چه موسٰی علیه السلام ته دَ هغه رور هارون علیه السلام یے بخشش ورکړے وۀ نو مراد دا دے چه هغه یے نبی اوګرځوۀ دَ پاره دَ دے چه په کار دَ نبوت کښ دَ داؤد علیه السلام سره مدد اوکړی او روستو دَ وفات دَ هغه ته سلیمان علیه السلام نبی هم وۀ او بادشاه هم شو. نِعْمَ الْعَبْدُ دا یے اول صفت دے چه ډیر طاعت او عبدیت کوونکے وۀ. اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ دا یے دویم صفت دے دَ دے تفسیر مخکښ تیر شویدے.

۳۱:- په دے کښ دریم صفت دَ هغه ذکر کوی یعنی دَ جهاد فی سبیل الله او دَ رباط فی سبیل الله سره محبت کول یعنی اسونه دَ جهاد دَ پاره ساتل او دَ هغے خدمت کول سبب دَ لوئے اجر دے ومن رباط الخیل سورة الانفال او رابطوا په سورة العمران کښ تیر شویدے. اَلْعَشِیُّ روستو دَ زوال نه تر غروب پورے وخت ته عشی ویلے شی او عشاء روستو دَ غروب دَ نمر او غروب دَ شفق ته ویلے کیږی. اَلصّٰفِنٰتُ هغه اسونه دی چه ولاړ وی نو دریواړه ښپے یے مضبوطے او دَ څلورمے ښپے سوه یے سسته لګولے وی او دَ کړۀ او تیز رفتار اس علامت دے. اَلْجِيَادُ کړۀ تیز رفتار یا اوګد ا سټ والا ته ویلے کیږی.

۳۲:- په دے کښ جواب دَ وهم کوی که څوک اعتراض اوکړی چه دَ دنیا دَ څیزونو سره مینه محبت کول ګناه دے او دا دَ پیغمبر دَ شان سره مناسب نه دے نو په دے ایت کښ دَ هغے جواب دے حاصل جواب دا دے چه دا محبت دَ وجے دَ ذکر دَ الله تعالی نه دے. عَنْ ذِكْرِ په معنی دَ من اجلیه سره دے. اَلْخَيْرِ مال حلال ته ویلے کیږی او دلته مراد اسونه دَ جهاد دی او ذِكْرِ نه جهاد فی سبیل الله دے حَتّٰى تَوَارَتْ دا متعلق دے دَ عُرِضَ سره یعنی اسونه په صفونو سره هغه ته پیش شول او معلومات یے کول چه دا دَ جهاد کولو دَ پاره لائق دی او که نه ترد ے پورے چه لرے لاړل دَ هغه دَ نظر نه پټ شول.

رُدُّوْهَا عَلَيَّ ؕ فَطَفِقَ مَسْحًۢا بِالسُّوْقِ وَالْاَعْنَاقِ ﴿۳۳﴾

واپس يې کړئ په ما باندې نو شو شو چه لاس يې وهلو په پنډو او په ستو نو (د آسونو) باندې.

وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمٰنَ وَاَلْقَيْنَا عَلٰى كُرْسِيِّهٖ جَسَدًا

او يقيناً امتحان کړے دے مونږ په سليمان عليه السلام باندے او اچولے دے مونږ په کرسئ د هغه باندے يو جوسه

۳۳:- روستو د مسابقې نه اسونه يې دوباره طلب کړه لکه چه دا عادت دے د آسونو د تربيت کوونکو نو د هغې پنډې او ستونه يې بخپله صاف کړل د دوړو نه او يې تپه ول لکه چه دا عادت عامه دے او دا دليل د نهايت محبت د جهاد دے چه د هغې د آسيا بو خدمت سليمان عليه السلام بخپلو لاسونو باندے کوی او دا سے حديث کښ وارد دی چه زمونږ نبی صلی الله عليه وسلم به خپل آس په خپل څادر سره صفا کوؤ او يل حديث کښ امر را غلے دے چه د دے اسونو تندی او روستو حصه د يدن پاکوئ نو سليمان عليه السلام د غسے کړيدی او دا روايت د علی بن طلحه دے د ابن عباس رضی الله عنهما نه او حديث د عائشه رضی الله عنها کښ وارد دی چه د دے اسونو وزرے هم وے او دا حديث صحيح دے.

**فائده ۱:-** د دے ايت په تفسير کښ نور اقوال د مفسرينو هم شته اول دا چه عَنْ په خپله معنیٰ دے او د هغه نه مخکښ شغلتی پټ دے. او تَوَارَتْ ضمير نمر ته راجع دے چه لفظ د عشی په هغې باندے دليل دے. او رُدُّوْهَا ضمير هم نمر ته راجع دے او دا خطاب الله تعالیٰ ته دے يعنی د آسونو په تماشا کولو سره نمر غائب شو او مونځ د مازيګر ترينه قضا شو نو په دے باندے خفه شو نو اُويل يې چه ما د آسونو سره محبت کوؤ نو غافل يې کړم د ذکر د رب نه تر دے پورے چه نمر پټ شو. اے الله دا نمر ما ته واپس را او کرځوه نو نمر ورته واپس کړے شو او مونځ د مازيګر يې ادا کړو. ليکن دا تفسير ضعيف دے په يو څو وجوهو سره، اوله وجه داده په دے کښ نسبت د محبت د دنيا دے چه سبب د غفلت او شو د مونځ کولو نه سليمان ته او دا د نبی د شان سره نه ځائيګی دويمه وجه داده د تورات رجح ضمير يې ظاهرًا راجح دے صافنات ته ) د غه ضمير نمر ته راجع کول اګر چه لفظ د عشی په هغې دليل دے ضعيف دے ظاهر بن بخودل بلا ضرورت مناسب نه دی. دريمه وجه دا انبياء دې په وقوف د شمس باندے سليمان عليه السلام ته او په دے باندے حديث مرفوع صحيح دليل نيشه. دويم تفسير دا دے چه ضمير د توارت نمر ته راجع دے او په مينځ کښ تقدير د عبارت دے چه مونځ ترينه قضا شو نو بيا ورته نمر واپس کړے شو او ضمير د ردوها آسونو ته راجع دے په دے تفسير کښ د بے ضرورته تقدير نه علاوه هغه ضعف هم دے کوم چه په اول تفسير کښ ذکر شو. دريم تفسير دا دے چه دا ضمير برعکس کړے شی يعنی ضمير د توارت اسونو ته راجع دے او ضمير د ردوها نمر ته راجع دے ر پاتے په بل مخ )

# ثُمَّ اَنَابَ ﴿۳۴﴾ قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِیْ وَهَبْ لِیْ مُلْكًا

بیا او گرځید و الله تعالیٰ ته۔ اوویل هغه اے ربه زما۔ بخښنه اوکړه ماته او را او بخښه ماته بادشاهي

په دے قول کښ هم هغه ضعف دے چه په اول کښ ذکر کړے شو. او په دے درے وارو تفسیرونو کښ ډیر ضعف دا دے چه ورپسے دَ مسحًا بالسوق والاعناق نه مراد اخلی چه په توره باندے پریکړے پښے او ستونه دَ آسونو، نو دا په ډیرو وجوهو سره باطل قول دے اول خو هلاکول دَ مالونو دَ جهاد دی دویم دا چه ظاهر دا ده چه دا مال دَ بیت المال وؤ دَ دے اتلاف ناجائز دے دریم دا ده چه مسح په عرف دَ عرب کښ په معنیٰ دَ پریکولو نه ده راغلے او بعض اشعار په دے کښ شاذ راغلی دی، څلورمه وجه دا ده چه دَ حیوان ذبح کول صرف په مرئے حلقوم کښ دی ستِ پریکول او پښے پریکول خو ظلم دے. پنځمه وجه دا ده چه دا دَ سُدّی او کلبی قول دے او هغوی په تفسیر کښ واهیان دی. شپږم په دے باندے ابن جریر او امام رازی او شربینی وغیره رد کړے دے. اووم دَ دے قول نه بعض متصوفو استدلال کړے دے چه په حالت دَ جذبه کښ دَ ځان نه جامے شلول جائز دی ځکه چه سلیمان علیه السّلام په جذبه کښ آسونه هلاک کړل او دا استدلال شبلی ذکر کړے دے او قرطبی په هغے باندے رد کړے دے او داسے تلبیس ابلیس کښ ابن جوزی په دے باندے رد کړے دے.

س ۳۴ :- روستو دَ ذکر دَ صفاتو دَ سلیمان علیه السّلام نه ابتلاء ذکر کوی په هغه دَ پاره دَ نفی دَ الوهیت دَ هغه نه. فَتَنَّا فتنه دَ هر چا دَ هغهٔ دَ شان مناسب وی دَ انبیاؤ فتنه په حکم کښ خطاء اجتهادی یا سهو او نسیان راتلل دی او دا گناه نه دے لیکن دَ حسنات الابرار سیئات المقربین په قانون سره سبب دَ خفگان دَ انبیاؤ دَ پاره او گرځی هسے نه چه الله تعالیٰ به زمونږ نه خفه شی دَ دے وجے نه دیته فتنه وائی او په باره دَ فتنے دَ سلیمان علیه السّلام کښ صحیح قول دا دے کوم چه په حدیث صحیح کښ ذکر دے دَ هغے حاصل دا دے چه سلیمان علیه السّلام دَ جهاد دَ محبت دَ وجے نه او غوښتله چه خپل اولاد یے پیدا شی او هغه به مجاهدین فی سبیل الله وی نو او ویل یے چه زه به نن شپه په ټولو بیبیانو خپلو باندے گرځم او دَ هغوی نه چه اولاد پیدا شی هغوی به مجاهدین وی او انشاء الله تعالیٰ ویل ترینه هیر شول نو څه موده روستو دَ ولد یو ټکړه (یعنی ولد نا تمام) دَ ښځو او راوړے شو او په کرسی دَ دهٔ باندے واچولے شو چه صرف دا ولد ستا دَ یوے بی بی نه پیدا شو او دَ نورو بیبیانو هیڅ پیدا نشول نو دهٔ ته رایاد شول چه زما نه انشاء الله تعالیٰ ویل هیر شوے وو دا دَ هغے نتیجه ده نو دَ الله تعالیٰ نه یے بخښنه او غوښتله او الله تعالیٰ ته یے رجوع او کړه.

لَّا يَنْۢبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِيْۚ اِنَّكَ اَنْتَ

چه نه خائيگي هيڅ لره روستو زمانه يقينًا ته

الْوَهَّابُ ﴿۳۵﴾ فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيْحَ تَجْرِيْ

بخشش ورکوونکے يئے. نو په خدمت دَ هغه کښې هم اونګوله هوا روانه په وه

بنا په دے دَ جسد نه مرادو ليانا تمام دے. دا صحيح حديث دے او دَ انبياؤ عليهم السلام دَ قوت نه دا بعيداه نه ده چه شلو بيبيانو ته يو شپه کښې نزديکت اوکړی او بله ضروری خبره داده چه په احاديث دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم باندې په خپل عقل سره تلل جائز نه دی نو صرف په عقل سره دَ دے حديث يا دَ نورا حاديثو صحيحو رد کول ظلم دے. دَ دے نه علاوه کوم اقوال چه مفسرينو ذکر کړے دی او په هغے کښې بنياد دَ بادشاهئ دَ سليمان عليه السّلام په ګوتے دَ هغه باندے ايخودلے شوے دے او دَ شيطان په شکل دَ سليمان عليه السّلام جوړيدل او په مسلمانانو باندے بادشاهی کول او شيطان په کور دَ سليمان عليه السّلام باندے مسلّط کيدل وغيره هفوات دی دَ دے په باره کښې ابن کثير او قرطبی او رازی او شربيني وغيره فيصله کړے ده چه دا دَ يهوديانو نه راغستلے شوے روايت دی هغوی په سليمان عليه السلام باندے ډير دروغ جوړ کړيدی دا دَ دغه دروغو يوه کړئے ده او ابن حيان البحر المحيط کښې ويلے دی چه نقل کړيدی مفسرينو په باره دَ فتنه او جسد کښې دا سے اقوال چه واجب دے براءة دَ انبياء عليهم السّلام دَ هغے نه هغه دد ے مفسرينو په کتابو نو کښې دی دَ هغے نقل کول موږ له روانه دی او يا دا دَ يهوديانو او زنديقيانو وضع کړے شوے خبرے دی او او الله تعالیٰ موږ ته دَ فتنے او جسد بيان نه دے کړے ليکن ظاهر په يکښې هغه دے چه حديث دَ لاطوفن الليلة کښې راغلے دے (مخکښې موږ ذکر کړو).

ف۳۵: دا ادب دے دَ انبياء عليهم السّلام چه دَ تواضع او خشوع دَ اظهار دَ پاره او دَ حصول دَ ترقے دَ درجاتو دَ پاره استغفار غواړی دا دليل په دے باندے نه دے چه سليمان عليه السّلام څه ګناه کړے وو.

او استغفار سبب دَ ترقے دَ دنيا هم دے دَ دے وجه نه دَ دُعا دَ بادشاهئ نه ئے استغفار مخکښې ذکر کړو. وَهَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْۢبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِيْ (سوال) دَ انبياؤ عليهم السّلام دَ شان نه بعيده ده چه دَ دُنيا بادشاهی د غواړی؟ (جواب) دَ دنيا بادشاهی او مالونه چه (پاتے په بل مخ)

بِاَمْرِهٖ رُخَآءً حَيْثُ اَصَابَ ﴿۳۶﴾ وَالشَّيٰطِيْنَ

په حکم دَ هغه سره نرمه کوم خوا چه به دے تللو او شيطانان

دَ دين دَ حفاظت دَ پاره استعماليږي دَ هغ طلب کول جائز دی بلکه عبادت دے نو سليمان عليه السّلام دَ دين دَ حفاظت دَ پاره دا سوال کوی او وجه داده چه تمنا دَ دهٔ حاصله نه شوه چه مجاهدين اولادے ئے طلب کول دَ حفاظت دَ دين دَ پاره نو اوس بادشاهی طلب کوی دَ حفاظت دَ دين دَ پاره. لَا يَنْۢبَغِیْ لِاَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِیْ مراد دَ دے داسے بادشاهی ده چه په سليمان عليه السّلام پورے خاص وی او دليل په دے باندے حديث صحيح دَ بخاری دے مضمون ئے دا دے چه نبی صلّی الله عليه وسلم فرمائيلی دی "چه بيګاه شپه يو سرکش پيرے په ماپسے دَ مانځه په حالت کښ راغے موځه ئے په ما باندے کړے وه کاؤ نو الله تعالیٰ ماله په هغه باندے قدرت راکړو بيا مې اراده اوکړه چه دَ مسجد په يوستن پورے او تړم چه صباځے تاسو اوينے ليکن ماته دَ سليمان عليه السلام دا دُعا ياده شوه دَ دے وجے ما اونه تړلو". نو دا حديث صريح دے چه سليمان عليه السّلام خصوصيت دَ خپل ځان دَ پاره طلب کوؤ. او دَ دے نه معلومه شوه چه جنات رانيول او تړل ممکن دی او په سحر منترو سره هم کيدے شی ليکن جائز نه دی.

(سوال) دَ دے دُعا خصوصيت دَ ځان دَ پاره بخل دے دَ انبيا عليهم السّلام دَ شان سره نه خائيګی؟

(جواب) زمخشری ذکر کړيدی چه مراد دَ دے خصوصيت نه معجزه ده او معجزه طلب کول دَ پاره دَ دے چه تصديق دَ توحيد او دَ نبوت حاصل شی دا دَ انبياء عليهم السّلام کار دے. او په تفسير دَ لا ينبغی الخ کښ نور اقوال هم شته ليکن هغه ضعيف دی او هر کله چه دَ داسے بادشاهۍ دَ حصول دَ پاره اسباب دَ سليمان عليه السّلام سره نيشته نو دَ دے وجے نه توسل په دے نوم دَ الله تعالیٰ سره کوی چه اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ. بخته کوونکے ئے بغير دَ عوض او بے اسبابو.

۳۶ تا ۳۷ تا ۳۸ :. په دے اياتونو کښ اشاره ده استجابت دَ دُعا دَ سليمان عليه السّلام ته او دَ معجزانه بادشاهۍ په طور سره اول هوا مسخر کړے شوه چه په هغ سره به دَ دهٔ تخت دَ دهٔ دَ مقتضیٰ موافق چليدلو.

كُلَّ بَنَّآءٍ وَّغَوَّاصٍ ﴿٣٧﴾ وَّاٰخَرِيْنَ

هر اَبادی کوونکی او غوپے وهونکے او نور چه یو ځائے به

مُقَرَّنِيْنَ فِى الْاَصْفَادِ ﴿٣٨﴾ هٰذَا عَطَآؤُنَا

تړلے شویوو په زنځیرونو کښ. دا بخشش زمونږ دے

فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٩﴾

نو احسان کوه یا ئے راټینګ کړه بغیر د حساب نه.

بِاَمْرِهٖ کښ اشاره ده مقتضیٰ ته رُخَآءً تابعدارا او نرم ته وائی. تابع خوبه هر وخت وه او کله به نرمه وه او کله به تیزه شوه دے وجے نه سورة انبیاء ۸۱ کښ عاصفة ذکر دے - او یا د نرم نه مراد دا دے چه اگرچه تیزه وه لیکن رفتار د سلیمان علیه السلام کښ به ئے پریشانی او کړاوونه نه راوستلو. اَصَابَ په معنیٰ د اراده او د قصد کولو دے رسیدل مراد نه دی.

او دویم سرکش پیریان مسخر کړے شول چه هغه سخت کارونه ئے کول چه انسانانو یه کولے نشو. بَنَّآءٍ اَباد به ئے کولے لکه سورة سبا ۱۳ کښ تیر شویدی او غَوَّاصٍ دریاب کښ به ئے غوپے وهلے دِے د پاره چه ملغلرے راوباسی - او چا به چه د تابعدارے نه اعراض کوو نو هغوی به ئے بندی کول او په زنځیرونو کښ تړل.

۳۹: هٰذَا کښ اشاره ماقبل بادشاهئ او تسخیر د هوا او د شیاطینو ته - ده عَطَآؤُنَا په دے سره وهم دفع کوی چه یهودیانو مشهور کړے وو چه سلیمان علیه السلام ساحر وو دا تسخیر ئے پسبب د جادو سره کړے وو نو جواب اوشو چه دا بخشش د الله تعالیٰ د طرف نه وو په جادو متتر سره نه وو. فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ یعنی په دے کښ سلیمان علیه السلام د دُنیا د یو قانون پابند نه وو که یو قیدی ئے ازاد وو او که نه ازادوو او ګناه ورباندے هم نه وه.

وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ ﴿۴۰﴾

او یقینًا دهٔ لره زمونږ سره ځاځا نزدیکت دے او ښائسته ځائے د ورتللو .

وَاذْكُرْ عَبْدَنَا أَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ

او یاد کړه بنده زمونږ ایوب علیه السّلام چه اواز یې ورکړو رب خپل ته

أَنِّي مَسَّنِيَ الشَّيْطَانُ بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ ﴿۴۱﴾

بیشکه زهٔ چه یم رسولے دے ماته شیطان په مرض او تکلیف سره --

ف۴۰ :. اشاره ده چه دغه دنیوی نعمتونه سبب دَ لرے والی دَ الله تعالیٰ نه او دَ جنت نه وو لکه چه دَ نورو سرمایه دارو مالداری منافی وی دَ اخرت سره

فائده :- په واقعه دَ داؤد علیه السّلام کښ دَ هغه سجده هم ذکر کړه دَ دے وجې نه هلته یې تصریح کړے ده په غفرنا سره او دلته ذکر دَ سجدے نه وؤ دَ دے وجې نه مغفرت یې صراحتًا نه دے ذکر کړے او دا رنګ په لفظ دَ استغفر کښ ډیره مبالغه او عاجزی وه په نسبت دَ رب اغفرلی نو معلومه شوه چه دَ داؤد علیه السّلام تضرع او عبدیت ډیر زیات وؤ (والله اعلم).

ف۴۱ :. دا دریمه قصّه ده، دَ داؤد علیه السّلام ابتلاء په باره دَ شرعی فیصلو کښ وه او دَ سلیمان علیه السّلام ابتلاء په باره دَ محبت دَ جهاد کښ وه او دَ ایوب علیه السّلام ابتلاء په نفس دَ دهٔ کښ وه یعنی په بدن او په مال کښ. او اول دواړه بادشاهان او عابدان وو او ایوب علیه السّلام سرمایه دار او عابد وؤ. او هر کله چه مقصد په ابتلاء کښ اثبات دَ عبدیت دے دَ دے وجې نه دَ هغه صفت یې ذکر کړو په عَبْدَنَا سره او تفسیر دَ عبدیت یې ذکر کړے په دے قول سره إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ أَنِّي مَسَّنِيَ الشَّيْطَانُ بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ. دَ قتاده قول دے چه شربینی نقل کړے دے چه نُصْبٍ مرضونه بدنی دی او عَذَابٍ مصیبتونه خارجی دَ هلاکت دَ اهل او دَ مال دی.

شیطان ته په نسبت کولو کښ مشهور قول دَ مفسرینو دا سے قصّے دی چه مناسب نه دی دَ شان دَ انبیاء علیهم السّلام سره او قرطبی ویلے دی "چه قران او سنّت صحیحه کښ دَ دغه واقعاتو هیڅ ذکر نیشته

وقف لازم

ارْكُضْ بِرِجْلِكَ ۚ هَٰذَا مُغْتَسَلٌ بَارِدٌ وَّ

اُوهه زمکه په خپله خپه یا تندے دا ځائے د لامبلو دے یخ او

شَرَابٌ ﴿٤٢﴾ وَوَهَبْنَا لَهُ أَهْلَهُ وَمِثْلَهُمْ

اوبه د څکلو دی۔ او او بخلو مونږ ده ته یال بچ د ده او پشان د هغوی

او اسرائیلیات د علماؤ په نیز پریخودلے شوے دی نو د هغے نه سترگے واړوه او غوږونه ترینه کاڼړه کړه څکه دا به ستا په فکر کښ خیالات زیاتوی اوستا په زړه کښ فساد پیدا کوی" (ترجمه تفسیر قرطبی) نو په دے نسبت کښ صحیح قول دادے چه افعال ټول د خیر اوشر د ایمان او کفر طاعت او معصیت ټول په خلق د الله تعالیٰ سره دی لیکن ادب دادے چه د شر نسبت الله تعالیٰ ته دے پکار او شیطان ته د نسبت وجه داده چه په تکالیفو او مصیبتونو د صالحینو سره شیطان خوشحالیږی او سبب او گرځی د هغه د وسوسو لکه چه د نسیان نسبت یوشع علیه السلام شیطان ته کړے دے وما انسانیه الشیطان ان اذکره سورة کهف۔

**فائده:** په قران کریم کښ د سورة الانبیاء او د دے سورت نه اجمالی طریقے سره معلومه ده چه د هغه په بدن کښ بیماری او تکلیف وؤ لیکن په هغے کښ داسے مبالغے کول چه د نبی په باره کښ عیب وی جائز نه دی مفسر الوسی په تفسیر روح المعانی کښ د دے ایت په ذیل کښ د اهل تحقیقو دا قول نقل کړے دے چه انبیاء علیهم السلام باندے عوارض بشریه راتلے شی بشرطیکه حرام مکروهه او مباح، عیب، جن او نفرت پیدا کوؤنکی نه وی نو شل کیدل برص جذام ړوندوالے لیونتوب وغیره وربانده نشی راتلے۔

۴۲:۔ دا استجابت د دُعا د هغه دے او طریقه د علاج ده د الله تعالیٰ د طرف نه ارْكُضْ بِرِجْلِكَ رکض په پونده او خپه باندے یوشے وهل دی او دلته قلنا مقدر دے۔ بیا په دے کښ دوه قولونه دی مشهور قول دادے چه خپه وهل د دے د پاره چه چینه راپیدا شی دویم قول دا چه د دے د پاره چه مرضونه ترینه او دوریږی او هریو معجزه ده۔ او تفسیر قرطبی کښ سخت رد ئے کړے دے په هغه متصوفه گمراهانو چه د دے لفظ نه استدلال کوی (پاتے په بل مخ)

مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا وَذِكْرٰى لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿۴۳﴾

ورسره د دوی د رحمت زموږ نه او نصیحت خالص عقل والو لره.

وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَاضْرِب بِّهِ وَلَا تَحْنَثْ ۗ

او ونیسه په لاس خپل کښې جارو تو اُوهه په هغې (بي بي خپله) او قسم مه ماتوه،

إِنَّا وَجَدْنَاهُ صَابِرًا ۚ نِّعْمَ الْعَبْدُ ۖ إِنَّهُ

یقینًا موندلے وو مونږ دے صبرناک ښه بنده وو یقینًا دے

أَوَّابٌ ﴿۴۴﴾ وَاذْكُرْ عِبَادَنَا إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ

رجوع کونکے وو الله تعالی ته. او یاد کړه بندګان زموږ ابراهیم او اسحاق

چه کلا اکول جائز دی او دا عین تحریف معنوی دے او مونږ په تفسیر د لا تمش فی الارض مرحا کښں د دے تردید ذکر کړے دے.

هٰذَا مُغْتَسَلٌ بَارِدٌ وَّشَرَابٌ دا طریقه د علاج د بدن ده چه په غسل سره به ظاهری مرضونه زائل شی او په څکلو سره به د باطن مرضونه زائله شی. مغتسل او بوته وائی او ځائے د غسل ته هم ویلے کیږی.

۴۳: دا استجابة د دُعا په باره د اهل کښں دے چه اهل د هغه کلا ورو شوے وُو یا مړۀ شوے وو الله تعالی بیا راجمع یا ژوندی کړل دا هم معجزه وه.

رَحْمَةً مِّنَّا اشاره ده چه په الله تعالی باندے څوک زور او نه دی شفیع قهری نیشته صرف د الله تعالی رحمت دے. ذِكْرٰى لِأُولِي الْأَلْبَابِ. نصیحت دا دے چه په صبر کښں کامیابی ده او رحمت د الله تعالی واسع دے د هغے نه نااُمیدی جائز نه ده او تضرع او عاجزی الله تعالی قبلوی.

۴۴: دا عطف دے په ارکض باندے یا په وهبنا باندے په تقدیر د قلنا سره. او دا تدبیر دے د پاره د بچ کیدلو ایوب علیه السلام لره د قسم د ماتولو نه چه هغه قسم کړے وُو چه زه دا ښځه سل دُرّے وهم او د ښځے د وهلو سبب کښں ډیر اقوال دی اصح په کښں دا دے چه ابلیس دے ته متشکل شو په شکل د یو طبیب یو رته اویل چه زه به ستا د مرض علاج او کړم او هیڅ اجرت نه غوارم سوا د دے نه چه هغه به یو پسکورے زما په تقریب سره ذبح کړی یا ته به اوائے چه دا شفا ورله تا ورکړیده دهغے بی بی په دے باندے فکر راتغ چه دا څوک دے او خپ ئے اویل خو هغه خیره ئے ایوب علیه السلام

ته اورسوله هغه ډیر غصه شو (وجه دَ غصے داده چه تا دومره زمانه په توجیها کښې تیره کړه نو ولے پوهه نه شوے چه دا یومشرک ووَاو تاته ئې دَ شرک کلمات اوخودل) نو زه به تا سل دُرّے اوهم. لیکن هر کله چه هغه ښځۀ په دے خبره باندے عقیده او عمل نه وُو کړے صرف ایوب علیه السّلام ته ئې راوړسوله نو هغه مجرمه نه وه نو دَ هغې وهل په سل دُرّو سره ظلم جوړیدو او که بالکل ئې وهل دَ هغې منع کړے وے نو ایوب علیه السلام په قسم کښې حانث کیدلو نو الله تعالیٰ داسے تدابیر او مخرج هغه ته اوخایو چه په هغې سره ښځه دَ ظلم نه بچ شی او ایوب علیه السلام به دَ قسم ماتولو نه بچ شی. او دَ دے نه معلومه شوه چه خاوند لره وهل دَ ښځۀ تادیبًا جائز دی لیکن دَ حد نه زیاتے به نه کوی.

ضِغْثًا هغه جارو ته ویلے کیږی چه په هغې کښې سل کترکی وی یا هغه څانګه ته ویلے کیږی چه مشتمله وی په سلو وړو وړو څانګو باندے.

فائده ۱:- ایوب علیه السلام ته چه کومه طریقه اوخودلے شوه دے ته په شرع کښې مخرج ویلے کیږی حیله ویل ورته مناسب نه دی ځکه حیله اګرچه په لغت کښې مطلق تدبیرِ خفی ته ویلے کیږی لیکن اکثر استعمال دَ دے په هغه طریقه سره دے چه په هغې کښې خباثت وی او دا ذکر کړے دے راغب په مفردات القرآن کښې. بیا په دے طریقه کښې دَ علماؤ اختلاف دے دَ مجاهد او دَ عطاء نه نقل دی چه دا په ایوب علیه السلام پورے خاص ده او بعضو ویلے دی چه دا رخصت باقی دے په حدود او ایمان (قسم) کښې زمونږ په شریعت کښې ځکه چه حدیث دَ مخدج (ناقص الخلقة) چه زنا ئې کړے وه او غیر محصن وُو نو نبی صلی الله علیه وسلم دَ هغه دَوهلو دَپاره داسے طریقه خودلے وه او ایمان ئې په دے باندے قیاس کړے دے او اصح داده چه په حدود کښې په وخت دَ ضرورت کښې جائز ده دَ وجے دَ حدیث نه او په ایمان کښې دا طریقه جائز نه ده ځکه چه دلیل شرعی نیشته او بل دا چه کفاره زمونږ په شریعت کښې شته دے.

فائده ۲:- مبسوط او عالمګیری وغیره فقهاؤ احناف حیله کښې اقسام ذکر کړے دی بعضِ جائز دی او بعضِ ناجائز دی اول قسم حیله کول دَپاره دَ دفع کولو دَ ظلم دَ مظلوم نه لکه دا طریقه دَ ایوب علیه السّلام نو دا جائز ده دویم دَ یو مباح څیز دَ حصول دَپاره جائز طریقه راوړے په بل ځې

وَ يَعْقُوْبَ اُولِي الْاَيْدِيْ وَالْاَبْصَارِ ﴿۴۵﴾

او یعقوب علیهم السلام خاوندان دَ لاسونو (عملونه) او دَ سترګو وو (علم) ۔

اوکړی لکه واقعه دَ یوسف علیه السّلام کښی دا هم جائز ده (لیکن صحیح دا ده چه هغه خاص وه په یوسف علیه السّلام پورے لکه چه دَ هغے تحقیق تیرشویدے) دریم قسم حیله کول دَپاره دَ رسیدلو حراموته لکه حیله دَ اصحاب سبت او داسے حیله دَ اسقاط مروجه په دے ملک کښی چه فدیه اغستل مالدار دَپاره حرام وی او دا رنګ فدیه کمول دَ مقدار شرعی نه منع دی لیکن په حیله مروجه سره هغه دواړه کاروته جائز اوګرځوی او نور ډیر مفاسد په دیکښی شته دے نو دا ناروا ده ۔ څلورم قسم حیله دَ یو حق شرعی دَ ساقط کولو دَپاره دَ دے چه زکوٰة او شفع وریاندے واجب نشی دَ دے دَ جواز نسبت امام یوسف ته کړے شوے دے او دَ امام محمد په نیز ناجائز ده او فتاوی عالمګیریه کښی لیکلی دی چه فتوی په قول دَ امام محمد باندے ده او صاحب دَ روح المعانی لیکلی دی کل حیلة اوجبت ابطال حکمة شرعیة لاتقبل (په هره حیله سره چه لازمیږی دَ حکمت شرعیه ساقطیدل نو هغه نه قبلیږی) دا غوره قاعده ده۔
اِنَّا وَجَدْنٰهُ صَابِرًا دا دلالت کوی دَ ایوب علیه السلام په ډیرو مصیبتونو او په هر مصیبت باندے صبر کول ځکه چه داسے عبارت استعمالیږی په مقام دَ تجربه کولو کښی په یو شخص باندے یا په یو کار باندے.
نِعْمَ الْعَبْدُ مخکښی هم دَ دهٔ عبدیت ذکر کړے شوے وو دَ وجے دَ تضرع الی الله نه دوباره ئے ذکر کوی په نِعْمَ سره دَ وجے دَ غیرت کولو په توحید باندے چه دَ هغے دَ وجے نه ئے دَ شیخ دَ وهلو عزم کړے وو۔
۴۵ تا ۴۸ :۔ دا ذکر دَ ابتلاءاتو دے اجمالاً په دغه درے انبیاء علیهم السّلام باندے چه دَ هغوی دَ ابتلاءاتو بیان په نورو سورتونو کښی راغلی دے او مقصد په دے کښی اثبات دَ عبدیت دَ دوی دے دَ دے وجے نه لفظ عِبَادَنَا ئے ذکر کړے دے . بیا ئے دَ دوی پنځه اوصاف دَ کمال ذکر کړے دی اول او دویم اُولِي الْاَيْدِيْ وَالْاَبْصَارِ په اول کښی مراد دے قوت او کثرت دَ اعمالو دَ خیر۔
الایدی جمع دَ ید ده په معنی دَ لاسونو لیکن اکثر عملونه په لاسونو

إِنَّا أَخْلَصْنَٰهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ ﴿۴۶﴾

یقینًا غوره کړي دو موږ دوی په غوره والی سره چه یادول دَ کور روستنی دی.

وَإِنَّهُمْ عِندَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ ﴿۴۷﴾

او یقینًا دوی په نیز زموږ خامخا دَ صفا کړي شوی غوره خلقو نه وو.

وَاذْكُرْ إِسْمَٰعِيلَ وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ

او یاد کړه اسماعیل او الیسع او ذوالکفل علیهم السلام.

بانده کیږی دَ دے وجے نه مراد دَ ایدی نه عملونه دی یا یَدًا په معنیٰ دَ نعمت دے یعنی په دوی بانده نعمتونه دَ الله تعالیٰ ډیر دی یا دَ دوی احسانونه دَ خلقو سره ډیر وو په سبب دَ دعوة الی الخیر.

وَالْأَبْصَارِ مراد تری نه بصیرت قلبیه دے یعنی خاوندان دَ علم او دَ معرفت الٰهیه وو او په دے صفتونو ذکر کولو کښ لطیفه اشاره ده چه کوم خلق دَ دوی مخالفت کوی نو دَ هغوی مثال داسے دے چه لاسونه او سترګے نه وی. إِنَّا أَخْلَصْنَٰهُم دا دریم صفت دے بِخَالِصَةٍ یعنی خصلتِ خالصه یعنی حالت او صفت پاک. ذِكْرَى الدَّارِ دلته هُم پټ مراد دے یعنی هغه صفتِ خالصه دا دے چه دوی هر وخت آخرت یادوی دَ هغے دَ پاره تیاری کوی او نورو خلقو ته دَ هغے تذکیر ورکوی. وَإِنَّهُمْ عِندَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ دا څلورم او پنځم صفت دے الْمُصْطَفَيْنَ کښ صفت لازمی سلبی ته اشاره ده چه دَ دوی ذاتونه دَ خیرو (ګناهونو) نه پاک دی الْأَخْيَارِ کښ صفت متعدی ایجابی ته اشاره ده یعنی په نسبت دَ نور مخلوق سره دوی غوره دی او خاوندان دَ نیکو کارونو دی دَ ځان سره او دَ نورو خلقو سره. خطیب شربینی ویلی دی دا دلیل دے چه انبیاء علیهم السّلام دَ ګناهونو نه پاک دی ځکه چه مطلق اصطفاء سره دَ مطلق خیریت نه دلالت کوی په عصمت بانده.

وَكُلٌّ مِّنَ الْاَخْيَارِ ﴿٤٨﴾ هٰذَا ذِكْرٌ

او دا ټول وو د غوره خلقو نه . دا (یو قسم) ذکر دے

وَاِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ لَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿٤٩﴾ جَنّٰتِ

او یقینًا شته چه متقیانو دپاره ښائسته ځائے د ورتللو دے جنتونه

عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْاَبْوَابُ ﴿٥٠﴾ مُتَّكِـِٕيْنَ

د دیره کیدلو پرانستے شوے به وی دوی ته دروازے . تکیه به وهلے وی دوی

فِيْهَا يَدْعُوْنَ فِيْهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ

په هغې کښ غواړی به دوی په هغې کښ میوے ډیرے

وَّشَرَابٍ ﴿٥١﴾ وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ

او څښکل . او د دوی سره به وی بندونکی د سترګو خپلو په خاوندانو باندے

سـ۴۸ :. دا درے انبیاء علیهم السلام ذکر کوی اشاره ده د دوی ابتلاءاتو او په هغې باندے صبر کولو ته د اسماعیل علیه السلام د وړوکوالی ابتلاء او صبر سورة صافات کښ ذکر شوے دے او د الیسع بن اخطرب او ذوالکفل (بشر بن ایوب) علیهم السلام تفصیلی حالات الله تعالیٰ ته معلوم دی. مِنَ الْاَخْيَارِ کښ اشاره ده د دوی مصیبتونو ته په دعوت الی الله کښ او په هغې باندے صبر کول او نور اعمالو صالحو ته. د ځکنو درے او د دے درے انبیاء علیهم السلام په احوالو کښ ئے تفاضل او فرق ته اشاره او کړه په تفاوت د تعبیر سره او الله تعالیٰ خه عالم دے په فرق د درجاتو د دوی لیکن زموږ اجمالی عقیده ده تلك الرسل فضلنا بعضهم علی بعض باندے.

د سـ۴۹ نه تر سـ۵۴ پورے. روستو د بیان د ابتلاءاتو د انبیاء علیهم السلام نه بشارتِ اخرویه ذکر کوی دِدے انبیاؤ او د دوی تابعدارانو لره او لفظ د متقین کښ دا ټول داخل دی. هٰذَا ذِكْرٌ تنوین د پاره د تنویع دے او نوع عظیمه مراد ده یعنی دا چه تیر شو ر واقعات د انبیاء علیهم السلام) یو قسم عظیم الشان نصیحت دے او ذکر جمیل د هغوی دے په دنیا کښ او هر چه په اخرت کښ ئے د دوی نو وَاِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ او دا لفظ ئے ځکه راوړو چه د

أَتْرَابٌ ﴿۵۲﴾ هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِيَوْمِ

همزولے. دا هغه دی چه وعده یئے کیدلے شوه تاسو سره دَپاره دَ ورځ

الْحِسَابِ ﴿۵۳﴾ إِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهٗ

دَ حساب. یقینًا دا بخشش زمونږ دے نیشته دهٔ لره

مِنْ نَّفَادٍ ﴿۵۴﴾ هٰذَا ۚ وَإِنَّ لِلطّٰغِيْنَ

هیڅ خلاصیدل. دا یل قِسم ذکر دے، او یقینًا سرکشانو دَ پاره

سورة دَاول سره مربوط شی (والقرآن ذی الذکر) وَإِنَّ عطف دَ مضمون دے په مضمون دَ ماقبل باندے هذا ذکر رؤساء التقوی فی الدنیا واما ذکرهم فی الاٰخرة وان للمتقین.

او په دے بشارت کښې لس امور ذکر کوی - حسن مأب - جنات عدن بدل دے ماقبل ته - مفتحة لهم الابواب یعنی جنّت ته دَ داخلیدلو په وخت بیا جنّت کښې د ننه دَ بنګلو دروازے به دوی ته پرانستے وی لکه چه سورة زمر ۷۳ کښې دی - متکئین دا اجمالی حالت دے او نورو ایاتونو کښې تفصیل دے (علی الارائك متکئون - متکئین علی رفرف خضر) - يَدْعُوْنَ فِيْهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ وَّشَرَابٍ یعنی رنګارنګ میوے او ډیر قسمونه دَ مشروباتو.

حرف دَ با دَپاره دَ ملابست دے یعنی اواز به ورکوی خادمانو ته نو هغوی به حاضرېږی متلبس به وی په میوؤ او شرابو - وَعِنْدَهُمْ قاصرات الطرف دبیان دَ مکان او خوراک او څکاک نه روستو دَ بیبیانو ذکر کوی او نظر کول د شئ خپل خاوند ته چه بل چا ته نه ګوری اشاره ده دَ دوی ډیر والی دَ حیا او محبت کولو ته دَ خاوندانو سره. اتراب یعنی په عمر کښې او په حسن او جمال کښې برابر یوشان دی په روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښې راغلی دی چه دَ ټولو عمر به درے دیرش کلونه وی یا دا چه دَ خاوندانو سره به هم عمر وی. هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ یعنی ورځ دَ حساب دَ دوی دَپاره ورځ دَ انعاماتو ده مناقشه دَ حساب نیشته - إِنَّ هٰذَا لرزقنا ماله من نفاد. مراد دَ دے نه دوام دَ جنّت او دَ نعمتونو دَ هغے او دَ اهل جنت دے لکه عطاء غیر مجذوذ سورة هود ۱۰۸ اولهم اجر غیر ممنون تین ۶ دارد دے په هغه چا چه قول کوی په فنا دَ جنّت او دَ اهل جنّت سره

پاتے په بل مخ

لَشَرَّ مَاٰبٍ ﴿۵۵﴾ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ

بد ځائے د ورتللو دے جهنم دے ورداخليږی به دوی هغې ته نو ناکاره

الْمِهَادُ ﴿۵۶﴾ هٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ

د ارام ځائے دے دا خو اوڅکے خوټکيدلے اوبه دی

وَغَسَّاقٌ ﴿۵۷﴾ وَاٰخَرُ مِنْ شَكْلِهٖٓ اَزْوَاجٌ ﴿۵۸﴾

او وينے زوے دی . او نور عذابونه دی د دے پشان قسما قسم .

هٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ لَا مَرْحَبًا بِهِمْ

دا يو ډله ده ورننوځې تاسو سره (او به وائی مشران) مرحبا (خوشحالی) تيشته دی لره

اِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ ﴿۵۹﴾ قَالُوْا بَلْ اَنْتُمْ

يقيناً دوی داخليږی په اور ته . دوی به اُوائی بلکه تاسو ،

دَ ۵۵ نه ۶۴ پورے . دا تخويف اخروی دے په مقابل دَ بشارت دَمتقينو
کښ او دا هم مشتمل دے په لس حالاتِ قبيحه دَ اهل جهنّم. هٰذَا مبتدا ده
خبر ئې حذف دے يعنی هذا ذکرٌ. دا بل قسم ذکر وو يعنی دَ نعمتونو
دَجنّت ذکر ووُ اوس دَ جهنّم حالت واورئ .
وَاِنَّ لِلطّٰغِيْنَ مراد دَ دے نه کامل طغيان والا دے يعنی مشرک
لَشَرَّ مَاٰبٍ دا اول حال دے په مقابل دَ حسن مأب کښ. جَهَنَّمَ بيان دے
دَ شر ماٰب. فَبِئْسَ الْمِهَادُ هغه ځيز چه دوی ځان دَ پاره تيار کړے دے
يا مراد ترينه فراش دے. هٰذَا په دے کښ هم تقدير دے يعنی الامر
هذا. يا هذا مبتدا ده حميم وغساق ئې خبر دے او په مينځ کښ جمله
معترضه ده. غَسَّاقٌ هغه گندګی چه بهيږی به دَ بدنونو او دَ زخمونو دَ
جهنم والو نه. يا مقابل دَ حميم دے يعنی ډير يخ چه دَ ډير يخ والی دَوجه
نه سوزول کوی. او حديث دَ ترمذی کښ وارد دی که چرے يو بوقه
دَ غساق نه په دنيا کښ تو ئے کړے شی نو ټول دُنيا والا به بدبويه
شی. وَاٰخَرُ مِنْ شَكْلِهٖٓ اَزْوَاجٌ يعنی عذابٌ اٰخَرُ مِنْ شَكْلِهٖ ضمير په تاويل
دَ مذکور سره حميم او غساق ته راجع دے. اَزْوَاجٌ ډير قسمونه دَ عذاب
به وی. هذا فوج مقتحم معکم. دا ذکر دَ براءت دَ الهو باطلو او دَ

لَا مَرْحَبًا بِكُمْ ؕ اَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوْهُ لَنَا ۚ فَبِئْسَ

مرحبا نیشته تاسو لره ، تاسو رامخکښې کړے دے دامونږ ته نو ناکاره

الْقَرَارُ ﴿۶۰﴾ قَالُوْا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا

ځائے دے . اویه وائي دوی اے ربه زمونږه چاچه رامخکښې کړے مونږ ته دا

فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِي النَّارِ ﴿۶۱﴾ وَقَالُوْا

نو زیات کړے هغه لره عذاب دوچند په اُور کښې . او دوی به اُوائي

مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ

څه وجه ده مونږ لره چه نه وینو هغه سړی چه شمارل به مونږ هغوی لره

مِّنَ الْاَشْرَارِ ﴿۶۲﴾ اَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا

دَ شر والو نه ایا کرځولے وو مونږ هغوی لره مسخره کړے شوی

اَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْاَبْصَارُ ﴿۶۳﴾ اِنَّ ذٰلِكَ

یا کږے دی دَ دوی نه سترګے زمونږ . یقینًا دا

عابدانو دَ هغوی دے دَ یوبل نه . یعنی هرکله چه مشران دَ دوی جهنّم ته مخکښې داخل شوی وی او تابعداران دَ هغوی به ملائکو راروان کړے وی او دَ هغوی ته به ئے روستو داخلوی نو ملائک به اوائي مشرانو دَ دوی ته هٰذَا فَوْجٌ غټ جماعت ته فوج وائي. مُقْتَحِمٌ په زور سره داخلولو ته تنګ ځائے کښې اقتحام وائي . ځکه چه دَ دوی ځایونه به په جهنم کښې تنګ وی. لَا مَرْحَبًا بِهِمْ دا قول دَ دوی دَمشرانو دے او دا دعاءِ شر ده یعنی دوی له دِ فراخی نصیب نه شی یا جمله خبریه ده اِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ داهم قول دَ مشرانو دے او علت دے دَ لا مرحبا دپاره . بَلْ اَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ یعنی تاسو دَ دے (عدم وسعت) حقدار ئے او علت ئے دا دے چه اَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوْهُ لَنَا ضمیر کفر او شرک ته راجع دے چه په قرینے سره معلومیږی. فَبِئْسَ الْقَرَارُ قرار آرام ته وئیلے کیږی نو دا جمله په طریقه دَ تهکم او دَ زورنے سره ده قَالُوْا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا تقدیم په طریقه دَ دعوت سره دے یعنی څوک چه داعی وی شرک ته نو هغه دپاره دوچند عذاب پکار دے لکه سورة احزاب ۶۸ کښې راپاتے په بل مخ)

لَحَقٌّ تَخَاصُمُ اَهْلِ النَّارِ ﴿۶۴﴾ قُلْ اِنَّمَآ

واقعی خبره ده جګړه ده دَ اُور والو - ته اُوایه یقینًا

اَنَا مُنْذِرٌ ۖ وَّمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ الْوَاحِدُ

زهٔ ویره درکوونکے یم ، او نیشته هیڅ حقدار دَ بندګئ سِوا دَاللّٰه تعالیٰ ته چه یو دے

الْقَهَّارُ ﴿۶۵﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا

زور اور دے - رب دَ اسمانونو او دَ زمکے دے او دَ مینځ دَدے دواړو

الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ﴿۶۶﴾ قُلْ هُوَ نَبَؤٌا

زور اور دے بخنه کوونکے دے - ته اُوایه دا خبر

تیرشویدی - وَقَالُوْا لَا نَرٰى رِجَالًا دا قول دَ کشرانو او مشرانو دَ ټولو دے او په دے کښ اشاره ده لکه چه دَدوی دَ تابعدارے کولو نتیجه ناکاره ښکاره شوه نو دا رنګ دَدوی دا ګمان هم غلط ثابت شو چه دوی به توحید والو ته اَشْرَار ویل او حال دا دے چه هغوی په جهنم کښ نیشته معلومه شوه چه هغوی اَخیار وو او دا عادت دَ جاهلانو اوس هم جاری دے چه دوی داعیانو دَ توحید او سنّت او هرحق پرستو ته شریان وائي خو قیامت کښ به دوی ته معلومه شی. اَتَّخَذْنَا په دے کښ همزه استفهامی موجود دے او همزه وصلی حذف شویدے او دا استفهام تقریری دے. حاصل دَ قول دَدوی دا دے چه مُوحدین چه مونږ ورته شریان ویل په جهنم کښ دی خو مونږ ته نه ښکاریږی یا خو زمونږ نظر خراب دے یا هسے ترینه سترګے اوړیدلے دی. امر زاغت عنهم الابصار مراد دا چه په دنیا کښ دَدوی دَ مرتبے او دَ حقیقت نه زمونږ نظرونه بند وو یا دا چه اوس په جهنم کښ زمونږه سترګے دَدوی نه کږے شویدی. تَخَاصُمُ یعنی دَ مشرانو او کشرانو په مینځ کښ دغه خبرے کول دا خصومت دے په اور دَ جهنم کښ.

۶۵ سـ ۶۶ :- دا دعویٰ دَ توحید ده تفریع ده په ماقبل بیان باندے او دا متعلق دے دَ ابتداء دَ سورت سره په ذکر دَ صداقت رسول او توحید سره او دَ اثبات دَ توحید دَپاره ئے پنځه اسماء الهیه ذکر کړیدی.

عَظِيْمٌ ﴿٦٧﴾ اَنْتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُوْنَ ﴿٦٨﴾

لوے شان والا دے تاسو د دۀ نه مخ گرځوونکی يئ.

مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَاِ الْاَعْلٰى

نيشته ما لره هيڅ علم په مجلس اوچت کښ

اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٦٩﴾ اِنْ يُّوْحٰۤى اِلَيَّ اِلَّا

کله چه هغوی کوړۍ کښ خبرے کولے. وحی نه کیږی ما ته مګر

۶۷ سے ۶۸ :. دا بیان دَ عظمتِ شان دَ مسئلے دَ توحید دے او ورسره زجر دے اعراض کوونکو ته. هُوَ ضمیر توحید ته راجع دے او دا رنګ قران ته او په دے سورت کښ ما قبل ټول ذکر ته اشاره کیدیشی.

۶۹ :. دَ دے ایت نه تر اخره پورے دریم باب دے په دے کښ صداقتِ رسول بیانوی په نفی دَ علم غیب سره دَ هغه نه. بیا ذکر دَ ابتلاء دے ملائکو او ابلیس باندے په امر دَ سجود سره ادم علیه السّلام ته او اخر کښ صداقت دَ رسول او دَ قران ذکر کوی دَ پاره دَ موافقت دَ اول دَ سورت سره.

په دے (۶۹) کښ صداقت دَ رسول ذکر کوی دَ پاره دَ رد په معرضینو چه تیر شوے ایت کښ هغوی ته زجر ووُ حاصل دا چه تاسو په څه وجه سره اعراض کوئے حال دا دے چه دے پیغمبر په خپل علم سره دا خبرے نه دی کړی بلکه په وحی سره ورته خبر ورکړے شوے دے. دَ دے ایت په تفسیر کښ مشهور دوه قوله دی.

اول قول دا دے چه مَلَاِ اَعْلٰى نه مراد ملائک دی او اختصام نه مراد بحث کول دی دَ ملائکو او دَ الله تعالیٰ په باره دَ استخلاف دَ ادم علیه السلام او دَ سجدے کښ چه په سورة بقره کښ ذکر شوے دی. اختصام صرف سوال او جواب ته وئیلے کیږی جګړه پورے خاص نه دے.

دویم قول حدیث دے په روایت دَ عبدالرحمٰن بن عائش سره چه ترمذی او حاکم او تفسیر خازن او قرطبی و غیرهم دلته ذکر کړے دے او اختصام په کفاراتو او رفع درجاتو کښ دے. لیکن اول قول صحیح دے ځکه چه روستو دَ هغے ذکر راروان دے په بل مخ)

إِنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٧٠﴾ إِذْ قَالَ رَبُّكَ

دَ دے وج نه چه زه ویره ورکوونکے ښکاره یم ۔ کله چه اویل ستا رب

لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِّن طِينٍ ﴿٧١﴾

ملائکو ته یقیناً زهٔ پیدا کوونکے یم بشر لره دَ ختو نه ۔

فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي

نو کله چه زهٔ ئے برابر کړم او پو کمه په هغه کښې دَ روح خپل نه

---

په اذ قال ربك للملائکه '' سره دویم دا چه دغه حدیث ثابت نه دے تفصیل ئے په تفسیر خازن کښې دے حاصل ئے دا دے امام بخاری ویلے دی چه دَعبد الرحمن بن عائش یو حدیث دے او په هغې کښې هم اضطراب (دَ سند) دے او امام بیهقی ویلے دی دا حدیث په ډیرو سندونو سره نقل شویدے او هغه ټول ضعیف دی او په ثبوت دَ دے حدیث کښې اعتراض دے. او کتاب الجرح والتعدیل دَ ابن ابی حاتم ص۲۶۲ ج۵ کښې ویلے دی چه هغه څوک خطا شویدی چه چا ویلے دی چه عبد الرحمان بن عائش صحابی دے ۔ صحابی نه دے او ابوذرعه ویلے دی چه دے معروف نه دے .

(سوال) که اویلے شی چه امام ترمذی دے ته صحیح ویلے دی؟

(جواب) محدثین تصحیح دَ امام ترمذی ته اعتبار نه ورکوی هر کله چه جرح تفصیلی وی . دَ دے تحقیق نه معلومه شوه چه دَ دے حدیث دَ الفاظو نه تجلّی لی کل شی یا علمت ما کان وما یکون نه بریلوی عقیدے والا دلیل نیسی په علم غیب کلی دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلم باندے نو دا استدلال ئے غلط دے ځکه چه حدیث ضعیف دے .

ف۷: په دے کښې سبب دَ علم دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ذکر کوی چه هغه وحی ده او علم چه سبب ته محتاج وی هغه ته شرعاً علم غیب نشی ویلے کیدے ۔ اِلَّا اِنَّمَا دلته لام مقدر دے اِلَّا لِاَنَّمَا یعنی دَ دے وج نه چه زه نذیر مبین یم یا انما مصدریه ما بعد په تاویل دَ مصدر کښې دے معنیٰ دا ده وحی نه کیږی مګر دَ انذار ۔ او له معنیٰ غوره ده ۔

---

ف۱ ف۲ ف۳ ف۴: په دے آیاتو کښې تفصیل دَ مختصمون دے

فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِیْنَ ﴿۷۲﴾ فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ

نو شئ هغه ته سجده کونکي ۔ نو سجده اوکړه ملائکو

كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ﴿۷۳﴾ اِلَّآ اِبْلِیْسَ ط

ټولو په جمع سره مګر ابلیس

اِسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِیْنَ ﴿۷۴﴾ قَالَ

لوئي اوکړه او وؤ د دے د کافرانو نه ۔ اُویل الله تعالیٰ

او دلته دا واقعه ذکر کوی دَ پاره دَ دے چه په ملائکو او په ابلیس باندے هم ابتلاء کړے شوے ده په مکلّف کولو دَ دوی په سجود آدم علیه السّلام ته او په چا باندے چه ابتلاء راځی نو هغه دَ الله تعالیٰ سره شریک یا شفیع قهری نشی کیدے او دارد دے په مشرکین بالملائکه والجن باندے . بَشَرًا سوال دا دے چه مخکښ دَ دے نه دوی بشر ته پیژندلو نو څرنګه دوی ته خطاب کښ بشرًا ذکر کړو؛ جواب!
دلته مراد معنیٰ وصفی ده یعنی دا سے مخلوق پیدا کوُم چه دَ هغه وجود او بدن به همیشه ښکاریږی مګر په هغه وخت چه په لباس وغیره سره ئے پټ کړی او هرچه ملائکې او جنات دی نو همیشه نه ښکاریږی ۔
رُّوْحِیْ هغه روح چه په هغې کښ دَ الله تعالیٰ نه سِوا دَ بل چا ملکیت او اختیار نیشته او صِرف دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دے هیڅ ظاهری سبب ئے نیشته دَ دے خصوصیت دَ وجے نه الله تعالیٰ ته ئے اضافت اوشو ۔
فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ دَ دے عبارت نه روانده تقدیر دے یعنی هرکله چه پیدا ئے کړو او روح ئے پکښ واچوؤ او علم دَ اسمائِهِم ورکړو نو بیا ئے په (امر تمییزی) سره ملائکو ته اوویل اسجدوا لآدم او دا تقدیر په قرینه دَ سورة بقره سره دے . كُلُّهُمْ دَ تاکید دَ پاره دے یعنی ملائکو نه هیڅ څوک مخالفت کوونکے نه وؤ- اَجْمَعُوْنَ په دے کښ اشاره ده هیئتِ اجتماعیه ته یعنی په یو جماعت سره ئے سجده اوکړه جدا جدا شوے نه دی . او دا سجود دَ تحیه (سلام) کولو په طریقه سره ده چه مخکښو امتونو کښ جائز وه لیکن صرف په سرخکته کولو سره وه په طریقه دَ عبادت او سر په زمکه کیخودلو سره نه وه .(رباتے په بل مخ)

يَآ إِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ

اے ابلیس څه څیز منع کړے ته د سجدے کولو نه هغه چاته چه ما جوړکړیں ے

بِيَدَيَّ ۖ أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِينَ ﴿٧٥﴾

په دواړه لاسونو خپلو ایا لوئي دِ اوکړه او که ئے ته د اوچت خلقو نه ۔

قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِنْهُ ۖ خَلَقْتَنِي مِنْ نَارٍ وَ

اوویل هغه زهٔ غوره یم د دهٔ نه تا زهٔ پیداکړے یم د اُور نه او

خَلَقْتَهُ مِنْ طِينٍ ﴿٧٦﴾ قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا

دے دِ پیدا کړے دے د خټے نه ۔ اُوویل الله تعالیٰ اُوځه د دے ځائے نه

اوزمونږ امت کښ تحیه صِرف السلام علیکم ورحمة الله برکاته ویل دی اوورسره مصافحه اومعانقه کول هم په سنّت سره ثابت دی لیکن سرخکته کول په وخت د سلام کښ منعه دی ۔ محکښ هم دا بحث شیږ سورتونو کښ تیر شوید ے ۔

س۷۵ :۔ مخکښ الله تعالیٰ علت د سجدے نه کولو ذکر کړو چه استکبار دے لیکن بیا هم د ابلیس نه تپوس کوی د دے د پاره چه د دهٔ دروغ هم ښکاره شی . حاصل د تپوس دا دے چه ستا د سجدے نه کولو دوه علتونو کښ به یو علت وی یا به دِ هسے دعویٰ د لوئی کړے وی یا په حقیقت کښ لوے ئے ۔ خَلَقْتُ بِيَدَيَّ دا تثنیه دلیل دے چه مراد د یَدَیْن نه لاسونه دی په معنیٰ ظاهری سره لیکن کیفیت د هغے بانسے الله تعالیٰ عالم دے مونږ پکښ بحث نشو کولے دا مذهب د ټولو سلفو صالحینو دے تاویل کول په قدرت یا نعمت وغیره سره د قرآن نه مخالفت کول دی او په دے تعبیر کښ اشاره ده عظمت د شان د آدم علیه السّلام ته چه سبب د سجود د هغه دے ۔

**فائده** :۔ سورة اعراف کښ "ان لا تسجد اذ امرتك" وُوجه د فرق داده چه هلته ذکر وُو چه سجده مامور به ده او د مامور به خلاف کول دا دے چه نه ئے کوی نو د دے وجے نه لا تسجد ئے ذکر کړے او دلته خَلَقْتُ بِيَدَيَّ کښ سبب د امر د سجدے ته اشاره ده نو دلته لفظ د تسجد مناسب دے (والله اعلم)

د س۷۶ نه تر س۸۳ پورے ۔ دا جواب د ابلیس دے په اختیار د دویم شِق سره یعنی زه په حقیقت کښ لوے یم او دا ښکاره دروغ دی ۔ خَلَقْتَنِي مِنْ نَارٍ دا دلیل د دعوے دے او د دلیل دویمه مقدمه پټه ده یعنی اور غوره دے د خټو نه نو نتیجه ئے دا

فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ﴿٧٧﴾ وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِي

یقینًا ته رټلے شوے یې. او یقینًا په تا باندے لعنت زما دے

إِلَىٰ يَوْمِ الدِّينِ ﴿٧٨﴾ قَالَ رَبِّ فَأَنظِرْنِي

تر ورځے دَ جزا پورے. اُویل ابلیس اے ربه زما مهلت راکړه ماله

إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿٧٩﴾ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ

تر ورځے دَ دوباره ژوندیدو پورے. اُویل الله تعالیٰ یقینًا ته یې دَ

الْمُنظَرِينَ ﴿٨٠﴾ إِلَىٰ يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ﴿٨١﴾

مهلت درکړے شوؤ نه تر ورځے دَ وخت مقرر پورے (په علم دَ الله تعالیٰ کښ).

قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٢﴾

اُویل ابلیس نو قسم دے ستا په عزت باندے خامخا ګمراه به کړم ټولو لره

إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴿٨٣﴾ قَالَ

مګر بندګان ستا دَ دوی نه چه بیخ ساتلے شوے دی. اُویل الله تعالیٰ

شوه چه زه دَ دهٔ نه غوره یم. او دا دلیل یعنی (کبریٰ) باطله ده ځکه چه دَ
خټو فائدے دَ اور نه ډیرے دی یو خو داده چه په هغے کښ دوه جنسونه دی
خاورے او اوبه او دَ هر یو جدا جدا فائدے دی او اور خو یو جنس دے بل دا
چه دَ انبات او دَ ترقئ ماده خټے دی او اور دَ ختمولو دَ خیز دَ پاره ماده ده او نور
هم ډیر فرق دے نو قیاس یې په مقابله دَ نص دَ الله تعالیٰ کښ پیش کړے
دے دا یو ګمراهی ده او بیا دا قیاس یې فی نفسه باطل دے دا بله ګمراهی ده.
لَعْنَتِي سورة حجر کښ "اللعنة" یې ذکر کړے وو په هغې کښ الف لام
عوض دے دَ مضاف الیه نه او دلته تصریح ده په مضاف الیه ځکه چه دلته
سبب دَ امر بالسجود ذکر کړے شویدے او دَ هغې باوجود ابلیس انکار کړے دے
نو دا مقام دَ ډیر تاکید دے او نور تحقیق سورة حجر کښ تیر شویدے.
قَالَ فَبِعِزَّتِكَ په دے قسم کولو کښ دَ ابلیس خباثت نفسانی باندے دلیل دے
یعنی وائي چه زه ستا عزت منم او دَ آدم علیه السلام عزت نه منم او حال دا چه
دَ هغه عزت یې په خَلَقْتُ بِيَدَيَّ سره ذکر کړے دے.
**فائده:-** دَ دے واقع ماقبل سره یو ربط دا دے چه (پاتے په بل مخ)

فَالْحَقُّ ز وَالْحَقَّ اَقُوْلُ ﴿۸۴﴾ لَاَمْلَـَٔنَّ

پس دا خبره حقه ده او حق وایم زه - خامخا به ډک کړم

جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ

جهنم ستا نه او د هغه چا نه چه ستا تابعداری دی د دوی

اَجْمَعِيْنَ ﴿۸۵﴾ قُلْ مَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ

ټولو نه - ته اوایه نه غواړم ستاسو نه په دے باندے

مِنْ اَجْرٍ وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ ﴿۸۶﴾

هیڅ مزدوری او نه یم زۀ د دروغ جوړوونکو نه -

اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۸۷﴾

نه دے دا مګر نصیحت دے د پاره د عالمینو -

پهٔ کښ ئے د معرضون ذکر کړے وو او دا اعراض د دوی د وجے د حسد نه وو نو په دے واقعه کښ د حسد د ابلیس عاقبت ئے ذکر کړو.

سـ۸۴ سـ۸۵ :. اَلْحَقُّ خبر د مبتدا المحذوف دے یعنی انا الحق یا هذا الحق یا مبتدا ده او خبر ئے محذوف دے (الحق منی) او مراد د دے نه راتلونکے جمله ده. لَاَمْلَـَٔنَّ جَهَنَّمَ الخ. وَالْحَقَّ اَقُوْلُ په دے کښ عام حق مراد دے یعنی د الله تعالی هر قول حق دے قول د الله تعالی په حق کښ منحصر دے. او دا سے جمله په سورة السجده سـ۱۳ او سورة هود سـ۱۱۹ کښ تیره شوے ده او هغه دواړه ایاتونو کښ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ ئے مطلق ویلي دی او په دے ایت کښ مقید کړے دے په تابعدارے د ابلیس سره نو دا د هغے تفسیر او کرځیدو.

سـ۸۶ سـ۸۷ :. روستو د زجر نه معرضینو ته تخویف وو هغوی ته په عاقبت د ابلیس سره اوس ذکر کوی صداقت د نبی صلی الله علیه وسلم په اول ایت کښ او صداقت د قران کریم په دویم ایت کښ. او هر کله چه مانع د صداقت نه دوه خیزونه دی یو طمع د اجر د عوض چه د هغے په وجه پوره حق نشي بیانیدے او دویم د ځان نه خبرے جوړول نو دا دواړه خیزونه ئے نفی کړل. الْمُتَكَلِّفِيْنَ تکلف عام دے د ځان نه خبرے جوړول او ځان کښ د دا سے صفتونو دعوی کول چه هغه په کښ نه وی. او بغیر د علم نه فتوی ورکول.

وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُ بَعْدَ حِينٍ ﴿۸۸﴾

او خامخا پوهه به شئ په خبر د دهٔ باندے څه وخت روستو ۔

او په دے کښې حدیث د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دے " چه څوک په یو خبره او مسئله باندے علم لری نو په هغې باندے دے قول کوی او څوک چه د یو مسئلے علم نه لری نو او دِ وائی چه زهٔ نه پوهیږم ځکه چه دا هم علم دے چه په کومه خبره نه پوهیږے او اوائے چه زه نه پوهیږم" او بیائے دا ایتِ کریمه اولوستلو ۔

۸۸ :۔ دا زجر دے چه اوس تاسو انکار کوئے لیکن څه وخت روستو به په دنیا کښې په وخت د عذاب کښې یا په وخت د مرګ کښې یا په قیامت کښې به د حقیقت نه خبر شئ ۔ نَبَأَهُ حقیقت حال د قران ۔ یا خبر د عاقبت د انکار د دهٔ ۔ یا کوم خبرونه چه قران ذکر کړیدی ، دا لفظ دے ټولو ته شامل دے ۔

الحمد لله چه تفسیر د سورة صٓ ختم شو

سُورَةُ الزُّمَرِ ۳۹ مَكِّيَّةٌ ۵۹ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۷۵ رُكُوْعَاتُهَا ۸

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ①

نازلول د دے کتاب دی د طرف د الله تعالیٰ نه چه زورآور دے حکمتونو والا دے

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة زمر او د دے بل نوم سورة غُرَف دے۔

ربط د دے سورة د ما قبل سره په دیرو طریقو سره دے۔ اوله طریقه داده چه په تیرشوے سورتونو کښ عجز او ابتلاګانے د بزرګانو ذکر کړے معلومه شوه چه هغوی د الله تعالیٰ شریکان او زورآور سفارشیان نشی کیدے نو اوس په دے سورت کښ د هغے نتیجه ذکر کوی چه هغه توحید فی العبادت دے۔

دویمه طریقه چه سورة ص کښ انکار د دوی د توحید نه ذکر کړو نو په د دے سورت کښ تفصیل د عقیدے د مشرکانو او عقلی دلیلونه په توحید باندے ذکر کوی۔

دریمه طریقه داده چه د هغه سورت په آخر کښ ذکر کړل "ولتعلمن نباه بعد حين" نو په دے سورت کښ نبأ د قرآن یعنی صداقت او دعوی د قرآن ذکر کوی۔

**دعوی د سورت**۔ رد دے په شرک فی العبادات والالوهية باندے په عقلی دلیلونو سره او په رد کولو د ټولو قسمونو د شرک اعتقادی سره (شرك فی العلم، شرك فی التصرف، شرك فی العبادت، شرك فی الدعا)، رد په اتخاذ الولد لله او رد په شفاعت قهریه باندے۔ او په ذکر د مقابلے په مینځ د حال د مؤحدینو او د حال د مشرکانو کښ په صفاتو او په جزاګانو سره۔

(تنبیه) په دے سورت کښ دلیلونه د دعوے سره پوره مناسب دی یعنی په دلیلونو کښ د خالقیت او مالکیت او ربوبیت (په روزئے پیدا کولو او په خوب او مرګ راوستلو سره) داتول ذکر دی او خالق، مالک، رب ضرور حقدار د عبادت وی۔

**خلاصه د سورت**۔ دا سورت تقسیم دے پنځه بابونو ته۔ اول باب

إِنَّآ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ فَٱعۡبُدِ ٱللَّهَ

یقیناً نازل کړے مونږ تاته دا کتاب دَ حق ښکاره کولو کپاره نو بندګی کوه الله تعالی لره

مُخۡلِصٗا لَّهُ ٱلدِّينَ ۝٢ أَلَا لِلَّهِ ٱلدِّينُ

خالص کوه هغه لره بندګی . خبر شئ خاص الله تعالی لره دین (بندګی)

ترسل پورے دے. په دیکښ ذکر دَ صداقت دَقران دے او بیا ذکر دَ مقصد دَ قرآن چه توحید فی العبادة دے بیا رد دے په دوه عقیدو دَ مشرکانو باندے یو عقیده دَ وسیلے شرکیٔ او دویمه عقیده دَ اتخاذ الولد ده بیا دوه عقلی دلیلونو دی چه په هغے کښ خالقیت دَالله تعالیٰ ذکر کوی بیا دوه زجرونه دی بیا بیان دَ تقابل دمؤحد او دَ مشرک دے په دوه ایاتونو کښ. بیا په څلورو ایاتونو کښ په دلائیلو وجیبو سره مسئله دَ توحید فی العبادت ذکر کوی بیا تخویف اخروی دوه ایاتونو کښ بیا تقابل دَ فریقینو دے په څلورو ایاتونو کښ.

(تفسیر)

سل:. په دے ایت کښ ذکر دَصداقت دَ قران کریم دے. او تعریف دَ هغه دَے په دے صفت سره چه منزل من الله دے افتراء نه ده. العزیز اشاره ده صفاتو دَ قدرت ته الحکیم اشاره ده صفاتو دَ علم ته.

سل:. په دے ایت کښ ذکر دَ مقصد دَ نزولِ قران دے چه دَ هغے نه ئے اجمالی تعبیر کړے دے په بِالۡحَقِّ سره یعنی دا قران متلبس (مشتمل) دے په حق باندے بیا تفصیل دے دَ هغه مقصد چه حق دے په فَٱعۡبُدِ ٱللَّهَ سره چه توحید فی العبادت والالوهیت دے. (سوال) اول لفظ تنزیل دے چه دلالت کوی په لږ لږ نازلیدلو باندے او بیا لفظ دَ انزال دے چه په یو ځل نازلولو ته ویلے کیږی، دَدے الفاظو دَ جمع کولو څه وجه ده؟

جواب اول دا دے چه قران مونږ لږ لږ نازل کړیدے او په دے طریقے سره دَټول قران نزول پوره شویدے. ګویا که په دے کښ دفع دَ وهم اوشوه چه په لږ لږ نازلولو سره په دے کښ نقصان نه دے راغلے.

جواب دویم دا دے چه فیصله کړے ده مونږ قطعی فیصله چه تاته به پوره کتاب نازلوؤ نو هغه هم شورو کړے دے په لږ لږ نازلولو سره. یعنی انا انزلنا عِلت اوګرځید دَپاره دَ تنزیل.

مُخۡلِصٗا لَّهُ ٱلدِّينَ دین په معنیٰ دَعبادت دے (پاتے په بل مخ)

الْخَالِصُ ۭ وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ
خالص دے ، او هغه کسان چه نیولی دی سوا د الله تعالیٰ نه

اَوْلِيَاۗءَ ۘ مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ
مددگاران (وائي) بندګي نه کوو مونږ د دوی مګر دے د پاره چه نزدے کړی مونږه الله تعالیٰ ته

زُلْفٰى ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِيْ مَا هُمْ
په نزدے کولو سره یقینًا الله تعالیٰ به فیصله اوکړی په مینځ د دوی کښ په هغه خیز کښ چه دوی

فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ڛ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ
په هغے کښ اختلاف کوی ، یقینًا الله تعالیٰ توفیق نه ورکوی هغه چاته

هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ ③ لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ
چه ډیر دروغژن دے ډیر کفر کوونکے دے۔که غوختلے الله تعالیٰ چه جوړ کړی ځان له

او اخلاص نه مراد توحید دے ځکه چه عبادت بغیر د توحید نه معتبر نه دے او په دے کښ اشاره ده چه هر عبادت په نیت باندے موقوف دے۔

۳ :۔ هرکله چه د اخلاص د عبادت د الله نه ډیر خلق غافل وو په شرک او په ریا وغیره کښ مبتلا وو نو د هغوی د تنبیه د پاره ئې په حرف د تنبیه سره او فرمائیل اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ او دا علت د امر د اخلاص فی العبادت دے۔ الْخَالِصُ هغه عبادت دے چه خالی وی د هر قسم شرک او ریاء او سمعة او د اجرت دنیویه وغیره نه۔ او د مجاهد نه نقل دے چه دلته الدین شامل دے ټولو اوامرو او نواهیو ته چه په ټولو کښ خلوص شرط دے د پاره د صحت او د قبولیت۔

او بیا رد دے په مشرکین فی العبادت باندے چه څوک د الله تعالیٰ نه سوا د مخلوق عبادت کوی او بهانه کوی چه دا زمونږ د پاره الله تعالیٰ ته د نزدیکت وسیلے دی مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَاۗءَ دا لفظ شامل دے تمام ما سوی الله تعالیٰ ته که ملائک وی یا انبیاء یا اولیاء او هغه بتان چه د دوی په شکلونو باندے جوړ کړے شوے وی او دا رنګ د هغوی قبرونو ته هم شامل دے۔ دلته مراد د اولیاء نه معبودان دی۔ مَا نَعْبُدُهُمْ دا جمله مستانفه ده جواب د سوال دے یعنی که دوی ته اووئیلے شی چه د غیر الله عبادتونه

وَلَدًا لَّاصْطَفٰى مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۙ

ولد خاخا غوره کړے په یې وؤ د هغه څانه چه پیدا کوی هغه چه خوښ یې شی ،

سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ④

پاک دے هغه د ولد نه هغه الله تعالیٰ دے یو زوراور دے ۔

وے کوئ ایا دوی خدایان گنړے نو دوی جواب کوی چه خدایان یې نه گنړو لیکن وسیلے یې گرځوو الله تعالیٰ ته نو د دوی د رضا ساتلو دپاره د د دوی عبادت کوو نو د ما نعبدهم نه وړاندے یقولون لفظ پټ دے . او تفسیر قرطبی کښ ویلے دی چه د دوی د دے بهانے کولو جواب په سورة احقاف ۲۸ کښ دے او دلته صرف زجر ورکوی ځکه چه دوی د قرآن د مقصد نه خلاف کوی . او ابن کثیر تفسیر کښ ویلے دی چه دغه مشرکانو بتان جوړ کړے وو په شکلونو د ملائکو مقربینو سره په خپل گمان باندے او د دغه شکلونو عبادت یې کوؤ په دے عقیدے سره چه عبادت د دے شکلونو بعینه عبادت د ملائکو دے او دا د دے دپاره چه الله تعالیٰ ته زمونږ سفارش اوکړی په مدد کولو او روزئ راکولو کښ او نورو حادثاتو د نیوی کښ او د آخرت نه خو دوی منکر وو (او بیا یې لیکلے دی) دا شبهه د ډیر شوؤ مشرکانو وه او اوس هم ده او رسولانو د دے شبهے د رد دپاره رالیږلے شویدی . (نو زه وایم)

"چه هر کله د ملائکو وسیلے گنړل او د هغوی عبادت کول شرک دے نو د پیرانو او د قبرونو د هغوی وسیلے نیول او هغوی ته سجدے لگول او د هغوی د قبرونو نه طواف نه کول او د هغوی نذرانے ورکول (چه دا عبادت دی) دا یقیناً شرک دے". فیما هم فیه یختلفون یعنی مشرکان وائی چه دا وسیلے دی دا سفارشیان دی او زمونږ حاجات په الله تعالیٰ باندے پوره کوی او کورنئ کښ اختلاف دے په طریقو د عبادت د غیر الله کښ او د مؤمنانو سره یې اختلاف دے په توحید فی العبادت کښ نو د دے فیصله عملی به (د جزا او سزا) د قیامت په ورځ اوکړے شی . او بحیله به دغه معبودان د دوی نه انکار اوکړی لکه سورة سبا ۴۱ کښ او احقاف ۶ کښ او فاطر ۱۴ کښ چه ذکر دی . کَاذِبٌ دروغژن دے د په دعوی د تقرب الی الله کښ . کَفَّارٌ منکر دے په زړه کښ د توحید د الله تعالیٰ ته چه د ټولو انبیاء علیهم السلام اتفاقی مسئله ده او د قرآن د نزول مقصد دے او د دے وجے نه یې صیغه د مبالغے ذکر کړے ده .

۳ :. دا هم زجر او رد دے په مشرکین فی العبادت باندے رباتے په بل مخ)

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ يُكَوِّرُ

پیدا کړی دی اسمانونه او زمکه د حق سره کولو د پاره را نغاړی

الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيْلِ

شپه په ورځ باندے او رانغاړی ورځ په شپه کښ

وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَّجْرِي

او په خدمت کښ لګولے دی نمر او سپوږمۍ دا ټول چلیږی

لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ اَلَا هُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ﴿۵﴾

د پاره د نیټے مقررے خبر شئ خاص الله تعالیٰ زور اور بخنه کوونکے دے۔

چه دوی عبادت د غیر الله کوی نو یهانه کوی چه دا د الله نازولے دی الله تعالیٰ دوی خپل نائبان ګرځولے دی او دوی ته ئے د الوهیت د کارونو اختیار ورکړے دے او دا معنیٰ د اتحاذ الولد ده نو په دے ایت کښ د دے عقیدے رد کوی او اوس هم دا عقیده په ډیرو جاهلانو کښ موجود ده۔ لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفٰى مِمَّا يَخْلُقُ یعنی که چرے الله تعالیٰ ولد نیولے نو ستاسو خوښ ته به ئے نه سپارلو بلکه پخپله خوښه به ئے نیولے وُو او تاسو ته به ئے خبر در کړے وے لیکن الله تعالیٰ پخپل هیځ کتاب کښ دا خبر نه دے ورکړے چه فلانکے ولد د الله تعالیٰ دے۔ اَلْوَاحِدُ دا سے یو دے چه د هغه نه ولد نه پیدا کیږی او دا رنګ یو دے په تصرف کولو کښ نو ولد ته حاجت نه لری۔ اَلْقَهَّارُ په هرڅه او په هر چا باندے زورا ور دے نو ولد او نائب ته هیڅ ضرورت نه لری۔

ف ۵:۔ د توحید فی العبادت د اثبات د پاره دا اول دلیل عقلی دے او دا افاقی دلیل دے دلالت کوی چه الله تعالیٰ خالق دے او رب متصرف دے په اجزاؤ د زمانه کښ چه شپه او ورځ دی او په اسیا یو د تغیر د زمانه کښ چه نمر او سپوږمۍ دی۔ يُكَوِّرُ تکویر رانغختلو ته ویلے کیږی مراد تر ینه پټول دی او هر کله چه په حساب شرعی کښ شپه مخکښ ده د ورځ نه د دے وجے نه د شپے ذکر ئے مخکښ کړے دے په ورځ باندے۔ اَلْغَفَّارُ یعنی بخنه کول د وجے د عجز نه نه دی بلکه سره د دے نه چه زورا ور دے لیکن مؤمنانو ته بخنه کوی او د کافرانو نه عذاب روستو کوی۔

خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ

پیدا کړی یې تاسو د نفس یو نه بیا یې پیدا کړے ده

مِنْهَا زَوْجَهَا وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ

د هغه نه بي بي د هغه او پیدا کړی دی تاسو لره د څاروو نه

ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۭ يَخْلُقُكُمْ فِيْ بُطُوْنِ

اته جوړے پیدا کوی تاسو په خیټو

اُمَّهٰتِكُمْ خَلْقًا مِّنْۢ بَعْدِ خَلْقٍ فِيْ ظُلُمٰتٍ

د مائندو ستاسو کښ په یو پیدائش روستو د بل پیدائش نه په تیارو

ثَلٰثٍ ۭ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۭ

دریو کښ دغه الله تعالی رب ستاسو دے خاص هغه لره ده بادشاهی

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ۝ اِنْ تَكْفُرُوْا

نیشته حقدار د بندگئ سوا د هغه نه، نو څه رنگ اړولے کیدے شئ تاسو . که چرے کفر کوئے تاسو

ـــ : دا دویم دلیل عقلی انفسی دے په دے کښ هم خالقیت او تصرف د ربوبیت د الله تعالی یې ذکر کړے دے. وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ انزل په معنیٰ د خلق دے تعبیر یې په انزل سره کړے دے ځکه چه انعام ژوندی پاتے کیږی په بوټو سره او بوټی پیدا کیږی په اوبو سره او اوبه د پرے نه نازل کړے شویدی او دا رنګ هر یو پیدائش چه په اسمانی اسبابو سره وی نو د هغے نه تعبیر کولے شی په انزال سره . ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ لکه چه سورة انعام ۱۴۳ ۱۴۴ کښ تیر شویدی.
خَلْقًا مِّنْۢ بَعْدِ خَلْقٍ لکه چه سورة مؤمنون ۱۴ کښ ذکر دی.
فِيْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ یعنی مخلوق په یوه تیاره کښ هیڅ څیز نشی جوړولے او الله تعالی په درے تیارو کښ برابر انسان جوړوی یوه تیاره د خیټے د مور دویمه د رحم (بچه دانی) دریمه د پریوان یعنی هغه باریکه پرده چه د بچی نه چاپیره وی.
ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ دا یو نتیجه ده د ماقبل دلیلونو. لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ دا دویمه نتیجه ده، فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ زجر دے.

فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ قف وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ

نو یقینًا اللہ تعالیٰ بے حاجته دے ستاسو نه او نه خوښوی بندګانو خپلو لره

الْكُفْرَ ج وَإِنْ تَشْكُرُوْا يَرْضَهُ لَكُمْ ط

کفر کول او که چرے شکر کوئے تاسو نو خوښوی هغه تاسو لره

وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى ط ثُمَّ إِلٰى رَبِّكُمْ

او نه شی پورته کولے یو بیتی والا پیټے د ګناه د بل چا بیا په طرف د رب ستاسو ته

مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ط

ګرځیدل ستاسو وی نو خبر به درکړی تاسو ته په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئے

إِنَّهُ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۷﴾ وَإِذَا مَسَّ

یقینًا هغه ښهٔ پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو پورے خاص وی۔ او کله چه اورسی

الْإِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَا رَبَّهُ مُنِيْبًا إِلَيْهِ ثُمَّ

انسان ته تکلیف نو رابلی رب خپل اخلاص کوؤنکی هغه ته بیا

ف: په دے ایت کښ ذکر د فریقینو دے روستو د دلیلونو نه۔ په اوله جمله کښ زجر دے او اشاره ده چه ستاسو د کفر کولو ضرر او نقصان اللہ تعالیٰ ته نه رسی بلکه تاسو ته رسیږی۔ او په دویمه جمله کښ جواب سوال دے چه د کفر ضرر په اللہ تعالیٰ باندے نیشته نو منع کول ترینه ولے کوی؟
جواب اوشو حاصل دا چه هیڅ مولیٰ د هر خپل مرئي کفر (ناشکری) نه خوخوی نو اللہ تعالیٰ خو ډیر رحم کوونکے دے نو هغه د بندګانو د پاره کفر څرنګه خوښ کړی۔ او د دے ایت نه معلومه شوه چه اراده د اللہ تعالیٰ یو صفت دے او رضائې جُدا صفت دے اراده د هر څه کوی لیکن رضائې په هر څه پورے نه متعلق کیږی او دا مذهب د اهل سنّت والجماعت دے۔ او په دریمه جمله کښ بشارت دے په قبلولو د شکر او اشاره ده چه اللہ تعالیٰ ستاسو شکر ته محتاج نه دے او په څلورمه جمله کښ جواب سوال دے چه د کفر ضرر په اللہ تعالیٰ باندے خو نه راځی لیکن په هغه چا باندے راځی چه د ګمراه کولو مشران وی نو جواب اوشو وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ الخ۔ او بیا روستو جملو کښ تخویف دے او هر کله چه د عملونو بنیاد د زړه نیت کول دی یعنی دار و مدار ئې په زړهٔ باندے دے نو اخر کښ ئې او فرمائیل إِنَّهُ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ۔

إِذَا خَوَّلَهُ نِعْمَةً مِّنْهُ نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوا

چه کله ورکړی هغه ته نعمت د خپل طرف نه هیر کړی هغه چه ده به رابلته کوله (ذالله تعالی)

إِلَيْهِ مِن قَبْلُ وَجَعَلَ لِلَّهِ أَندَادًا لِّيُضِلَّ

هغه ته د دے نه مخکښ او جوړ کړی الله تعالی لره شریکان د دے د پاره چه ګمراه کوی خلق

عَن سَبِيلِهِ ۚ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيلًا ۖ

د لارے د الله تعالی نه ته اُوایه مزے واخله په کفر خپل سره لږه زمانه

إِنَّكَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ﴿٨﴾ أَمَّنْ هُوَ

یقینًا ته د اُور والو نه یې. ایا هغه څوک چه هغه

قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ

طاعت کوونکے وی په وختونو د شپے کښ سجده کوونکے او ولاړ ویره کوی

الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ ۗ قُلْ هَلْ

د آخرت نه او امید ساتی د رحمت د رب خپل نه ته اُوایه ایا

ف: دا زجر دے مشرک ته چه هغه فریق اول دے په تناقض د معاملے د ده سره چه په حالت د ضرر کښ الله تعالی ته فریاد ونه کوی او په حالت د نعمت کښ شرک کوی. دا سے په سورة یونس ۲۳ او اسراء ۶۷ او سورة نحل ۵۳ سورة عنکبوت ۶۵ او سورة لقمان ۳۲ کښ هم تیر شویدی - مُنِيبًا إِلَيْهِ په معنیٰ د اخلاص او د توحید دے یعنی په آواز کولو کښ ورسره شریک نه جوړوی - خَوَّلَهُ تخویل په ابتدائی عطیه کښ مستعملیږی سره د دے نه چه د هغه نعمت رعایت او تربیت هم کیږی. مَا كَانَ يَدْعُوا، مَا په معنیٰ د ضرر دے. يَدْعُوا إِلَيْهِ په معنیٰ د یدعوا الی کشف دے یا مَا نه مراد الله تعالیٰ دے. لِّيُضِلَّ لام د عاقبت دے او په معنیٰ لازمی او متعدی دواړو سره کیدیشی. قُلْ تَمَتَّعْ الخ یعنی سره د شرک او د کفر نه الله تعالیٰ د ده دُعا گانے قبلوی او نعمتونه ورکوی. دا د دنیا متاع او فائدے دی چه کافرانو ته هم ورکیدے شی دا دلیل نه دے چه دے د حق تابع دے -

يَسۡتَوِي الَّذِينَ يَعۡلَمُونَ وَالَّذِينَ

برابر دی، هغه کسان چه علم لری او هغه کسان

لَا يَعۡلَمُونَ ۗ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الۡأَلۡبَابِ ۝٩

چه علم نه لری یقینًا نصیحت قبلوی خالص عقل والا.

قُلۡ يَٰعِبَادِ الَّذِينَ ءَامَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمۡ ۚ

ته اوایه اے بندګانو زما هغه کسان چه ایمان ئے راوړے ویره کوی د رب خپل نه،

لِلَّذِينَ أَحۡسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنۡيَا حَسَنَةٌ ۗ

دپاره د هغه کسانو چه اخلاص ئے کړے دے په دے دُنیا کښ خائسته حال دے

وَأَرۡضُ اللَّهِ وَٰسِعَةٌ ۗ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّٰبِرُونَ

او مُلک (زمکه) د الله تعالیٰ فراخه ده یقینًا پوره به ورکیدیشی صابرانو ته

۹: په دے کښ حال د فریق ثانی ذکر کوی په طریقه د تقابل د دواړو دلو سره په صفتونو د عمل اود علم کښ. د مؤمن درے عملی صفتونه ئے ذکر کړے دی اول صفت قَانِتٌ دے مراد د قنوت نه طاعت دے.

اٰنَاۤءَ الَّيۡلِ هرکله چه د شپے قیام او موخ کوی نو معلومه شوه چه د ورځے خامخواه کوی او دا صفت د محبت دے. دویم صفت يَحۡذَرُ الۡاٰخِرَةَ دا صفت د خوف دے وَيَرۡجُوۡا رَحۡمَةَ رَبِّهٖ دا صفت د رجا دے. هرکله چه په دے سورت کښ مسئله د عبادت ده نو په دے ایت کښ د عبادت اجزاء ئے ذکر کړل. او د اَمَّنۡ مقابل حذف دے یعنی کمن لایفعل کذلك. قُلۡ هَلۡ يَسۡتَوِي دا فرق دے په صفت د علم او عدم علم کښ یعنی مؤحد چه درے صفتونه ئے کښی لری دے عالم دے او مشرک چه دغه صفتونه په کښ نیشته هغه جاهل دے او په دے کښ اشاره ده چه کوم عالم کښ دغه درے صفتونه نه وی نو دے هم په نیز د الله تعالیٰ جاهل دے او دا دلیل دے په فضیلت د علم باندے لیکن مراد د علم نه علم د توحید او شریعت دے سره د عمل نه. لکه ابوحیان ویلے دی چه مراد د علم نه هغه دے چه معرفت د الله تعالیٰ پرے حاصلیږی او د سخط د الله تعالیٰ نه پرے بچ کیږی او روح المعانی په اشارات کښ ویلے دی هغه کسان چه پیژنی قدر د معبود خپل نو د هغه نه غواړی او هغه کسان چه

أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۱۰﴾ قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ

ثواب د عملونو د هغوی بے حسابه . ته اُوایه یقیناً حکم کړے شوېدے ماته

تدار دَمعبود نه پیژنی نو دَ ماسوا نه غواړی ۔ اِنَّمَا یَتَذَکَّرُ یعنی په دے فرق باندے هغه خوک پوهیږی چه عقل یئ دَ وهمونو دَ مقابلے نه خالی وی۔

۱۰ ۔ هرکله چه بیان کړے شو اوچت شان دَ ایمان والو اوس دَ هغوی فرائض ذکر کوی۔ تقوی، احسان، هجرت، صبر او په دے باندے بشارت بیانوی۔ قُلْ یَاعِبَادِیَ، دا امر دے رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته په رسولو دَخطاب دَ الله تعالیٰ سره مؤمنانو ته ځکه چه کلام دَ رسول کلام دَ مرسل وی یعنی اوایه اے رسوله زما دَطرف ته (چه الله تعالیٰ وائی) اے بندګانو زما۔ او قول دَ جاهلانو غلط دے چه هغوی وائی چه دَ دے ایت نه معلومه شوه چه مونږه مؤمنان بندګان دَ رسول یو ځکه دا دَ دے سورت دَ دعوے نه هم خلاف راځی چه فَاعْبُدِ اللهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّیْنَ۔ نو دا قول دَ جاهلانو تحریف او اثبات دَ شرک دے۔ اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا دا اشاره ده چه مراد دَ بندګانو نه عام نه دی بلکه هغه کسان چه دَ دے سورت دَ دعوے منونکی دی۔ فِیْ هٰذِهِ الدُّنْیَا حَسَنَةٌ مراد دَ حسنة نه جنت دے او فی هذه الدنیا متعلق دے په احسنوا پورے او مراد دَ احسان نه اخلاص دَ بندګئ دے (لکه چه په حدیث جبرائیل کښ راغلے دی) یا مراد دَ حَسَنَةٌ نه خائسته ژوندُ دَ دنیا دے یعنی هغه ژوند او مالونه چه دَ دین او اٰخرت دَپاره خرچ کیږی کوم چه ذکر دے په ربنا اٰتنا فی الدنیا حسنة الخ کښ او بنا په دے توجیه سره فی هذه الدنیا متعلق دے دَ حسنة سره۔ وَاَرْضُ اللهِ وَاسِعَةٌ دا ترغیب دے هجرت کولو ته یعنی هرکله چه امر دَ تقوی او ترغیب احسان ته ذکر کړے شو نو وهم راغے چه بعض وخت په یو ملک کښ په دے باندے عمل کول ګران شی نو خلاف کول به جائز وی؟ نو جواب اوشو چه خلاف به نه کوی بلکه هغه ملک دِ پریږدی په هجرت کولو سره۔ او هرکله چه دَ هجرت په تکالیفو باندے دَ صبر کولو ضرورت دے نو وروستو جمله کښ دَ هغوی بشارت ذکر کړے شو۔

أَنْ أَعْبُدَ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ⑪

چه بندګی کوؤم د الله تعالیٰ چه خالص کوونکے یم هغه لره بندګی

وَأُمِرْتُ لِأَنْ أَكُوْنَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ ⑫

او حکم کړے شویدے ما ته چه یم زۀ روړمبے د مسلمانانو نه .

قُلْ إِنِّيْ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ

ته اُووایه یقیناً زۀ ویریږم که چرے نافرماني اوکړم د حکم د رب خپل د عذاب

يَوْمٍ عَظِيْمٍ ⑬ قُلِ اللّٰهَ أَعْبُدُ مُخْلِصًا لَّهُ

د ورځے لوئے نه - ته اووایه الله تعالیٰ لره بندګی کووم خالص کوؤم هغه لره

دِيْنِيْ ⑭ فَاعْبُدُوْا مَا شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهِ ۗ

بندګی خپله تو بندګی کوئے د هغه چاچه غواړئے تاسو سوا د الله تعالیٰ نه

سا ۱۱ سا ۱۲ سا ۱۳ سا ۱۴ دا وچې دلیلونه دپاره د دعوے دسورت دی چه توحید فی العبادت دے او دے ته طریقه د تعلیم ویلے کیږی جواب دسوال دے یعنی هرکله چه مؤحد هجرت کوی نو مشرکین سوال کوی چه هجرت ولے کوے نو دے یه اُووائي چه ماموریم په توحید فی العبادت سره او هغه په دے ملک کښ مشکل دے ځکه هجرت کوؤم بیا سوال اوشو چه اعمال قلبیه پټ کیدے شی هغه کوه لیکن ظاهری اعمال مکوه نو هجرت ته حاجت نه راځی نو دے یه جواب اوکړی وَأُمِرْتُ لِأَنْ أَكُوْنَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ مراد د اسلام نه ظاهری عملونه دی چه دا هم مامور بها دی دا زۀ نشم پرېخودے . لِأَنْ حرف لام دلالت کوی چه مامور به حذف دے او دا غایة د امر ده یعنی امر بالتوحید والاعمال - لِأَنْ أَكُوْنَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ دا لفظ د نبی په باره کښ دے ځکه چه هر نبی د خپل امت کښ اول مسلمان وی. یا مراد د اول نه صرف سبقیت (ړومبے والے) کوونکے دے اسلام ته - بیا سوال راغے چه اګرچه تا ته امر شوے دے لیکن کیدے شی چه دا امر د وجوب دپاره نه وی نو مخالفت کول ترینه جائز دی نو جواب به اوشی په دے جملے سره قُلْ إِنِّيْ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ اه یعنی د دے امر خلاف کول سبب د لوے عذاب دی - بیا روستو د سوال جواب ته بیان د جدا والی د

قُلْ إِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا

ته اُوایه یقیناً پوره تاوان کښ دی هغه کسان چه تاوانی کړل

أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ أَلَا

ځانونه او بال بچ ټول لره په ورځ دَ قیامت خبر شئ

ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۵﴾ لَهُمْ

دا تاوان ښکاره دے۔ دوی لره په

مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ

دَ پورته طرق دَ دوی نه سوری وی دَ اُور نه او لاندے دَ دوی په

ظُلَلٌ ؕ ذٰلِكَ يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ ؕ

سوری وی۔ دا ویره ورکوی الله تعالیٰ په دے سره بندګانو خپلو ته

لاړے دَ مؤحد او مشرک دے په دے لفظ سره قُلِ اللّٰهَ أَعْبُدُ مُخْلِصًا لَّهٗ دِيْنِيْ او مخکښے امر ذکر شویوُ نو په دے کښ په امر باندے دَ عمل کولو اعلان دے او هر کله چه مقصود په عمل کښ تخصیص دَ عبادت دے نو دَدے وجه نه مفعول ئې مقدم ذکر کړو.

۱۵ تا ۱۶:- مخکښ ئې لاره دَ مؤحد ذکر کړه نو په دیکښ لار دَ مشرک ذکر کوی چه عبادت کول دَ ماسوی الله دی او مقصد په دے امر کښ زجر دے دَدے وجه نه وروسته تخویف دَ عذاب ئې ذکر کړے دے. الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيْهِمْ مراد دَدے خسران نه شرک فی العبادت کول بخپله او اهل او تابعداران ټول شرک ته رابلل دیٰ او هر کله چه په دنیا کښ دوی په دے خسران باندے نه پوهیږی دَدے وجه نه يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ئې ذکر کړو یعنی قیامت کښ به دَدوی خسران ښکاره شی. او په آیت کښ ئې دَ خسران په باره کښ دیر تاکیدات ذکر کړل اول په إِنَّ الْخٰسِرِيْنَ سره دویم په حرف دَ أَلَا سره دریم هُوَ ځلورم الْمُبِيْنُ سره اشاره ده چه دَ مشرک نه زیات خسران والا هیڅوک نیشته. او وروسته دَ خسران تفصیل ذکر کوی په لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ الخ سره یعنی اور دَ جهنم به په دوی باندے دَ هر طرق نه احاطه کوی. ظُلَلٌ نه مراد طبقے دی (پاټے په بل مخ)

يٰعِبَادِ فَاتَّقُوْنِ ﴿۱۶﴾ وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا

اے بندگانو زما نو ویره کوئ زمانه ۔ او هغه کسان چه د ډه کوی

الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا وَاَنَابُوْٓا اِلَى اللّٰهِ

د هر طاغوت د بندگئ کولو د هغه نه او گرځی الله تعالیٰ ته په اخلاص سره

لَهُمُ الْبُشْرٰى ۚ فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿۱۷﴾ الَّذِيْنَ

دوی لره خوشحالئ دی نو زیرے ورکړه بندگانو زمانه هغه کسان دی

پشان دَ غمتو وریځو او پورته ظلل ته غواش او لاندے ته مهاد ویلے شویدے په سورة اعراف ۴۱ کښ ۔

سوال ،۔ لاندے ته ظلل په څه وجه ویلے دی ظلل خو دَ پاسه وی ؟
جواب ،۔ دے ته مشاكلة لفظی ویلے کیږی لکه جزاء سیئة سیئة مثلها ۔ بیا سوال راغے چه په دے عذابونو ذکر کولو کښ څه فائده ده عنادیان خو نه منی نو جواب ئے اوکړو په ذٰلِكَ يُخَوِّفُ اللّٰهُ عِبَادَهٗ سره یعنی دَ دے نه فائده انابت والا کسان اخلی ۔ بیا ئے دَ دے عذابونو نه دَ بچ کیدلو طریقه بیان کړه يَا عِبَادِ فَاتَّقُوْنِ سره ۔
۱۷ ۱۸ ،۔ مخکښ حال دَ فریق منکرینو ذکر شو سره دَ تخویفاتو اوس په مقابله دَ هغوی کښ ذکر کوی حال دَ مؤحدینو او هغوی ته بشارت ۔ او دَ هغوی شپږ صفتونه ذکر کوی اول صفت وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا هغه خلق چه ډډه کوی دَ بندگئ کولو دَ غیر الله نه یعنی هیڅ قسم شرک نه کوی ۔ الطَّاغُوْتَ مبالغه ده په طغیان کښ په حقیقت کښ هغه چاته ویلے کیږی چه ډیر زیات سرکش او گمراه وی شیطان انسی او جنی پکښ داخل دی او مجازًا هر معبود من دون الله باندے اطلاق کیږی لکه بتان ، قبرونه دَ اولیاؤ وغیره ځکه عبادت دَ دوی سبب دَ گمراهئ دے دا اطلاق دَ سبب دے په مسبب باندے دا خطیب شربینی په سراج المنیر کښے لیکلے دی ۔
دویم صفت وَاَنَابُوْٓا اِلَى اللّٰهِ مراد دَ دے نه دَ شرک او کفر نه تو به کول او توحید باندے پوخوالے دے ۔ لَهُمُ الْبُشْرٰى په زړه کښ به خوشحاله وی په دنیا کښ او په وخت دَ ځنکدن کښ به ملائک بشارت ورکوی او دارنګ په وخت دَ بعث بعد الموت او میدان حشر او موقف دَ حساب کښ ډے

يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ ط

چه غوږ کيږدي وينا ته نو تابعداري کوي د ډير خائسته د هغې نه

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدٰىهُمُ اللّٰهُ وَاُولٰٓئِكَ

دغه کسان هغه دي چه هدايت کړے دے دوئ ته الله تعالیٰ او دغه کسان

هُمْ اُولُوا الْاَلْبَابِ ⑱ اَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ

دوي خالص عقل والا دي . آيا هغه څوک چه پوره شوې دي په هغه باندے

تولو ته عام دے ځکه ئے مطلق ذکر کړے دے. فَبَشِّرْ عِبَادِ په دے کښ اشاره ده چه دا مخکښے او روستو اجزاء دَ عبدايت دي او عبدايت سبب دَ بشارت دے.

دريم صفت الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ مخکښے صفتونه قلبيه وو او دا صفتونه دَ جوارحو دي دَ الْقَوْلَ نه مراد قرآن او حديث دي دا په توجه سره اوري ځکه چه ستماع قصد دَ اوريدو ته ويلے کيږي يا مراد دَ قول نه مطلق خبرے دي حق او باطل بے دليله او په دليل سره، ښه او بدے. نو دَ دے استماع کوي دَ پاره دَ دے چه حق او باطل پکښ معلوم کړي. څلورم صفت فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ يعني دَ علم نه روستو عمل کول دي هر کله چه مراد دَ قول نه قرآن او حديث وي نو مراد دَ احسن نه مقابل دَ حسن او دَ جائز دے او هغه په عبادا تو معاملاتو ټولو کښ شته. مثلاً په مونځ کښ احسن دا دے چه پوره مشتمل وي په شرطونو او ارکانو او موافق وي دَ سنت دَ نبي صلّى الله عليه وسلّم سره او په اختلافي مواضعو کښ په راجح طريقه باندے عمل وي. او که مشتمل وي په مکروهاتو باندے نو جائز به شي ليکن احسن نه دے دا رنګ په معاملاتو کښ په چا باندے دين (قرض) وي نو چه معاف ئے کړي يا ورله مهلت ورکړي او دا رنګ په مذاهبو کښ چه کوم مذاهب دَ دليل په لحاظ سره راجح وي په هغې باندے عمل اوکړي او دا رنګ يو طرف ته اصح حديث اتفاقي وي او بل طرف ته صحيح حديث اختلافي وي لکه احاديث دَ رفع اليدين په مونځ کښ ما سوا دَ اول تکبير نه دا صحيح اتفاقي دي او احاديث دَ ترک دَ رفع اليدين اختلافي صحيح دي او دا رنګ واجب مقدم کوي په مستحب باندے او مستحب مقدم کوي په مباح باندے.

او هر کله چه مراد دَ الْقَوْلَ نه مطلق وي نو دَ احسن نه مراد مقابل دَ سيئ (بدے) دے يعني مسائل او احکام او خبرے هر قسم اوري ليکن عمل په هغې باندے کوي چه په دليل شرعي سره ثابت وي. نو په دے (پاتے په بل مخ)

نو دا قول کار ونه احسن دي

كَلِمَةُ الْعَذَابِ ۗ أَفَأَنْتَ تُنْقِذُ مَنْ
فیصله دَ عذاب تو ایا ته به بچ کړے هغه چالره چه

فِي النَّارِ ﴿١٩﴾ لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ
په اُور کښ همیشه دی. لیکن هغه کسان چه ویره کوی دَ رب خپل نه

لَهُمْ غُرَفٌ مِّنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ
دوی لره بالاخانے دی چه پورته دَ هغے نه نورے بالاخانے دی پخے،

تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ وَعْدَ اللَّهِ ۖ
بهیږی لاندے دَ هغے نه نهرونه وعده کړے ده الله تعالیٰ

لَا يُخْلِفُ اللَّهُ الْمِيعَادَ ﴿٢٠﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ
خلاف نه کوی الله تعالیٰ دَ وعدے خپلے نه. ایا نه گورے ته چه یقیناً الله تعالیٰ

کښِ اشاره ده چه سرهٔ دَ علم نه په چاپسے بے دلیله تقلید نه کوی.
پنځم صفت چه دوی خاوندان دَ هدایت دی. شپږم صفت دوی صاف عقل والا دی اشاره ده چه جاهلان به دوی ته گمراهان او بے عقله وائی لیکن دَ الله تعالیٰ په نیز دوی هدایت والا او هوښیار دی.

۱۹ تا ۲۰ :- په دے دواړو ایاتونو کښ مقابله دَ فریقینو په جزا سزا کښ بیانوی اول تخویف دے او دویم بشارت دے. اَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ مؤنث لفظ ئے نه دے راوړے ځکه چه کلمة په معنیٰ دَ قول دے او په صیغه دَ مذکر کښ تشدید دے او په صیغه دَ مؤنث کښ نرم والی ته اشاره ده او دلته سخت والے دَ فیصلے مراد دے. كَلِمَةُ الْعَذَابِ مراد دَدے نه فیصله دَ تقدیر ده په اشقیاؤ باندے یا مراد تړینه هغه قول دے چه په اخر دَ سورة صٓ ۸۵ کښ ذکر شوید ے.
اَفَمَنْ دَ پاره جزاء پټه ده (کمن لیس کذالك) یا اَفَأَنْتَ تُنْقِذُ اه جزاء ده خو اسم ظاهری ئے په ځائے دَ ضمیر باندے ذکر کړے او همزه دَ استفهام ئے دَ تاکید دَ پاره دوه کرته ذکر کړے دے. لٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا په دے کښ بشارت ذکر کوی دویم فریق لره هرکله چه په ۱۶ کښ دَ متکرینو دَ پاره عذاب دَ بره طرف او لاندے طرف نه ذکر کړے وؤ نو په دے ایت کښ دَ جنتیانو دَ پاره لاندے باندے غرف ذکر کوی. لٰكِنِ تفسیر قرطبی کښ ویلے دی چه دا لٰكِنِ دلته دَ استدراك

أَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَلَكَهٗ يَنَابِيْعَ

راوروی د آسمان د طرف نه اوبه تو چلوی ئې لره چینې

فِي الْاَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا

په زمکه کښې بیا راوباسي په هغې سره فصل چه مختلف دي

اَلْوَانُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ

رنګونه د هغې بیا اوچ شي نو وینې ته هغه زیړ بیا

يَجْعَلُهٗ حُطَامًا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى

اوګرځوي هغې لره مات رامات یقینًا په دې کښې خامخا نصیحت دے

لِاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿٢١﴾ اَفَمَنْ شَرَحَ اللّٰهُ

خالص عقل والو لره . آیا نو هغه څوک چه پرانستې وی الله تعالی

دپاره نه دے ځکه چه ځکښې نفی نیشته بلکه دپاره د انتقال دیو قصّے نه بلے قصّے ته دے غُرَفٌ مِّنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ په دے کښې ډیر تاکیدات دی چه غرف جمع ده د هغې شمار نه دے معلوم بیا دویم هم جمع ده د هغې حد هم نه دے معلوم۔ مَبْنِيَّةٌ دا لفظ د دے فائدے دپاره دے چه د دُنیا د بنګلوچتونه چه څومره اوچت ځی نو کمزورے وی او د جنّت چتونه ټول مضبوط او محکم دی او په حدیث مرفوع کښې وارد دی چه بخاری او مسلم نقل کړے دے چه جنتیان به اهلِ غرف ته د خپل ځان نه اوچت داسے وینی لکه چه ستورے چمکدار د نور ستوری نه په مشرق یا مغرب کښې پاتے شوے وی او ناسو ئې وینےٍدا د وجے د فرق د مرتبو د دوی دے یو تربله ځ دوی اویل یارسول الله دغه به منازل د انبیاء علیهم السّلام وی هغه اوفرمائیل نه بلکه قسم په هغه ذات چه زما نفس د هغه په لاس کښې دے دا هغه سړی دی چه ایمان ئې په الله تعالی باندے راوړے دے او تصدیق د رسولانو ئې کړے دے۔

۲۱ :. د دے آیت نه تر ۲۲ پورے دویم باب دے په دے کښې دریم دلیل عقلی دے بیا تقابل د فریقینو ذکر کوی سره د ترغیب الی القرآن او تخویف اخروی نه او بیا تخویف دنیوی او ترغیب الی القرآن او مثال ذکر کوی دپاره د حال د فریقینو بیا تقابل د فریقینو په تخویف او بشارت سره راپاتے په بل مخ)

رکوع ۲

صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ فَهُوَ عَلٰى نُوْرٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ

سینه دَ هغه دَپاره دَ اسلام نو هغه په رڼړا باندے دی دَجانب دَ رب دَطرف نه

فَوَيْلٌ لِّلْقٰسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ؕ

نو تباهي ده هغه چاره چه سخت دی زړونه دَهغوی (دَاوریدلو) دَ ذکر دَ الله تعالیٰ نه

اُولٰٓئِكَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۲۲﴾ اَللّٰهُ نَزَّلَ

دَغه کسان په گمراهئ ښکاره کښس دی ـ الله تعالیٰ نازل کړے دی

او تسلی رسول ته او ذکر دَ حال دَ فریقینو بیا څلورم دلیل عقلی اعترافی سرهٔ دَ رد دَ شرک فے التصرف ته بیا اعلان دَ براءت او ترغیب الے القران سرهٔ دَ حال دَ فریقینو ته. په دے (۲۱) کښس روستو دَبیان دَ خالقیت دَ الله تعالیٰ نه بیان دَ ربوبیت دَ هغهٔ دے او مواد دَ تربیت دوه دی اوبه او بوټی دا دواړه دَ الله تعالیٰ په تصرف او اختیار کښس دی او په دے کښس فناء دَ دُنیا ته هم اشاره کوی دَپاره دَ تذکیر دَ آخرت چه مخکښس آیت کښس دَ هغے ذکر او شو.

فَسَلَكَهٗ يَنَابِيْعَ فِى الْاَرْضِ یعنی هغه اوبه دَ باران چه په زمکه کښس داخلے کړی نو په زمکه کښس چینے شی پشان دَ رګونو په جسم کښس نو دَ زمکے په رګونو کښس تقسیم شی. لَذِكْرٰى لِاُولِى الْاَلْبَابِ په دے کښس تذکر او عبرت دے دَپاره دَ توحید او دَپاره دَ اثبات دَ بعث بعد الموت او دَپاره دَ فناء دَ دنیا او ورسره تذکیر دے دَ حال دَ قرآن کریم په طریقه دَ مثال سره چه دا رنګ قرآن ئے دَ اسمان نه نازل کړے دے او په زړونو دَ خلقو کښس داخل کړے دے چه په هغے سره مختلف آثار پیدا شی په چاکښس ښهٔ اثر او شی او په چاکښس ناکاره اثر پیدا شی.

۲۲ :- په دے آیت کښس تقابل ذکر کوی دَ دواړو ډلو او مخکښس آیت کښس چه کوم دلیل ذکر شو نو دَ هغے ته دَ انتفاع حاصلولو دَپاره علت ذکر کوی چه شرح دَ صدر ده. او مراد په شرح دَ صدر سره ثابت دَپاره دَ قبلولو دَ اسلام دے یعنی شبهات او عناد دَ هغه دَ زړه نه الله تعالیٰ لرے کړی نو اسلام قبول کړی او روستو دَ اسلام قبلولو نه په قرآن باندے پوهه شی دَ نور نه مراد قرآن دے نو په دے نور سره هغه په اسلام باندے مضبوط او پوخ شی. او ددے جزا پټه ده یعنی (كَمَنْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قَلْبِهٖ وَاَقْسَاهُ) "پشان دَ هغه چا کیدے شی چه دَ هغه په زړه باندے الله تعالیٰ مهر وهلے وی او سخت کړے وی" او استفهام

اَحۡسَنَ الۡحَدِيۡثِ كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِىَ ق

ډیرے خائسته خبرے چه کتاب دے یو شان بیا بیا بیانیږی ،

تَقۡشَعِرُّ مِنۡهُ جُلُوۡدُ الَّذِيۡنَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُمۡ ج

ریبخته جګیږی (غونے زیګ زیګه کیږی) دَ هغه ته په خرمنو دَ هغه کسانو چه ویره کوی دَ رب خپل نه

ثُمَّ تَلِيۡنُ جُلُوۡدُهُمۡ وَقُلُوۡبُهُمۡ اِلٰى ذِكۡرِ اللّٰهِ ؕ

بیا نرمیږی څرمنے دَ هغوی او زړونه دَ هغوی ذکر دَ الله تعالی ته

ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهۡدِىۡ بِهٖ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ

دا هدایت دَ الله تعالی دے هدایت کوی په دے سره چه غواړی الله تعالی

وَمَنۡ يُّضۡلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنۡ هَادٍ ﴿۲۳﴾

او هغه څوک چه بے لارے کړی وی الله تعالی نو نیشته هغه لره هیڅوک په لارے روانوؤنکے .

انکاری دے یعنی دوی یو شان نشی کیدے. فَوَيۡلٌ لِّلۡقٰسِيَةِ قُلُوۡبُهُمۡ دا علت دَ عدم مساوات دَ دے دواړو دلو دے او بعض مفسرینو دلته روایت نقل کړیدے چه علامات دَ شرح صدر درے دی انابت جنت ته، نفرت دَ دنیا نه، تیاری کول دَ پاره دَ مرګ مخکښ دَ راتللو دَ هغه نه. نو دَ قسوة قلب علامات دَ دے مقابل دی.

عن ذکر الله عن اجلیه دے یعنی دَ الله تعالی دَ ذکر دَ وجے نه دَ دوی په زړونو کښ قسوة پیدا شی لکه ولایزید الظالمین الا خسارا یا مراد دَ دے عن قبول ذکر الله دے.

۲۳:- دا صداقت دَ قرآن دے او ترغیب دے هغے ته دَ پاره دَ زائل کولو دَ قسوة دَ زړه کوم چه مخکښ ایت کښ ذکر شویدے او په دے ایت کښ اووه صفتونه دَ قرآن کریم ذکر کړے دی اول صفت اَحۡسَنَ الۡحَدِيۡثِ په قرآن کریم باندے دَ حدیث اطلاق نورو ېنځه ایاتونو کښ شته ځکه چه حدیث ویلے کیږی هر هغه کلام ته چه بیانیږی او دے لفظا هم احسن دے ځکه چه ډیر فصیح او بلیغ دے، او لذت ورکوؤنکے دے قاری ته او اوریدونکی ته اګرچه شعر نه دے او معنیٰ هم احسن دے چه تناقض او اختلاف نه پاک دے په اخبارو تیرشوؤ او راتلونکو کښ یې هیڅ دروغ نیشته او عجائبات یې نه ختم کیږی. دویم صفت کِتٰبًا یعنی جمع کوؤنکے دَ هر خیر دے. دریم صفت مُتَشَابِهًا یعنی په رپاتے په بل مخ)

أَفَمَنْ يَتَّقِي بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ يَوْمَ

ایا هغه څوک چه ځان بچ کوی په مخ خپل سره د ناکاره عذاب نه په ورځ

الْقِيٰمَةِ ۚ وَقِيلَ لِلظّٰلِمِينَ ذُوقُوا مَا كُنْتُمْ

د قیامت او اوبه ویلے شی ظالمانو ته چه اوڅکئ سزا د هغه عملونو

حُسن او فصاحت بلاغت کښې ټول ایاتونه او سورتونه یو شان دی اګرچه په ډیرو شپږ کلونو کښې نازل شوی دے او که د مخلوق کلام وے نو په دومره زمانه کښې په جوړولو باندے به ئے ډیر تفاوت او اختلاف راغلے وے او د دے دلیل په سورة نساء ۸۲ کښې تیر شویدے. څلورم صفت مَثَانِيَ یعنی د دے قصے او احکام او وعد او وعیدونه بیا بیا ذکر شویدی او دارنګ تلاوت ئے بار بار کیږی او زړه ترینه نه مړیږی. مثانی جمع د مثنیٰ ده او کتاب مفرد دے لیکن مراد د کتاب نه ایاتونه او تفصیلات د کتاب دی نو په جمع سره ئے صفت صحیح دے. پنځم صفت تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ اقشعرار دیته وائی چه د ویرے د وجه نه د انسان په بدن باندے ویښته نیغ اودریږی او دا صفت د څرمن دے نو جلود ئے ذکر کړه او دا حالت د زړه د خشیت نه پیدا کیږی د دے د وجه نه یخشون ئے ورسره ذکر کړو. شپږم صفت ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ یعنی دغه ویره د زړه او د څرمن سبب او ګرځی د اطمینان او د محبت نو د هغے وجه نه نرم والے راشی په څرمن باندے ویښته په ځائے ځائے کینی او دارنګ اندامونه د دغه انسان د الله تعالیٰ د ذکر اطاعت د پاره استعمالیږی او په زړه کښې ایمان محکم او زیات شی او دا ترتیب په سورة انفال ۲ کښې ذکر شویدے او دا د قرآن کریم اعجاز دے چه ویره سبب د اطمینان او ګرځی په خلاف د نورو تخویفاتو چه هغه د ویرے نه نفرت پیدا کوی. او هر کله چه اقشعرار او نرم والے په څرمن باندے ظاهریږی نو د دے وجه نه جلود ئے مخکښې ذکر کړو. تفسیر قرطبی او بحر المحیط و ابن کثیر او سراج المنیر کښې په دے ځائے کښې سخت تردید ئے د هغه متصوفو ذکر کړے دے چه په وخت د ذکر کولو کښې په هغوی باندے بے هوشی راشی یا ګډا کوی یا چوپونه وهی او دینه جذبه وائی او دا کمال ګڼړی. نو که دا کمال وے او بنه صفت وے نو الله تعالیٰ به د صحابو او د نورو مؤمنانو په صفت کښې په دے ایت کښې ذکر کړے وے. د اسماء رضی الله عنها او د سعید بن عبد الرحمان نه نقل دی چه دا جذبه د شیطان د وجے نه ده او د ابن سیرین رحمة الله نه نقل دے

تَكْسِبُوْنَ ﴿۲۴﴾ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

چه تاسو کول - تکذیب کړے وو هغه کسانو چه د دوی نه مخکښ وو

فَاَتٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۲۵﴾

نو راغے دوی ته عذاب د داسے ځائے نه چه دوی نه پوهیدل -

فَاَذَاقَهُمُ اللّٰهُ الْخِزْيَ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

نو اوڅکوله دوی ته الله تعالی شرمندګی په ژوند دنیوی کښ

وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾

او خامخا عذاب د اخرت ډیر لوے دے که چرے دوی پوهیدلے -

چه د دوی یو تن دِ په چت د کوټے (په بلئ) باندے یا په دیوال باندے کینی یا د کوهی په غاړه باندے کینی او په هغه باندے دے ټول قران اولوستلے شی که دے بے هوشه شو او را اوغورځیدلو نو دے په رشتے وی په جذبه کښ. او وم صفت ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ دا اشاره قران ته ده یا اقشعرار اولین ته چه صفت د قران والو دے.

سئ ۲۴ :- دا تخویف اخروی دے متکبرینو ته روستو د بیان د حال د مؤمنانو ته او په دے ایت کښ تقابل دے لیکن دویم جانب ئے حذف کړے دے (کَمَنْ اٰمِنَ مِنَ الْعَذَابِ بِسَبَبِ الْقُرْاٰنِ) او داسے سوره حم سجده سئ کښ دی. يَّتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ ، یعنی په جهنم کښ په پړمخ اوغورځولے شی او لاس به ئے تړلے شوے وی نو دے به په مخ سره ځان د عذاب نه بچ کوی لیکن نه به شی بچ کیدے یعنی بله طریقه د دفع عذاب ورسره نیشته او دا طریقه فائده نه ورکوی - او احتمال شته چه مراد د وجهه نه وجاهت او شرافت دنیویه شی یعنی دے د قیامت د عذاب نه ځان په دنیوی عزت او شرافت سره بچ کول غواړی او د قران سره دشمنی کوی لیکن په دے وجاهت سره نه شی بچ کیدے.

سئ ۲۵ ۲۶ :- دا تخویف دنیوی دے په ذکر کولو د حال د منکرینو تیر شوؤ. مِنْ قَبْلِهِمْ لفظ د مِنْ کښ اشاره ده نزدے والی د زمانے ته لکه قوم سبا او قوم تبّع وغیره. فَاَذَاقَهُمُ مبرد ویلے دی چه هر انداام ته خه اثر رسیږی نو هغے ته ذوق ویلے کیږی که هغه درد وی او که تریخوالے او که خوږوالے وی.

وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ

او یقینًا بیان کړیدی موږ خلقو ته په دې قرآن کښ

مِنْ كُلِّ مَثَلٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾

دَ هر قسم وعظونو دَدې دَپاره چه دوی نصیحت قبول کړی.

قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ لَّعَلَّهُمْ

قرآن عربی دې نه دې کږ لیچ والا دَدې دَپاره چه دوی

يَتَّقُوْنَ ﴿۲۸﴾ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيْهِ

ویریږی. بیان کړیدې الله تعالیٰ یو مثال چه یو سړے دی په هغه کښ

شُرَكَآءُ مُتَشٰكِسُوْنَ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ

ډیر بدخوی والا دی جګړه مار او یو بل سړے دی پوره دَ یو سړی دَپاره

هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ بَلْ

آیا دوی برابر کیدے شی په حالت کښ. ستائینه دَ خدائیتوب دَ یو الله تعالیٰ ده بلکه

۲۷ تا ۲۸ :. په دے آیاتونو کښ ترغیب دے قرآن ته دَپاره دَ بچ کیدلو دَ عذاب دَ دُنیا او آخرت نه کوم چه مخکښ آیاتونو کښ ذکر شو.
مِنْ كُلِّ مَثَلٍ مراد دَدے نه مثالونه دَاو دَ کل نه مراد هغه دی چه هغے ته حاجت وی. یا مراد دَ مثل نه قسمونه دَ بیان او دَ وعظونو دی یا مراد دَ مثل نه نمونے دَ عذاب دَ سابقینو دی. قُرْاٰنًا حال دے دَ من القرآن نه په معنی لغوی سره یعنی لوستلے کیدے شی ترقیامته پورے. عَرَبِيًّا ژبه عربی فصیحه او بلیغه ژبه ده دَ دے پشان بل لغت واضح نیشته یا مراد دَدے نه معنیٰ لغوی ده یعنی واضح مقصد والا دے. غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ مراد دَ دے نه شبهات او شکونه او اعتراضونه دی ځکه چه عوج دَ عین په زیر سره مستعملیږی په معانی کښ او په زور دَ عین سره په اجسامو کښ. هرکله چه ضرب الامثال دَپاره دَ یادداشت او نصیحت وی نو اول آیت کښ یې يَتَذَكَّرُوْنَ ذکر کړو او غیر ذی عوج کښ اشاره ده چه شبهاتو او شکونو نه بچ کوونکے دے دَدے وجے نه يَتَّقُوْنَ یې ذکر کړو.

أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٩﴾ إِنَّكَ مَيِّتٌ وَّ

ډیر دَ دوی نه نه پوهیږی - یقیناً ته مړکیدونکے یې او

۲۹ :۔ تیرشوی ایت کښ مِن کُلِّ مَثَلٍ ذکر وؤ نو په دے ایت کښ دَ هغے یو خاص مثال ذکر کوی دَپاره دَ فرق په مینځ دَ حال دَ مشرک او مؤحد کښ۔
مُتَشَاكِسُونَ جګړه مار او ضدیان دی په اتصاف هم نه رضا کیږی او یو بل سره اتفاق هم نه کوی. تفصیل دَ مثال دا دے چه دَ یو مریٔ ډیر مولاګان وی لیکن بداخویه او ضدیان وی یو تن چه دے مریٔ ته دَ یو کار حکم اوکړی نو بل دَ هغه په مقابل کښ دَ بل کار حکم اوکړی او دواړه اتفاق نه کوی او معافی هم نه کوی او که دَ دے مریٔ څه حاجت پیښ شی یا پرے څه مصیبت راشی نو دَ مولاګانو نه یو کس هم دَ دهٔ سره امداد نه کوی دَ وجے دَ بداخلاقی دَ هغوی نه نو دا مریٔ به ضرور ډیر تنګ ژوند کښ وی او پریشان به وی او بل مریٔ دے چه دَ هغه یو مولا دے او هغه مولا کښ دَ رجولیت یعنی دَ سړی توب اخلاق هم شته شریف دے معافی کوونکے دے سخی او کریم دے په خپل مریٔ ظلم نه کوی په حاجت او مصیبت کښ ورسره امداد کوی نو ضروری خبره ده چه دا مریٔ به په خپل ژوند کښ ډیر خوشحاله وی نو دا رنګ مشرک چه ډیر اِلٰهه یې نیولے دی یو هم حق دار دَ بندګئ نه دی بل هم ګنړی یو اِلٰه دَ یو مصیبت لرے کولو ذمه وار ګنړی او بل دَ بل مصیبت دَپاره بیا دا اِلٰهه دَ دهٔ مشرکان پیران او ملایان دی چه عنادیان او حرصناک دی نو که دا مشرک دَ یو عبادت کوی نو بل تریته خفه کیږی یو ته نذرانه شکرانه اوړی نو بل ورته غصه وی او په یو وخت کښ یې ډیر حاجتونه وی نو حیران وی چه دے یو حاجت له یو دربار ته زم نو هغه بل دربار دَ بل حاجت دَپاره زمانه پاتے کیږی نو دا مشرک ډیر په تنګ ژوند کښ دے او مؤحد سړے خو دَ یو الله عبادت او طاعت کوی په یو وخت تریته هر حاجت غوختلے شی نو دَ دهٔ ژوند بنهٔ په آرام دے۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ دا دلیل دے چه صفتونه دَ الوهیت ټول دَ یو الله تعالیٰ دَپاره دی او دَ دوی په اِلٰهو کښ دا صفتونه نیشته نو دا معبودان دَ الله تعالیٰ سره شریک نشی کیدے نو دَ دوی عابدان هم برابر نه شی کیدے۔
نو معلومه شوه چه دوی برابر نه دی ۔

**فائده :۔** دا مثال دَ بُتانو عبادتونه کوونکو سره نه لګی دَ دے وجے خطیب شربینی لیکلی دی چه دا مثال دَ هغه چا دے چه دوی دَ علماؤ او پیرانو عبادت کوی په دے عقیده چه هغوی به زمونږ دَپاره شفاعت (سفارش) کوی او هر یو عقیده لری چه زما عالم او پیر په حق یا ندے دے او دا بل په باطل باندے دے

إِنَّهُم مَّيِّتُونَ ﴿٣٠﴾ ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ

یقیناً دوی به هم مړه کیږی . بیا به یقیناً تاسو په ورځ

الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ ﴿٣١﴾

دَ قیامت دَ خپل رب په مخکښ جګړه کوئ.

ف ۳۰ ۳۱ :- هر کله چه سخت رد اوکړے شو په مشرکانو باندے نو هغوی دَ غصے دَ وجے نه خبرے کولے چه دا نبی دِ مړشی چه مونږ ترینه خلاص شو نو په دے ایت کښ جواب دے چه مرګ خو په ټولو باندے راځی نو دَ بل چا په مرګ خوشحالی کول هیڅ فائده نه لری او دا رنګ په مرګ سره دَ جګړو نه خلاصیږے بلکه روستو دَ مرګ نه په دوباره ژوند دَ قیامت کښ به جګړے وی او فیصلے به وی .

تَخْتَصِمُونَ دا اختصام عام دے که په مینځ دَ مؤمنانو کښ وی او که دَ کتابیانو کافرانو سره او که دَ مشرکانو سره .

**فائده :-** میّت په شد دَ یا سره په هغه چا باندے اطلاق کیږی چه مړ نه وی لیکن مړ کیږی به او په سکون دَ یا سره هغه چاته ویلے کیږی چه مړ وی لیکن دا فرق اکثری دے کله دَ یو بل په معنیٰ هم راځی لکه انک لا تسمع الموتیٰ او یحیی الموتیٰ کښ موتیٰ جمع دَ میّت (شدّ) دے لیکن مراد ترینه مړی دی ۔ او دَ دے ایت نه معلومه شوه چه په نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے هم مرګ راغلے دے دَ دے وجے دفن کړے شوے دے . او قرطبی لیکلی دی چه دا خبره الله تعالیٰ دَ دے وجے نه ذکر کړه چه څوک دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په مرګ کښ خلاف اونکړی او بل دا چه معلومه شی چه پیغمبر په دے صفت کښ دَ نورو خلقو سره مساوی (برابر) دے .

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ وَكَذَّبَ

نو څوک لوے ظالم دے دَ هغه چا نه چه دروغ وائي په الله تعالیٰ باندے یا دروغژن گنړي

بِالصِّدْقِ اِذْ جَآءَهٗ ؕ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ

رشتیاؤ لره کله چه راغے دۀ ته ایا نیشته په جهنم کښ

مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ

ځائے دَ اوسیدلو کافرانو لره . او هغه څوک چه راوړے دی رشتیا

وَصَدَّقَ بِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۳۳﴾

او تصدیق ئے دَ هغے اوکړو دغه کسان دوی متقیان دی .

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ ذٰلِكَ

دوی دَپاره هغه نعمتونه دی چه دوی غواړی په نیز دَ رب دَ دوی دا

جَزٰٓؤُا الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳۴﴾ لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ

بدله ده دَ خائسته عمل کوونکو . دے دَپاره چه معاف کړی الله تعالیٰ دَ دوی نه

اَسْوَاَ الَّذِيْ عَمِلُوْا وَيَجْزِيَهُمْ اَجْرَهُمْ

ناکاره هغه عمل نه چه دوی کړیدی او بدله ورکړی دوی لره ثواب دَ دوی

۳۲:- په دے کښ فیصله دَ مختصمون (اختصام) ذکر کوی نو اول تخویف اخروی ذکر کوی منکرینو ته. كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ په نسبت کولو دَ ولد او دَ شریک کښ او دا رنگ په تاویل دَ صفاتو دَ هغه کښ چه هغه دَ ځان. بوصفت ویلے وی لکه ید (لاس) او څوک اُوائي چه دَ دے نه قدرت مراد دے لکه جهمیه موژله وائي۔

۳۳ ۳۴ ۳۵:- په دے ایاتونو کښ بشارت دے مؤمنانو ته. جَآءَ بِالصِّدْقِ دَ صدق نه مراد مسئله دَ توحید ده او کتاب دَ الله تعالیٰ دے یعنی هر هغه څوک چه دَعوت کوی قرآن او توحید ته. وَصَدَّقَ بِهٖٓ دَ دے نه مراد ټول مؤمنان دی چه دعوت دَ توحید او دَ قرآن اومنی. او دَ دوی پنځه حالتونه ذکر کوی اول صفت دَ تقویٰ. دویم وسعت دَ نعمتونو دَ دوی دَ خواهش مطابق په جنت کښ. دریم صفت دَ محسنین. څلورم تکفیر دَ سیئاتو یعنی گناهونه (پاتے په بل مخ)

بِاَحۡسَنِ الَّذِیۡ كَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ ﴿۳۵﴾

په ډير خائسته هغه عملونو سره چه دوی کول .

اَلَیۡسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبۡدَهٗ ؕ وَ یُخَوِّفُوۡنَكَ

آيا نه دے الله تعالیٰ پوره (ژغورونکے) خپل بنده لره او ويره وی دوی تا

بِالَّذِیۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖ ؕ وَ مَنۡ یُّضۡلِلِ اللّٰهُ

په هغه کسانو چه د الله تعالیٰ نه سوا دی او هغه څوک چه بے لارے کړی هغه لره الله تعالیٰ

فَمَا لَهٗ مِنۡ هَادٍ ﴿۳۶﴾ وَ مَنۡ یَّهۡدِ اللّٰهُ

نو نیشته هغه لره هیڅوک هدایت ورکوونکے . او هغه څوک چه هدایت ورکړی هغه له الله تعالیٰ

فَمَا لَهٗ مِنۡ مُّضِلٍّ ؕ اَلَیۡسَ اللّٰهُ بِعَزِیۡزٍ

نو نیشته هغه لره هیڅوک بے لارے کوونکے آيا نه دے الله تعالیٰ زور آور

ذِی انۡتِقَامٍ ﴿۳۷﴾ وَ لَئِنۡ سَاَلۡتَهُمۡ مَّنۡ

بدله اخستونکے . او که چرے تپوس اوکړے ته د دوی نه چا

به ورته معاف کړیشی . اسوء چه ډیر ناکاره معاف کوی نو (سوء) لګ ناکاره خو ضرور معاف کیږی . بنځم اجر او ثواب چه په احسن اعمالو باندے ملاویږی هغه عملونه مراد دی چه د کتاب او سنت سره موافق وی.

۳۶ ـ ۳۷ : مخکښ ئے د آخرت اختصام ذکر کړو نو په دے آیت کښ د دُنیا اختصام ذکر کوی یعنی هر مشرک ویره ورکوی مؤحد ته د خپل معبودانِ باطله نه . نبی صلی الله علیه وسلم ته ئے ویل چه ته زمونږ الهو ته بد مه وایه رچه دوی هیڅ نشی کولے ) دوی به تا ته مصیبت، مرض، جنون دراورسوی . او خالد بن ولید رضی الله عنه ئے د عزیٰ نه ویره وُرکه چه مفسرینو ذکر کړیدی اوس هم مشرکان وائی مؤحدینو ته چه د توحید مسئلے مه کوئے او نذرونه د غیرالله مه منع کوئے جنډے او غلافونه تربیته مه لرے کوئے کنی نو تکره به درکړی . نو الله تعالیٰ مؤحدینو بندګانو ته تسلی ورکوی او مشرکانو باندے رد کوی اَلَیۡسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبۡدَهٗ د عبده نه هر مؤحد مراد کیدے شی او بیا ئے ذکر د فریقینو کړے دے په طریقه د تقابل سره . بِعَزِیۡزٍ په دے کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ د خپل بنده د بچ کولو د پاره د دے وجے نه پوره دے چه زورآور او غالب دے او نور معبودان بے طاقته دی .

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ط

پیدا کړی دی آسمانونه او زمکه خامخا دوی وائی الله تعالیٰ

قُلْ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

ته اُوایه ایا پوهه ئے تاسو په (حال) دَهغه چاچه تاسو ئے بلنه کوئے سِوا دَ الله تعالیٰ نه

اِنْ اَرَادَنِيَ اللّٰهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كٰشِفٰتُ

که چرے اوغواړی الله تعالیٰ زما خه تکلیف ایا دوی کیدیشی لرے کوؤنکی

ضُرِّهٖٓ اَوْ اَرَادَنِيْ بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ

دَ تکلیف دَهغه یا اوغواړی په ما باندے رحمت ایا دوی

مُمْسِكٰتُ رَحْمَتِهٖ ط قُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ ط

بندوونکے شی رحمت دَهغه ته اُوایه پوره دے ماله الله تعالیٰ

عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۳۸﴾ قُلْ

خاص په هغه باندے توکل کوی توکل کوؤنکی ـ ته اوایه

۳۸ :- داخلورم دلیلِ عقلی اعترافی دے دَپاره دَ نفی دَ خالقیت او تصرف دَغیرالله تعالیٰ په اقرار دَ مشرکانو سره او دَ مخکښ آیت سرهٔ ئے ربط داد ے چه تاسو په دے معبودانو یا طلو سره مؤحدینو لره څه رنګه ویروئے تاسوخو پخپله هم اقرار کوئے چه خالق الله تعالیٰ دے او دا معبودان دَ نفع اوضرر مالکان نه دی دَ الله تعالیٰ په مقابله کښ، نو په دے آیت کښ دوه عقیدے په اقرار دَ مشرکانو سره ذکر کوی اول داچه خالق الله تعالیٰ دے او دا په سورة عنکبوت ۶۱ لقمان ۲۵ زخرف ۹ ۸۷ کښ هم ذکر شویدے او دویم اقرار په دے قول سره ذکر کوی قُلْ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ الآیة یعنی ستاسو معبودانو سره اختیار او قدرت دَ ضرر او نفع او خیر او شر نیشته دے او دَدے استفهام جواب هم ابن جریر وغیره ذکر کړے په لَا مقدار سره یا په سکوت سره یعنی دوی، یا وائي چه زمونږ معبودان مالک دَ نفع او ضرر نه دی په مقابله دَ الله تعالیٰ کښ یا چُپ پاتے شی او دا چُپ پاتے کیدل هم دلیل دَ اقرار دے. قُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ یعنی که مشرک دعویٰ اوکړی چه دا معبودان پخپله اختیار منانه دی ز پاتے په بل مخ)

يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ

اے قومه زما عمل کوئ په خپله طريقه باندے يقيناً زهٔ هم عمل کوونکے يم

فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۹﴾ مَنْ يَّأْتِيْهِ عَذَابٌ

نو زر دے چه تاسو به پوهه شئ چه څوک دے هغه چه راځی هغه ته عذاب

يُّخْزِيْهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۴۰﴾

چه رسوا به يې کړی او راکوز به شی په هغه باندے عذاب هميشه۔

اِنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ

يقيناً نازل کړے دے مونږ په تا باندے کتاب دَ خلقو دَپاره په حق سره

فَمَنِ اهْتَدٰى فَلِنَفْسِهٖ وَمَنْ ضَلَّ

نو هغه څوک چه هدايت يې اوموندلو نو فائدے دَپاره يې دے او هغه څوک چه بے لارے شو

خوشحاله قهريه دی يا دَ الله تعالىٰ سره منکرتيا کوی نو جواب دا دے چه الله تعالىٰ پوره او کافی دے هيڅ ته حاجت نه لری۔ اَلْمُتَوَكِّلُوْنَ نه مراد مؤحدين دی۔

**فائده:-** په دے ايت کښ يې مؤنث صيغے ذکر کړے دی دَ دے وجے نه چه رد دے په خاص مشرکانو چه هغوی دَ عزّیٰ عبادت کوؤ او هغه مؤنثه پيرے وه يا اوس زمانه کښ چه څوک دَ زنانه دَ قبر عبادت کوی يا تانيث کښ اشاره ده کمزورئ دَ معبودانو دَ دوی ته ځکه چه مؤنثات په کمزورئ سره مشهور دی۔

**۳۹ تا ۴۱:-** او دا بيان دَ توکل دے په ذکر دَ براءت سره۔ مَكَانَتِكُمْ عادت او حالت او قوت ته ويلے کيږی يعنی که شرک او کفر کوئ او که زما دَ ضرر رارسولو دَپاره څه قوت او مکرونه استعمالوئ نو او کړئ اِنِّيْ عَامِلٌ، علىٰ مكانتى په کښ پټ دے مراد دَ دے نه دعوت دَ دين او استقامت دے او هر کله چه دَ پيغمبر په حال تو کښ وخت په وخت ترقی کيدله نو دَ دے وجے نه مقيد يې نه کړو په علىٰ مكانتى سره۔ يُخْزِيْهِ دَ دے نه دَ دُنيا عذابونه مراد دی او عذاب مقيم نه دَ آخرت عذاب مراد دے۔

فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم

نو یقیناً چه بې لارې کیږي وبال به په هغه باندې وي، او ته نه یې په دوی باندې

بِوَكِيلٍ ﴿٤١﴾ اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنفُسَ حِينَ

ذمه وار . الله تعالیٰ اخلي ساهونه په وخت

مَوْتِهَا وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا ۖ

د مرګ د هغې کښې او هغه ساهوته چه نه مړ کیږي (اخلي) په خوب د هغوی کښې

فَيُمْسِكُ الَّتِي قَضَىٰ عَلَيْهَا الْمَوْتَ

نو بند کړي د واپسۍ نه هغه چه فیصلې کړې وي په هغې باندې په مرګ سره

وَيُرْسِلُ الْأُخْرَىٰ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ إِنَّ

او راپریږدي هغه بل لره تر نیټې مقرر پورې یقیناً

فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٤٢﴾

په دې کښې ډیر دلیلونه دي هغه قوم لره چه فکر کوي.

سـ۴۱ :. په دې کښې ترغیب او صداقت د قرآن ذکر کوي او مقصد په کښې تسلّی ده روستو د اعلان د برأت نه. لِلنَّاسِ په دې کښې دلیل دې چه قرآن د ټول دنیا والو دپاره کتاب الٰهی دې. وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ یعنې ته د دوی د هدایت ذمه وار نه یې تا ته د دوی انکار کول نه منسوب کیږي ځکه چه وکیل هغه وي چه هغه ته د مؤکل د کارونو نسبت کیدې شي او حقوق هم هغه ته راجع کیدې شي.

سـ۴۲ :. د دې ایت نه دریم باب دې تر سـ۵۲ پورې په دې کښې پنځم دلیل عقلي دې بیا مسئله د شفاعت ده نفیًا د غیرالله نه او اثباتًا د الله تعالیٰ دپاره او زجر دې په نفرت سره د توحید نه بیا نتیجه د دلیلونو په امر د دُعا د الله تعالیٰ سره بیا تخویف اخروي او تخویف دنیوي او دلیل عقلي شپږم دې. په دې (سـ۴۲) کښې دلیل عقلي دې په ترقۍ سره د ماقبل نه ځکه مخکښې دلیلونه د خلق او د تربیت او مالکیت د نفع او ضرر ذکر شول نو اوس تصرف د الله تعالیٰ په خوب او په مرګ سره ذکر کوي. اللَّهُ يَتَوَفَّى توفی په معنیٰ د پوره اغستلو سره دې لکه چه إِنِّي مُتَوَفِّيكَ کښې تیر شویدې بیا هر کله چه دلته یې ( راتې په بل مخ )

# أَمِ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ شُفَعَاءَ ۚ قُلْ

اَیا جوړ کړیدی دوی سِوا دَ الله تعالیٰ نه سفارشیان ته اُووایه

الانفس لفظ ذکر کړو نو معلومه شوه چه اغستل دَ نفس مراد دی او دَ نفس او دَ روح په باره کښې دَ اهلِ علمو اختلاف دے بعضو ویلے دی چه نفس جدا دے او روح جدا دے یعنی نفس عام دے چه په هغه سره تنفس راځی که تمیز او حیات دواړه وی او که صرف حیات وی او روح خاص دے په هغې پورے چه په هغه سره حیات راځی او اکثر اهل علمو ویلے دی چه دا دواړه یو شے دے او دوه نومونه یې دی او دا غوره قول دے. یو وجه دا ده چه په دے ایت کښې اغستلے شوے په وخت دَ مرګ کښې او په وخت دَ خوب کښې دواړو ته یې انفس ویلے دی بله وجه دا ده چه په یو حدیث دَ وفات دَ ابو سلمه کښې په وخت دَ مرګ کښې قبض دَ روح یې ذکر کړے دے او دا حدیث امام مسلم روایت کړے دے او په بل حدیث کښې چه ابن ماجه راوړے دے اخرجی ایتها النفس الطیبة ویلے دی او په حدیث دَ لیلة التعریس کښې (دَ اوده کیدلو) په باره کښې اخذ بنفسی یارسول الله او بیا وروسته ان الله قبض ارواحنا یې فرمائیلے دی نو معلومه شوه چه دواړه یو شے دے لیکن صفتونه په کښې دوه دی دَ دے وجې نه یو ته نفس الحیاة ویلے کیږی او هغه اغستلے کیږی په وخت دَ مرګ کښې بل ته نفس التمییز ویلے کیږی او هغه اغستلے کیږی په وخت دَ خوب کښې. او تفسیر مدارک او روح المعانی او سراج المنیر کښې راوړے دی چه اطلاق دَ اغستلو دَ انفس په وخت دَ خوب کښې دَ دے وجې نه دے چه دا تشبیه دَ اوده دَ مړو سره یعنی اُوده انسان تمییز او تصرف نشی کولے لکه چه مړے هم تمییز او تصرف نشی کولے. او دا قول دَ دے مفسرینو رد دے په هغه چا باندے چه دَ مړو دَپاره تصرفات او تمییز ثابته وی او وائی چه مړے دَ خپل قبر دَپاسه مرغ تر او ښځه پیژنی دا ټولے دَ جهل خبرے دی. حِينَ مَوْتِهَا یعنی په وخت دَ مرګ دَ بدنونو کښې. لیکن اضافت یې روح ته اوکړو ځکه روح دَ بدن نه جدا شو نو دا هم دَ روح دَپاره یو قسم مرګ دے اګرچه دَ روح دَپاره فنا نیشته.

وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا دا سے یې په سورة انعام ۶۰ کښې توفی دَ خوب په باره کښې ذکر کړے ده او په ۶۱ کښې توفی دَ مرګ دَپاره ذکر کړے ده ابن کثیر ویلے دی چه اول ته وفات صغریٰ ویلے کیږی او دویم ته وفات کبریٰ ویلے کیږی او دلته ذکر دَ دے دواړو په عکس سره دے.

فَيُمْسِكُ الَّتِي قَضَىٰ عَلَيْهَا الْمَوْتَ داجمله دليل دے چه دَمړو ارواح دَدوی بدنونو ته بيا واپس نه راځی مګر هغه چه واپسی په نص صحيح سره ثابته شی لکه بعث بعد الموت اوسورة البقره پنځه واقعات ذکر کړے دی چه روستو دَ مرګ نه بيا ژوندی کړے شويدی او دارنګ په معجزه دَ عيسىٰ عليه السّلام سره مړی ژوندی کيدل داخو په صحيح او صريح نصوصو سره ثابت دی نو دَدے نص نه هغه مستثنیٰ دی.

بحث په باره دَ اعاده دَروح بدن ته په قبر ( برزخ ) کښ، جمهور علماء دَدے قائل دی په سبب دَ حديث دَ براء بن عازب رضی الله عنه چه ابوداؤد او امام احمد وغيرهما روايت کړے دے او په هغے کښ اعاده او رد دَ روح جسد دَ مړی ته په قبر کښ ذکر شويدے. او ابو محمد بن حزم وئيلی دی چه هيچا روايت نه دے کړے په باره دَ عذاب قبر کښ چه روح بدن ته واپس کيدے شی سوئ دَ منهال بن عمرو نه او هغه قوی نه دے او داخلاف دَ ايت دَ " وكنتم امواتا فاحياكم ثم يميتكم ثم يحييكم " دے او بيائے ترينه منصوصی او معجزانه مواضع مستثنیٰ کړے دی. ليکن ابن قيم الجوزيه په شرح دَ ابوداؤد ص۹۲/۱۳ کښ په تفصيل سره ثابت کړے دے چه روايت دَ رد الروح الی الجسد کښ کوم جرح چه ابو حاتم بستی او ابن حزم ذکر کړيده هغه جرح صحيح نه ده او ابو موسیٰ اصبهانی وئيلی دی چه دغه حديث حسن دے او ابو نعيم او حاکم وغيرهما ورته صحيح وئيلی دی. هر کله چه دا روايت ثابت دے نو دَدے ايت دَ سورة بقره سره موافقت څه رنګ دے ؟

په دے کښ يو قول دادے چه آلوسی په روح المعانی کښ غوره کړے دے چه روح زوړ بدن ته نه واپس کيږی په قبر کښ بلکه جسد مثالی ته ورداخليږی او په دے باندے حديث دَ " حواصل طير خضر " په دليل کښ ذکر کړے دے دويم قول دادے چه ابن قيم په شرح دَ ابوداؤد کښ ذکر کړے دی چه واپسی دَروح بدن ته واپسی په قبر کښ عارضی وی په دے سره حيات مستقر په قبر کښ نه حاصليږی او دارنګ ابن عبدالهادی په الصارم المنکی کښ وئيلی دی چه په رد الروح فی القبر سره حيات (حقيقيه) نه حاصليږی او دا منافی نه دے دَمرګ سره يعنی دغه واپسی دَ متشابهاتو نه ده په حقيقت باندے نه پوهيږو ليکن ايمان په وربانديے لرو دَدے وجه نه ملا علی قاری په مرقات ص۱۹۸/۱ کښ ذکر کړے دی چه امام ابوحنيفه رحمة الله په اعاده دَروح کښ (بدن ته په قبر کښ) توقف کړے دے. او دارنګ په ص۲۰۳ کښ ذکر کړے دی چه تعلق دَ روح دَ بدن دَمړی سره په طريقه دَ حلول سره نه دے. نو بنا په دے تحقيق سره دَدے ايت (فيمسك التی قضیٰ عليها الموت) دَ رد الروح سره هيڅ منافات نيشته نو دَ هغے نه انکار کول مناسب نه دی.

أَوَلَوْ كَانُوا لَا يَمْلِكُونَ شَيْئًا وَلَا يَعْقِلُونَ ﴿۴۳﴾

ایا اګر چه دوی اختیار نه لری د هیڅ څیز او نه پوهیږی.

قُل لِّلَّهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيعًا ۖ لَّهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ

ته اوایه الله تعالی لره اختیار د ټول سفارش دے هغه لره بادشاهی د اسمانونو

وَالْأَرْضِ ۖ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۴۴﴾ وَإِذَا

او زمکے ده بیا هغه طرف ته به اوګرځولے شئ تاسو. او هر کله چه

ذُكِرَ اللَّهُ وَحْدَهُ اشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ الَّذِينَ

یاد کړیشی الله تعالی په یو والی سره تنګ شی زړونه د هغه کسانو

لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ ۖ وَإِذَا ذُكِرَ الَّذِينَ

چه ایمان نه لری په آخرت باندے او هر کله چه یاد کړے شی هغه کسان

مِن دُونِهِ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿۴۵﴾ قُلِ

چه سیوا د الله تعالی نه دی دغه وخت دوی ډیره خوشحالی ښکاره کوی. ته اُوایه

۴۳:- په دے ایت کښ زجر دے په عقیده د شفاعة شرکیه باندے یعنی دوی فکر په څکنی دلیلونو کښ نه کوی بلکه ځان د پاره بهانے ګوری او وائی چه مونږ د دے معبودان من دون الله بندګی د دے وجے نه نه کوو چه دوی خدایان دی بلکه صرف سفارشیان ئے ګنړو. بیا رد دے په دوی باندے چه دغه معبودان ستاسو د هیڅ څیز اختیار او قدرت نه لری نو بغیر اذن نه د شفاعت کولو اختیار ئے کله کیدے شی او دا رنګ پوهه نه لری ستاسو په بندګے کولو باندے.

۴۴:- دا بل رد دے د دوی په عقیده شرکیه باندے یعنی اختیار صرف د الله تعالی دے نو هیڅوک د هغه د اذن نه بغیر شفاعت نشی کولے او د شفاعت ډیر قسمونه دی د دے وجے نه تاکید ئے په جمیعًا سره اوکړو.

۴۵:- دا زجر دے د دوی په بل خصلت قبیحه باندے او جواب دے د سوال د دوی که دوی اُوائی چه مونږ شفاعت بغیر اذن نه نه وایو بلکه زمونږ د شفاعت د پاره به زمونږ معبودانو ته الله تعالی اذن ورکوی نو د جواب حاصل دا دے چه ستاسو د الله تعالی د ذکر د توحید سره دشمنی ده نو څه رنګه به ستاسو د پاره اذن ورکوی. وَإِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَحْدَهُ لکه چه څکښن ایت کښ تیر شول

اللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عٰلِمَ الْغَيْبِ

اے اللّٰه پیدا کوؤنکے د اسمانونو او د زمکے پوهه په هر پټ

وَالشَّهَادَةِ اَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيْ مَا

او ښکاره باندے ته به فیصله کوے په مینځ د بندګانو ستا کښ په هغه څیز کښ

كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿٤٦﴾ وَلَوْ اَنَّ لِلَّذِيْنَ

چه وو دوی په هغے کښ اختلاف ئې کوؤ. او که چرے شی د پاره د

---

چه قل لله الشفاعة جميعا يا اوبلے شی چه د بو الله تعالیٰ بندګی کوئے صرف هغه ته رامداد شه وائے صرف د هغه په نوم باندے نذرانے کوئے.

اَشْمَاَزَّتْ په دے کښ ډیره مبالغه ده ځکه چه اشمئزاز دیته وئیلے کیږی چه زړه د غصے او د خفګان نه داسے ډک شی چه خرمن د مخ او تندی کښ چونړونه پیدا شی۔ وَاِذَا ذُكِرَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ یعنی د دوی د معبودانو د پاره قدرت او علم د غیب وغیره ثابته وے په دروغو قصو او دلیلونو باطلو سره یا د هغوی د کراماتو په دروغو سره ذکر کیدے شی. يَسْتَبْشِرُوْنَ په دے کښ هم ډیره مبالغه ده یعنی زړه ئې د خوشحالے نه دومره ډک شی چه آثار د خوشحالے په مخ او تندی کښ ښکاره شی. او داسے زمونږ په زمانه کښ ډیر موجود دی چه توحید بیان کوؤنکو ته ډیر غصه وی او وائی چه دا د اولیاؤ منکران دی لکه چه مفسر آلوسی هم خپله قصه د دے آیت په تفسیر کښ ذکر کړے ده او هم داسے مضمون په سورة اسراء ۴۶ کښ ذکر کړو چه دوی د توحید د بیان په وخت شا ګانے اوګرځوی او سورة صافات ۳۵ کښ دی چه استکبار کوی او سورة صٓ ۵ کښ دی چه تعجب کوی. او سورة غافر ۱۲ کښ دائے سبب ګرځولے دے د پاره د همیشه پاتے کیدلو په جهنم کښ.

۴۶:- هرکله چه د مشرکانو خباثت عظیمه بیان شو چه نفرت دے د توحید نه او داسبب د خفګان د مؤحد دے نو اوس د مؤحد د زړهٔ د تسلئ د پاره هغه ته د دُعا تلقین کوی. او په دے دُعا کښ وسیله د اسماؤ او صفاتو د الله تعالیٰ سره ده. صفت د لوے قدرت فاطر السموٰت والارض دے او صفت د لوے علم عالم الغيب والشهادة دے او صفت د لوے اختیار او تصرف اَنْتَ تَحْكُمُ الا دے او جواب د ندا حذف دے د تعمیم د پاره یعنی د د دے ( پاتے په بل مخ )

ظَلَمُوْا مَا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ

ظالمانو هغه څیزونه چه په زمکه کښ دی تول او پشان د هغې ورسره شی

لَافْتَدَوْا بِهٖ مِنْ سُوْٓءِ الْعَذَابِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ

خامخا دوی به بدله ورکوی په هغې سره د ناکاره عذاب نه په ورځ د قیامت

وَبَدَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمْ یَكُوْنُوْا

او ښکاره به شی دوی ته د طرف د الله تعالیٰ نه هغه حال چه دوی ئې

یَحْتَسِبُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَبَدَا لَهُمْ سَیِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا

ګمان هم نه کوؤ او ښکاره به شی دوی ته ناکاره عاقبتونه د هغه عمل چه دوی کړی

وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۴۸﴾

او راګیر به کړی دوی لره هغه څیز چه دوی وو په هغې پورې چه توقې کولے.

صفاتو نه روستو که انسان هر یو حاجت غواړی نو قبلیږی لکه سعید بن جبیر نه روایت دے هغه ویلے دی ؒ زه پیژنم داسے ایت چه څوک ئې اولولی او د الله تعالیٰ نه سوال کوی نو الله تعالیٰ ئې ورکوی ؓ نو دا ایت ئې اولوستلو۔ او په حدیث د صحیح مسلم کښ د دے صفاتو نه روستو خاص دعا هم ذکر کړے شوے ده چه نبی صلی الله علیه وسلم به د شپے د مونځ په اول کښ داسے لوستل اللّٰهم رب جبریل ومیکائیل واسرافیل علیهم السّلام فاطر السموات والارض عالم الغیب والشهادة انت تحکم بین عبادك فیما کانوا فیه یختلفون راهدنی لما اختلف فیه من الحق باذنك انك تهدی من تشاء الٰی صراط مستقیم ) یعنی په اختلافی مسئلو کښ چه کوم حق جانب دے نو د هغې خودنه ماته اوکړه.

۴۷ ۴۸ :۔ په دے ایاتونو کښ ذکر د فیصلے او د حکم د الله تعالیٰ دے په منکرینو د توحید باندے او دا تخویف اخروی دے په ذکر د درے وعیدونو سره اول وعید دا دے چه د دوی نه به هیڅ فدیه په بدل د عذاب کښ نه قبلیږی لکه چه سورة العمران ۹۱ رعد ۱۸ مائده ۳۶ کښ دی۔ دویم وعید وَبَدَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمْ یَكُوْنُوْا یَحْتَسِبُوْنَ او دا شامل دے هغه مشرکانو او مبتدعینو ته چه اعمال ئې کول او خیال ئې داوؤ چه دا حسنات دی لیکن معلوم به شی په قیامت کښ چه دا سیئات وو۔ دا قول د مجاهد دے او دا مناسب دے

فَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ثُمَّ إِذَا

نو هر کله چه اورسیږی انسان ته تکلیف نو رابلی مونږ لره بیا هر کله

خَوَّلْنَاهُ نِعْمَةً مِّنَّا قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ

چه ورکړو مونږ هغه ته څه نعمت دخپل طرف نه دے وائی یقیناً راکړے شو یدا ے دا ماته په

عِلْمٍ بَلْ هِيَ فِتْنَةٌ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ

علم زما بلکه دا امتحان دے لیکن ډیر د دوی نه

لَا يَعْلَمُونَ ﴿۴۹﴾ قَدْ قَالَهَا الَّذِينَ مِن

پوهه نه لری۔ یقیناً ویلے وه دا خبره هغه کسانو چه

د ابتدا د سورت سره "ما نعبدهم الا لیقربونا الی الله زلفی" او هغه خلقو ته چه گناهو ته کوی په دے خیال چه د مرګ نه مخکښې توبه اوباسو او ناڅاپه وربانده مرګ راشی هغوی ته هم شامل دے دا د سدی روایت دے. او د سفیان ثوری نه روایت دے تباهی ده ریاکارو لره دا د دوی ایت او حالت دے۔ او دریم وعید وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا دا اضافت بیانیه دے یعنی بدکارونه د دوی هغه دی چه دوی کړیدی یا سیئات نه مراد عقوبات سیئه دی یعنی ناکاره سزاګانے د دوی د عملونو۔

۴۹:۔ دا زجر دے د مشرکانو په بل خباثت باندے او فَإِذَا په فاء سره ئې ذکر کړو ځکه چه دا علت د ماقبل تخویف دے او تفصیل دے د ظلم د (ظلموا) چه د احسان د الله تعالیٰ هغه ته نسبت نه کوی بلکه خپل حق او کمال ئې ګڼړی.
عَلَىٰ عِلْمٍ یعنی الله تعالیٰ عالم وو چه زهٔ د دے نعمت اهل او حقدار یم یا مراد دا دے چه هر نعمت چه ورته حاصل شی نو خپل کسب او کوشش ته ئې نسبت کوی او خپل محنت مستقل ګڼړی لکه چه دا سے دهری سړے ویناکوی۔ او سورة قصص ۷۸ کښې علم عندی کښې صرف دویمه معنیٰ مراد ده۔
فائده:۔ اوتیته کښې ضمیر مذکر راجع کړے دے نعمت ته په تاویل د شیئًا من النعمة یعنی که لګ نعمت وی نو هم د الله تعالیٰ احسان نه منی او بَلْ هِيَ کښې ضمیر مؤنث راوړے دے په تاویل د عطیه سره ځکه چه ورکول د پاره د امتحان دی۔

قَبْلِهِمْ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا

مخکښ دَ دوی نه وو نو لرې نه کړو دَ دوی نه (عذاب) هغه عملونه

يَكْسِبُوْنَ ﴿۵۰﴾ فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا ؕ

چه دوی کول. نو اورسیدل دوی ته ناکاره (عاقبت) دَ هغه عملونو چه دوی کول

وَالَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ هٰٓؤُلَآءِ سَيُصِيْبُهُمْ

او هغه کسان چه ظلم ئې کړے دے دَ دے موجود کسانو نه زر دے اوبه رسیږی دوی ته

سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا ۙ وَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۵۱﴾

ناکاره عاقبت دَ هغه عملونو چه دوی کړیدی او دوی نه دی عاجزی کوونکی الله تعالیٰ لره.

اَوَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ

آیا دوی نه پوهیږی چه یقیناً الله تعالیٰ فراخوی روزی

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

هغه چالره چه اوغواړی او تنګوی یقیناً په دے کښ ډیر دلیلونه دی

لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾ قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ

هغه قوم لره چه ایمان لری. ته اُوایه اے بندګانو زما هغه کسان

رکوع ۵

ف ۵۰ ۵۱ :- دا تخویف دے په ذکر دَ حال دَ سابقینو سره چه دا کلمه راوتیته علیٰ علم) سبب دَ عذاب دے په تیرشوے منکرینو باندے لکه چه قارون هم دا سے ویلے وو سورة قصص ۷۸ کښ دی. فَمَآ اَغْنٰى مانافیه دے یا استفهامیه دے. مِنْ هٰٓؤُلَآءِ من بیانیه یا تبعیضیه دے. سَيُصِيْبُهُمْ مَا كَسَبُوْا عذاب دَ قحط ته اشاره ده چه په مکے والو باندے راغلے وُو دَ دے وجے نه وروستو دَ رزق دَ فراخ او تنګسیا ذکر کوی.

ف ۵۲ :- دا دلیل عقلی شپږم دے مخکښ دلیلونو کښ عام تصرف ئې ذکر کړے وُو او په دے آیت کښ خاص په رزق کښ تصرف کول ذکر کوی چه دا هم په الله تعالیٰ پورے خاص دے لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ایمان په دے خبره باندے چه حوادث ټول دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی او یقین لری چه فراخی دَ رزق دَ چا دَپاره استدراجاً وی او تنګوالے دَ روزئے دَ چا دَپاره عزت وی.

أَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ

چه زیاتے کړیدے په ځانونو خپلو باندے مه نااُمیده کیږئ د رحمت

اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ۭ اِنَّهٗ

د الله تعالیٰ نه یقیناً الله تعالیٰ بخي ګناهونه ټول یقیناً الله تعالیٰ

هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۵۳﴾ وَاَنِيْبُوْٓا اِلٰى رَبِّكُمْ

بخنه کوونکے رحم کوونکے دے. او اوګرځئ (په توبه کولو سره) رب خپل ته

وَاَسْلِمُوْا لَهٗ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ

او تابع شئ د حکمونو د هغه مخکښ د دے نه چه رابه شي تاسو ته

۵۳: د دے ایت نه خلورم باب دے تر ۶۷ پورے په دے کښ ترغیب دے توبه کولو ته د شرک او د نورو ګناهونو نه او تابعدارئ د قران ته د پاره د دفع کولو د درے عذرونو بیا تخویف او بشارت دے بیا دوه عقلی دلیلونه عامه ذکر کوی اووم اواتم - بیا دلیل وحی په رد د شرک فی العبادت باندے.

په دے ایت (۵۳) کښ طریقه ذکر کوی د پاره د بچ کیدلو د عذاب نه کوم چه مخکښ ایاتونو کښ ذکر شویدے او هغه طریقه توبه کول دی د شرک او د نورو ګناهونو نه. یٰعِبَادِیَ، دے نه مؤمنان مراد دی نو الذنوب جمیعًا نه مراد ګناهونه دی بغیر د شرک او کفر نه. یا مراد د دے نه ټول بندګان دی مشرکانو ته هم شامل دے نو په الذُّنُوْبَ کښ شرک هم داخل دے.

(سوال) په دے احتمال باندے د "اِنَّ اللّٰهَ لَا یغفران یشرك به" سره ظاهرًا مخالفت راځی؟

(جواب) په دے ایت کښ مغفرت په توبے کولو سره مراد دے چه په توبه سره شرک او کفر هم معاف کیږی او په دغه ایت کښ بغیر د توبے نه مراد دے او د دے تائید حدیث د طبرانی دے چه دا ایت نازل شو نو نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه زهٔ د دے ایت په مقابله کښ دنیا او ما فیها هم نه خوخووم نو یو سړی اوویل که چا شرک کړے وی نو نبی صلی الله علیه وسلم یو ساعت چُپ شو بیا یې اوفرمائیل که شرک یې کړے وی نو هم او درے کرته یې دغسے اوفرمائیل.

الْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ ﴿۵۴﴾ وَاتَّبِعُوٓا

عذاب بيا به مدد نشي کيدے ستاسو . او تابعداري اوکړئ

اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ

دَ خائسته هغه چه نازل کړے شويدے تاسو ته دَ طرف دَ رب ستاسو نه

مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً وَّ

مخکښ دَ دے نه چه راشي تاسو ته عذاب ناساپه او

اَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ﴿۵۵﴾ اَنْ تَقُوْلَ

تاسو به نه يو هيږے . (داخبرم درکړو) دَپاره دَ دے چه اونه وائي

نَفْسٌ يّٰحَسْرَتٰى عَلٰى مَا فَرَّطْتُّ فِيْ جَنْۢبِ اللّٰهِ

يو نفس هائے افسوس دے په هغه کوتاهي باندے چه ما کړيده په اړخ دَ (حق دَ طاعت) دَ الله کښ

---

۵۴ :- دا معطوف دے په پټ لفظ باندے چه استغفروا الله وانيبوا دے يعني دَ شرک نه توبه اوباسئ او اوګرځئ الله تعالىٰ ته په توحيد سره . وَ اَسْلِمُوْا کښ انقياد په اعتبار دَ عملونو سره مراد دے .

۵۵ :- دا ترغيب دے قرآن ته يعني توبه او انابت او اسلام په تابعدارئ دَ قرآن کښ دے . اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ اضافت بيانيه دے ځکه چه ټول قرآن احسن دے لکه ۲۳ کښ تير شويدي . يامراد دَ احسن نه محکم دے يعني دَ محکماتو دَ قرآن اتباع اوکړئ . مخکښ ايت کښ هم من قبل ان ياتيکم العذاب وو او په دے ايت کښ هم دينه اشاره ده چه په توبه کولو او په اتباع دَ قرآن کښ تادي اوکړئ روستو والے مکوئ هسے نه چه عذاب راشي نو بيا به هيڅ نشے کولے .

**فائده :-** ځوک چه دَ شرک نه توبه نه اوباسي نو عقيده لري چه زما سره به معبودان مدد کوي نو په اول ايت کښ ئې لا تنصرون ذکر کړو . او اتباع دَ قرآن چه نه کوي نو ځغوي وائي چه روستو به نيک عمل اوکړم نو دَ هغه دَپاره اوفرمائيل چه دَ عذاب وخت معلوم نه دے ناګهه راځي نو ولے عمل کول روستو کوے (والله اعلم) .

وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ دا تفسير دے دَ بَغْتَةً يعني چه وخت او تاريخ ئې نه معلوميږي

وَإِنْ كُنْتُ لَمِنَ السّٰخِرِيْنَ ﴿۵۶﴾ أَوْ تَقُوْلَ

او یقیناً ووم زهٔ خاهغا دَ مسخرے کوؤنکو نه په حق پورے. یا او نه وائی

لَوْ أَنَّ اللّٰهَ هَدٰىنِيْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۵۷﴾

که چرے الله تعالیٰ هدایت کرے وے ماته نو وے به زهٔ دَ متقیانو نه

أَوْ تَقُوْلَ حِيْنَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِيْ كَرَّةً

یا او نه وائی کوم وخت چه اوینی عذاب لره که چرے وے ما لره دوباره تللِ دنیا ته

۵۶:. دا دَدرے عذرونو (بهانو) دفع ذکر کوی یعنی که چرے قرآن نه وے نازل کړے شوے نو دوی به دا عذرونه کړے وے اول عذر دا دے أَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ، نکره دَپاره دَخاص قسم ده چه هغه کافر او مشرک دے. يَا حَسْرَتٰى په اصل کښ يا حسرتی وؤ دَیا په ځائے باندے ئے الف راؤړو دَپاره دَ دلالت کولو په استغاثه باندے. جَنْبِ اللّٰهِ دا دَ متشابهاتو نه دے په کیفیت کښ. اګرچه معنیٰ ئے ظاهره ده چه اړخ ته ویلے کیږی او په معنیٰ ظاهری سره محکم دے او دَ تَفْرِيْط نه مراد شرک او کفر او ظلمونه ګناهونه کول دی او دَ الله تعالیٰ حقونو کښ کمے کول او سستی کول دی. وَإِنْ كُنْتُ، ان نافیه دے او لام په لَمِنَ السّٰخِرِيْنَ کښ په معنیٰ دَ اِلّا دے یا ان مخفف دے دَ مثقل نه. أَوْ كُنْتُ کښ اشاره ده چه مسخرے ئے زما طبعیت ګرځیدلے وؤ السَّاخِرِيْنَ مسخرے کوؤنکے په اهلِ حق پورے یعنی صرف معصیت م نه دے کړے بلکه په اهلِ طاعت پورے م مسخرے هم کړے دی.

۵۷:. دا دویم عذر دے یعنی که دَ قرآن په رالیږلو سره الله تعالیٰ هدایت دَحق نه وے کړے نو دے خلقو به عذر پیش کړے وے چه یا الله تعالیٰ تا به موږ ته هدایت کړے وے لیکن هرکله چه قرآن دَهدایت دَپاره نازل کړے شویدے نو اوس دوی دا حجت (بهانه) نه شی پیش کولے دلته مراد دَ هدایت نه صرف بیان دَحق دے په کتاب یا په رسول رالیږلو سره او دَ دے تائید سورة طٰهٰ ۱۳۴ کښ تیر شویدے.

فَاَكُوْنَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۵۸﴾ بَلٰى قَدْ جَآءَتْكَ

نو زه به د دے ‌ ‌ د ‌ ‌ خائستبه عمل کوؤنکو نه - ‌ ‌ هاں بلکه یقینًا راغلے وو تاته

اٰيٰتِيْ فَكَذَّبْتَ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتَ وَكُنْتَ

آیاتونه زما نو تکذیب اوکړو تا دهغے او لوئي دِ اوکړه او وے ته

مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۵۹﴾ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ

دَ ‌ ‌ کافرانو ‌ ‌ نه - ‌ ‌ او په ورځ ‌ ‌ دَ قیامت کښ

تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ وُجُوْهُهُمْ

وینے به ته هغه کسان چه دروغ ئے ویلے دی په الله تعالیٰ باندے مخونه دَ دوی به

۵۸ :- دا دریم عذر دے یعنی که قرآن نه وے نازل کړے شوے نو چه دوی به دوباره دنیا ته راتلل غوختلے نو حق به ئے وو او الله تعالیٰ به داحق منلے وے لیکن هرکله چه قرآن نازل کړے شوے او دوی ته پوره عمر هم ورکړے شوے دے او قرآن ته منی نو که قیامت کښ اُوائي چه ما دنیا ته واپس کړه چه څه ایمان راوړم نو دا سوال به ئے نه قبلیږی بلکه ورته به هغه جواب اوشی کوم چه سورة فاطر ۳۷ کښ تیر شویدے.

**فائده :-** دا قولونه به دَ دوی دَطرف نه په قیامت کښ واقع کیږی لیکن هیڅ اثر به ورباندے نه مرتب کیږی او دَ عذر په طور سره هم نه قبلیږی ځکه دَ قرآن په رالیږلو الله تعالیٰ دا عذرونه دفع کړیدی او دا یو لطیفه نکته ده چه دَ تَقُوْلَ په اول کښ په درے واړه ځایو کښ لَا مقدر دے لیکن ښکاره ئے نه دے ذکر کړے یعنی قول به وی لیکن پشان دَ نیشت به وی. بیا عام مفسرینو ویلے دی چه دا قولونه به دَ هر یو منکر دَ طرف نه وی او قتادهؓ ویلے دی چه دَ دوی درے قسمونه دی او دَ هر قسم دَطرف نه به جدا جدا قول وی.

۵۹ :- دا جواب دے دَ دغه قولو نو چه هرکله چه دوی په قیامت کښ دغه عذرونه پیش کړی نو دوی ته به الله تعالیٰ اوفرمائي چه دا عذرونه قبول نه دی ځکه چه تاسو ته زما آیاتونه راغلے وو لیکن تاسو انکار کړے وؤ. بَلٰى رسوال (ک) اوپلے شی چه دا لفظ خو هغکښ په کلام کښ نفی غواړی او دلته نفی نیشته جواب دا دے چه دَ دے درے واړه قولونو حاصل دا دے چه مونږ دَ حق نه خبر نه وو نو جواب به اوشی په بَلٰى سره او بیا دَ دوی انکار ئے په درے طریقو سره ذکر کړیدے

مُسْوَدَّةٌ ۭ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۶۰﴾

تور وی ایا نیشته په جهنم کښې ځائے د اوسیدو د لویې کونکو دپاره ۔

وَيُنَجِّي اللّٰهُ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا بِمَفَازَتِهِمْ ۡ

او بچ به کړی الله تعالیٰ هغه کسانو لره چه ځان ئې ساتلے د شرک نه په سبب د کامیابۍ د دوی

لَا يَمَسُّهُمُ السُّوْۗءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۶۱﴾

نه به رسیږی دوی ته هیڅ تکلیف او نه به دوی غمژن وی ۔

اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۡ وَّهُوَ عَلٰي كُلِّ

الله تعالیٰ پیدا کوونکے د هر څیز دے او هغه په هر

شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿۶۲﴾ لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ

څیز باندے ذمه وار دے ۔ خاص هغه لره کنجیانے د اسمانونو

په خائسته ترتیب سره اول تکذیب دے دویم استکبار دے چه د تکذیب په وجه سره پیدا کیږی دریم کفر دے چه د استکبار په سبب سره پیدا شوید دے ۔

۶۰: روستو د ذکر د دفع د بهانونه تخویف اخروی ذکر کوی یعنی جرم ئې ثابت شو او بهانه ئې ختم شوه نو شرمنده به وی او مخ به ئې تور وی۔ اَلَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ په دے کښې داخل دی مشرکان چه الله تعالیٰ ته نسبت د شریک او د ولد کوی او بقاعی ویلے دی چه معتزله او هغه څوک چه دروغ وائی او خیال ئې دا وی چه الله تعالیٰ زما د دروغو نه خبر نه دے نو په دے کښې هغوی هم داخل دی۔

لِلْمُتَكَبِّرِيْنَ تور والے د مخ په ورځ د قیامت کښې ډیر ذلت او سپکوالے دے نو دا مناسب دے د حال د متکبّر سره ۔

۶۱: په دے ایت کښې بشارت دے بِمَفَازَتِهِمْ دا ظرف مکان دے مراد تری نه جنّت دے یا مصدر میمی دے یعنی متقیانو ته به د عذاب نه نجات ورکوی بسبب د دخول د جنّت یا مراد د مفازة نه ایمان او عمل صالح دے یعنی ذکر د مسبّب او مراد تری نه سبب دے۔

لَا يَمَسُّهُمُ السُّوْۗءُ تفسیر د مفازة دے په اول توجیه سره یا بیان د ینجّی دے۔

۶۲: دا دوم دلیل عقلی دے او دوه کلی صفتونه دی، پیدا کول د هر څه او حفاظت او ذمه واری د هر څه او دا سبب د تقویٰ دے یعنی د الله تعالیٰ نه ډیره د دے وجې نه کوی چه په دے صفتونو باندے عقیده لری۔

وَالْاَرْضِ ۗ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

او زمکې دی او هغه کسان چه کفر ئې کړے دے په آیاتونو دَ الله تعالیٰ

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿٦٣﴾ قُلْ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ

دغه کسان خاص دوی پوره تاوان والا دی ۔ ته اُووایه آیا سوا دَ الله تعالیٰ نه

تَاْمُرُوْٓنِّيْٓ اَعْبُدُ اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ ﴿٦٤﴾

حکم کوئے تاسو ماته چه بندګی دِ اوکړم اے ناپوهانو ۔

وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ

او یقینًا وحی کړے شویده تاته او هغه کسانو ته چه ستا نه

قَبْلِكَ ۚ لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ

مخکښ دی که چرے شرک دِ اوکړو خامخا برباد به شی عمل ستا

وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٦٥﴾ بَلِ اللّٰهَ

او خامخا شے به ته دَ تاوان والو نه ۔ بلکه خاص الله تعالیٰ لره

فَاعْبُدْ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٦٦﴾

بندګی کوه او په همیشه دَ شکر ګذارو نه ۔

---

۶۳ :۔ دا تتم دلیل عقلی دے په دیکښ دریم صفة کلیه ذکر دے یعنی اختیار تصرف دَ هر څه دَ الله تعالیٰ سره دے او چابیانے چه خاص دَ الله تعالیٰ سره دی نو معلومه شوه چه دَ خزانو دَ ورکولو اختیارمند هم صرف هغه دے ـ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ دا صفتونه دَ الله تعالیٰ چه ذکر شول دا داخل دی په آیات الله کښ دَ دے منکر او مشرک تباه کیدونکے دے۔

۶۴ :۔ دا تفریع ده په تیر شوے دلیلونو باندے یعنی روستو دَ دے ښکاره دلیلونو نه په توحید فی العبادت باندے بیا هم تاسو ماته دعوت راکوئے دَ عبادت دَ غیر الله دا خو ډیر لوے جهل دے دا دلیل دے په دے خبره باندے چه څوک دعوت ورکوی شرک ته نو هغه پوره جاهل دے ۔

۶۵ ۶۶ :۔ دا علت دَ ماقبل دے یعنی دَ دے مشرکانو جاهلانو دَ امر او دَ دعوت نه ځان بچ اوساته ځکه چه اتفاقی وحی دَ ټولو انبیاؤ سره واضح شویده چه په شرک کولو سره هر عمل برباد یږی ۔ لَئِنْ اَشْرَكْتَ معنیٰ دا ده چه هر یو نبی ته په خپل خپل وخت کښ دا وحی کړے شویده او دا سے ذکر په سورة انعام ۸۸ کښ هم دے ۔ دا دلیل دے

وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ۖ وَالْاَرْضُ

او قدر نه دے کړے دوی د الله تعالیٰ لائق قدر د هغه او زمکه

جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ

ټوله موټے د هغه به وی په ورځ د قیامت او اسمانونه به

مَطْوِيّٰتٌۢ بِيَمِيْنِهٖ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى

انغښتے شوے وی په ښی لاس د هغه کښ پاک دے او اوچت دے

عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝۶۷ وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ

د هغے نه چه دوی ورسره شریک جوړوی. او پوکے به اوکړے شی په شپیلۍ کښ

په قباحت د شرک بانددے چه د پیغمبر عمل ورته پیټنګیدلے نشی نو د نورو خلقو عمل به شرک ته څه رنګے پیټنګ شی. او د پیغمبر نه خو ګناه نه کیږی نولهٰن اشرکت خطاب په طریقه د فرض تقدیر دے یعنی بالفرض والتقدیر که پیغمبر شرک اوکړو نو عملونو به ئې برباد شی. بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ مخکښ ایت کښ منع کول وو د شرک نه او په دے ایت کښ امر د توحید دے.

او الشّٰكِرِيْنَ نه مراد ظاهرول او دعوت کول د توحید دی.

۶۷: د دے ایت نه تر اخر د سورت پورے پنځم باب دے په دے کښ زجر او تخویف اخروی دے په ذکر د درے حالاتو سره اول فناء د عالم دویم بعث او حساب دریم جزا او بشارت تفصیلیه دے. په دے (۶۷) کښ زجر دے مشرکین فی العبادت ته. او قَدَرُ په معنیٰ د تعظیم دے او حق تعظیم د الله تعالیٰ دادے چه بندګی د هغه په داسے طریقه اوکړے شی چه هر قسم شرک نه پاکه بندګی وی او مشرک داسے نه کوی نو معلومه شوه چه مشرکینو الله تعالیٰ نه دے پیژندلے او نه ئې تعظیم کړے دے او نه ئې صفت د هغه کړے دے په لائق طریقے سره. وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ په دے کښ عظمت شان د الله تعالیٰ ذکر کوی. لفظ د جمیعًا دلالت کوی چه مراد د دے نه ټولے (راووه) زمکے دی او د قبض نه مراد رانیول د هغې دی په لاس کښ د دے وجے نه د قیامت تخصیص ئې کړے دے صرف قدرت ترینه مراد نه دے ځکه قدرت ئې په دنیا کښ هم شته نو تخصیص د قیامت ته حاجت نه وو. بِيَمِيْنِهٖ دا د متشابهاتو نه دے په کیفیة کښ او په اعتبار د معنیٰ سره محکم دے یعنی څه لاس او کیفیة د هغې ریاتے په بل ځ)

فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ

تو مړه به شي هغه څوک چه په آسمانو کښې دي او هغه څوک چه په زمکه کښې دي

إِلَّا مَنْ شَاءَ اللّٰهُ ۖ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرٰى

مګر هغه څوک چه غواړي الله تعالیٰ بقاء د هغوی بیا به پوکے اوکړے شي په هغې کښې بل ځل

فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ ﴿٦٨﴾ وَأَشْرَقَتِ

نو دغه وخت به دوی ولاړ وي ګوري به - او روښانه به شي

الله تعالیٰ پیژنی - بیا د قبضے او د یمین نه مشبهه او مجسمه دلیل نیسي چه د الله تعالیٰ مشابه او جسم شته دے نو جواب ئے اوکړو چه سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ

یعنی په قدرت او علم کښې د هغه شریک او دا رنګ شبیه ئے نیشته نو عبادت کښې ئے هم شریک نیشته دے - او هر کله چه آسمانو نه زمکے قبض کول علو راوچت ولے) د الله تعالیٰ غواړی د دے وجه نه ئے و تعالیٰ هم ذکر کړے دے په روایت د ترمذی کښې دی "چه عائشه رضی الله عنها تپوس اوکړو چه په دا سے حالت کښې انسانان به په کوم ځائے کښې وی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم جواب کښې اوفرمائیل چه د جهنم د پاسه په پُل بان دے به وی"۔

۶۸:- په دے کښې تخویف اخروی دے او په دے کښې سرهٔ د ماقبل نه حال د فناء د عالم ذکر کوی. فَصَعِقَ صعق په معنیٰ د مرګ دے او یا په معنیٰ د بے هوشئ سره دے دلته په اوله معنیٰ سره غوره دے. إِلَّا مَنْ شَاءَ اللّٰهُ په دے کښې ډیر اقوال دی د قتاده قول دا دے چه د دے مصداق الله تعالیٰ ته معلوم دے مونږ ته نه دے معلوم دویم قول مشهور دا دے چه مراد ترینه هغه څوک دی چه الله تعالیٰ د فنا د پاره نه دی پیدا کړی لکه حورے غلمان د جنت او ماران لړمانان د جهنم دریم قول کښې ملائک مراد دی چه هغوی به نه وفات کیږی - څلورم قول دا دے چه د دے نه مراد هغه خلق دی چه مخکښې مړه شویدی او فصعق ئے د دے وجے نه ذکر کړو چه په دغه وخت کښې د دوی د مرګ سبب به هیبت د قیامت وی۔ او په دویمه معنیٰ سره مراد د من شاء الله نه موسیٰ علیه السّلام دے لیکن هر کله چه په دغه حدیث د صعق کښې چه لفظ فلا ادری راغلے دے چه نبی صلی الله علیه وسلّم ته به هغه وخت هم علم نه وی چه په موسیٰ علیه السلام باندے صعق راغلے دے او که نه نو استثناء د موسیٰ علیه السلام یقیناً داخل کول صحیح نه دی.

الْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا وَوُضِعَ الْكِتٰبُ

زمکه (د قیامت) په نُور د رب د هغې سره او کیخودلے به شی عملنامے

وَجِائَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ وَقُضِيَ

او راوبه وستلے شی پیغمبران او شهیدان او فیصله به اوکړیشی

بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۶۹﴾

په مینځ د دوی کښې په حقه سره او په دوی باندے به ظلم نه شی کیدے.

وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُوَ اَعْلَمُ

او پوره به ورکړیشی هر نفس ته بدله د هغه عملونو چه کړیدی او الله تعالیٰ ښه پوهه دے

بِمَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۰﴾ ع وَسِيْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

په هغه کارونو چه دوی ئې کوی. او او به شړلے شی کافران

اودَدے ایت نه صراحةً معلومه ده چه شپیلئ به دوه کرته وهلے کیږی اول دَ فنا دَپاره او هغې ته فزع هم وائي لکه سورة نمل سـ۸۷ کښې دی او صعق ورته هم ویلے کیږی او دویمه دَ بعث بعد الموت دَپاره ده. او دا دواړه په سورة یٰس کښې سـ۴۹ سـ۵۱ هم ذکر شویدی.

سـ۶۹ سـ۷۰:- په دے کښې دَ ورځ دَ بعث اودَ حساب بعض حالت ذکر کوی.

بِنُوْرِ رَبِّهَا نور صفت دَ الله تعالیٰ دے لکه چه سورت نور کښې تیر شویدے بغیر دَ تشبیه او تمثیل نه. اَلْكِتٰبُ مراد تربیه جنس دے یعنی عملنامے. وَالشُّهَدَآءِ دا تعمیم دے روستو دَ تخصیص نه یعنی انبیاء به دَ شهادت دَپاره حاضر کړیشی نو دا رنګ نور شهادت ورکوونکی ملائک، مومنان او اندامونه دَ مجرمانو به هم حاضر کړیشی. وَهُوَ اَعْلَمُ تاکید دے دَ وفیت دَپاره یعنی پوره به ځکه ورکړیشی چه دَ الله تعالیٰ نه هیڅ خیز نشی پټیدلے او دارنګ په دے جمله کښې دفع دَ وهم ده چه الله تعالیٰ حساب کوی او ګواهان پیش کوی نو آیا هغه ناخبره دے نو جواب اوشو په وَهُوَ اَعْلَمُ سره یعنی حساب او پیشی دَ ګواهانو دَپاره دَ الزام دَ حجت ده.

ع ۷

اِلٰى جَهَنَّمَ زُمَرًا ؕ حَتّٰۤى اِذَا جَآءُوْهَا فُتِحَتْ

جهنم طرف ته ډلې ډلې ترڅو پورې چه راشي جهنم ته پرانیستې شي

اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَاۤ اَلَمْ يَاْتِكُمْ

دروازې د هغې او اوبه وائي دوی ته خوکیداران د هغې ایا نه وو راغلی تاسو ته

رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَتْلُوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ رَبِّكُمْ

رسولان ستاسو نه چه لوستل به ئې په تاسو باندې ایاتونه د رب ستاسو

وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ قَالُوْا

او ډیره درکوله تاسو ته د ملاقات د ورځې ستاسو نه چه دا ده دوی به اُوائي

بَلٰى وَلٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ

هاں (راغلی نو) لیکن پوره شویوه فیصله د عذاب

عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۝۷۱ قِيْلَ ادْخُلُوْۤا اَبْوَابَ

په کافرانو باندې . او به ویلې شي ورننوځئ دروازو

۷۱ :. په دې کښې تقسیم د جزا او سزا ذکر کوی روستو د حساب او د شهادت نه نو په دې ایت کښې تخویف اخروی دې په ذکر کولو د حال د منکرینو سره. زُمَرًا هغه جماعتونو ته ویلې کیږي چه د هغوی په مینځ کښې تفرقه ښکاره وی. کفر اګرچه ملتِ واحده دې لیکن په اقسامو د هغې کښې ډیر فرق دې.
فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا سورة حجر ۴۴ کښې تیر شوې دی چه اووه دروازې دی او په دې کښې اشاره ده چه دوی ته د مخکښې نه دروازې نه پرانزی دا د دوی تذلیل دې. وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا په دې کښې مقصد ملامته کول د کافرانو دی دا هم لوئې عذاب دې. لِقَآءَ يَوْمِكُمْ یعنی یوم بعثکم او یوم دخولکم النار. كَلِمَةُ الْعَذَابِ مراد ترینه فیصله ده په تقدیر کښې د دوی د کفر او د عذاب یا هغه کلمه ده چه سورة صٓ ۸۵ کښې ذکر شوې ده.
عَلَى الْكٰفِرِيْنَ د ضمیر په ځائې اسم ظاهر ذکر کړو اشاره ده چه علت د عذاب کفر د دوی دې.

جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ فَبِئْسَ مَثْوَى

د جهنم ته همیشه به یئ په هغې کښې نو ناکاره دے ځائے د اوسیدلو

الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۷۲﴾ وَسِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا

د تکبر کوونکو . او روان به کړیشي (عزت سره) هغه کسان چه ویره کړیده

رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ۗ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا

د رب خپل نه جنت ته ډلے ډلے تر هغې پورې چه کله راشي هغې ته

وَفُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا

او پرانستلے شوے به وي دروازے د هغې او اوبه وائي دوی ته څوکیداران د هغې

سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوْهَا خٰلِدِيْنَ ﴿۷۳﴾

سلام دے دوی په تاسو باندے خوشحاله اوسئ تاسو نو داخل شئ (جنت ته) همیشه به یئ تاسو .

۷۲ :- روستو د الزام د حجت نه په دوی باندے حکم د دخول جهنم دے لفظ قِيْلَ د عموم د قائلانو د پاره دے یعنی الله تعالیٰ او ټول ملائک به داسے اُوائي - خٰلِدِيْنَ په وخت د داخلیدلو کښې خلود نشي کیدے نو مراد د دے نه اندازه کول او اراده کول د خلود دی په دغه وخت کښې . الْمُتَكَبِّرِيْنَ علت د عذاب کفر دے او علت د تذلیل چه په دے ایاتونو کښې ذکر شو هغه تکبر د دوی دے د دے وجے نه دا صفت د دوی یے ذکر کړو -

۷۳ :- دا بشارت اخروی په تفصیلیه دے وَسِيْقَ هغکښې هم دا لفظ وو لیکن هلته سوق د ذلت او د اهانت وو او دلته سوق د اکرام او د عزت دے او اکثر مفسرینو ویلے دی چه دلته سوق د سورولو د جنتیانو مراد دے - زُمَرًا دوی هم مختلف امتونه دی د هر رسول جدا جدا امت دے یا مراد ترینه مختلف عملونو والا دی . یعنی شهیدان او علماء او دعوت و تبلیغ کوونکی وغیرهم په چاچه کوم صفت غالب وی نو په هغه صفت کښې به روان کړیشي وَفُتِحَتْ واو عطف دے په مقدّر (ریتا) باندے او جواب د اِذَا یے ځکه حذف کړے دے چه دلالت اوکړی په عموم باندے (یعنی هر کله چه دوی راشي نو خوشحاله به کړے شي په ډیرو نعمتونو سره) او خاص په نعمت د فتح الابواب سره - او دا اشاره ده د دوی (ریانے په بل مخ)

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهٗ

او دوی وائي ستائنه دَ خدائے الله تعالیٰ لره ده هغه ذات دے چه رشتینے کړے دے موږ سره دعده خپله

وَاَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ

او میراث کښ راکړه موږ ته زمکه دَ جنت ځائے نیسو موږ دَ جنت نه

حَيْثُ نَشَآءُ ۚ فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۷۴﴾

کوم ځائے چه موږ غواړو نو ښهٔ دے ثواب دَ ښهٔ عمل کوونکو۔

اکرام او عزت ته چه هغکښ دَ راتللو ته په دروازے کهلاؤ وی لکه سورة ص سنه کښ تیر شویدی او بعض اهل لغت وائی دی چه دا واو ثمانیه دے یعنی دَ عربو عادت دا دے چه دَ اته عدد په مقام کښ واو ذکر کوی ګویا که دَ یو نو عه دَ عدد په سبعه باندے ختم شوه نو نوے عدد دَ اتو نه شروع شو او دروازے دَ جنت اته دی لکه چه احادیث صحیحه سره ثابت شویده۔ طِبْتُمْ پاک وئے تاسو په دُنیا کښ دَ توحید او دَ ایمان په عقیدے او په نیک اعمالو سره۔ یا دا جمله دعائیہ ده په شان دَ سلام علیکم۔

سنه:۔ داهم په بشارت کښ داخل دے او دا عطف دے په پټ لفظ باندے (دخلوها وقالوا)۔ وَعْدَهٗ او دا وعده ذکر ده په سورة مریم سنه کښ۔ الْاَرْضَ مراد دَ دے نه زمکه دَ جنت ده او میراث ورته په دے وجه وئیلے کیږی چه حاصلیږی بغیر دَ داسے محنت نه چه دَ هغے سره مناسب وی۔ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ یعنی دهٔ لره به په جنت کښ دومره وسعت او فراخی ورکړے شی چه په هغے کښ به په ازادئے سره ګرځی دا نه چه دَ بل چا حصے ته به ورځی۔ حَيْثُ نَشَآءُ په دے صیغه دَ متکلم کښ اشاره ده چه په جنت کښ به هر خوک خالص دَ الله تعالیٰ دَ رضا تابع وی۔ فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ الف لام په دے کښ عهدی دے یعنی "عمل کوونکی په موافق دَ رضا دَ الله تعالیٰ سره" او په صفت ذکر کولو کښ ترغیب دے عمل کولو ته۔

وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ

او وینې به ته ملائکو لره راګیره چورلو ونکی چاپیره

الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ج

دَ عرش ته تسبیح به وائي سره دَ ستائینې دَ رب دَ دوی ته

وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَقِيْلَ

او فیصله به اوکړیشي په مینځ دَ دوی کښ په حقه سره او ویلې کیږی به

الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۵﴾

چه صفتونه دَ خدائیتوب دَ یو الله تعالیٰ دی چه رب دَ عالمیتو دے۔

ع ۸ الرابع ۵

۷۵:۔ په دے کښ عظمت او هیبت دَ ورځې دَ قیامت ذکرکوی مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ حرف دَ مِنْ کښ اشاره ده چه په ټول عرش باندے ملائک احاطه نشی کولے دَوج دَ ډیر عظمت دَ عرش نه۔ وَقِيْلَ په دے صیغه کښ اشاره ده عموم دَ قائلینو ته یعنی ټول مؤمنان او ملائک به حمد دَ الله تعالیٰ وائي۔ اشاره ده چه په جنت کښ لوے تلذّذ دَ (مزه اخستل) ذکر دَ الله تعالیٰ دے په تسبیح او حمد ویلو سره۔ (اللهم اعنّي علی ذکرك وشکرك وحسن عبادتك)

تفسیر دَ سورۃ زمر په حمد دَ الله تعالیٰ سره ختم شو۔

سُوْرَةُ الْمُؤْمِن ۴۰ مَكِّيَّةٌ ۶۰ — بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ — اٰيَاتُهَا ۸۵ رُكُوْعَاتُهَا ۹

حٰمٓ ﴿١﴾ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللهِ الْعَزِيْزِ

الله تعالىٰ دَه مراد باندے ښهٔ پوهيږي. نازلول دَ دے كتاب دَ طرف دَ الله تعالىٰ نه دى زورآور دے

## بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة المؤمن. او دَ دے بل نوم سورة غافر او بل سورة الطول دے.

دَ دے سورت نه تر سورة احقاف پورے اووۀ سورتونه په حواميمو سره مشهور دى. او داد ايم ياب دے او دَ دے په فضيلت كښ ډير روايات وارد دى. دَ مسند دارمى روايت دے چه حواميم ته عرائس القرآن ويلے شى دَ انس او ابن مسعود رضى الله عنهما نه قرطبى او خطيب وغيره نقل كړے دى مرفوعًا چه حواميم ديباج دَ قرآن دے او بل روايت ئے نقل كړے دے چه دَ هر څيز ثمره وى او ثمره دَ قرآن ذوات حٰم دى او بل روايت كښ دى دا باغيچے دى ښائسته شنے يو بل سره نزدے پيوست نو څوك چه غواړى چه دَ جنّت په باغيچو كښ اوسيږى نو دا سورتونه دِ لولى. خازن او خطيب دَ ابن عباس رضى الله عنهما نه روايت ذكر كړے دے چه دَ هر څيز مغز (خلاصه) وى او دَ قرآن مغز حواميم دى. نو كه دا روايات صحيح ثابت شى نو دلالت په او كړى په عظمت دَ دے سورتونو باندے.

**ربط** دَ دے سورت دَ ماقبل سره په ډيرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه سورة زمر كښ رد ووَ په شرك فى العبادة باندے نو په دے سورت كښ رد دے په شرك فى الدعاء باندے چه هغه اهم جُز دَ عبادت دے دويمه وجه دا ده چه په هغه سورت كښ تخويف دنيوى اجمالى ووَ او په دے سورت كښ دَ تفصيل دَ هغے دَ پاره واقعه دَ فرعونيانو ذكر كوى. دريمه وجه دا ده چه دَ هغه سورت په اول كښ تعريف او مقصد دَ قرآن ئے ذكر كړو نو په دے سورت كښ دَ قرآن عظمت ذكر كوى.

**دعوىٰ دَ دے سورت.** رد دے په شرك فى الدعا باندے او اثبات دَ توحيد فى الدعاء دے را وهغه ئے اووۀ كرته ذكر كړے په ۱۲ سا ۱۴ ستا ۲۰ سا ۴۳ ستا ۶۰.

الْعَلِيْمِ ﴿۲﴾ غَافِرِ الذَّنْبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ

پوهه دے بخنه کوونکے دَ گناه دے او قبولونکے دَ توبے دے

شَدِيْدِ الْعِقَابِ ذِى الطَّوْلِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا

سخت عذاب ورکوونکے دے خاوند دَ طاقت دے نیشته واکدار سوا

هُوَ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿۳﴾ مَا يُجَادِلُ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ

دَهغه نه خاص هغه ته دی گرځیدل۔ جگړه نه کوی په ایاتونو دَ الله تعالیٰ کښ

ربط ۶۵سکښ او دا په پنځه طریقو سره دے۔ اول په رد دَجمیع اقسامو دَشرک سره دویم په انه عقلی دلیلو تو سره دریم په واقعه دَ رجلِ مؤمن سره څلورم په اهلاک دَ فرعونیانو سره په سبب دَ انکار دَ هغوی دَ توحید نه او پنځم په ذکر دَ عظمت دَ دے مسئلے سره۔

**خلاصه دَ سورت** دا ده چه دا سورت تقسیم دے درے بابونو ته۔ اول باب تر ۱۲ پورے دے۔ په دے کښ څلور عنوانات دی او دا تمهید دے دَ پاره دَ دعوے دَ سورت او دَ هغے عظمت ذکر کوی اول ترغیب دے لے القرآن په ذکر دَ نهه صفاتو دَ الله تعالیٰ سره دویم عنوان زجر او تخویف دنیوی او اخروی هغه کسانو ته چه په قرآن او په دعوی دَ دے سورت کښ جدال کوی دریم بشارت دے مؤمنانو ته په ذکر دَ دُعاگانو دَ ملائکو سره دَ پاره دَ مؤمن څلورم تخویف اخروی منکرانو ته او سبب دَ عذاب ذکر کوی چه انکار عن التوحید دے۔

**(تفسیر)**

سا:۔ دا دَ مقطعاتو نه دے دَ دے بحث مخکښ باربار تیر شوے دے غوره دا ده چه دا اشاره ده اعجاز دَ قرآن کریم ته دَ دے وجے نه وروسته عظمت دَ قرآن کریم ذکر کوی۔

۲سا۳:۔ په دے کښ ترغیب دے قرآن ته او بیان دَ عظمت دَ هغهٔ دے په ذکر کولو دَ نهه صفاتِ عظیمه دَ نازلوونکی چه الله تعالیٰ دے او دا اول عنوان دے دَ څلورو عنوانانو نه چه خلاصه کښ ذکر شویدی۔ الْعَزِيْزِ کښ اشاره ده صفاتو دَ قدرت ته الْعَلِيْمِ کښ اشاره ده صفاتو دَ علم ته۔ تَنْزِيْلُ مبتدا ده او مِنَ اللّٰهِ خبر دے غَافِرِ الذَّنْبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ دا دواړه صفات دَ توحید والو سره تعلق لری۔ التَّوْبِ جمع دَ توبه ده یا مصدر دے۔ (پاتے په بل مخ)

إِلَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ

مگر کافران تو دهوکه ډې نه کړی تالره ګرځیدل د دوی

فِي الْبِلَادِ ﴿٤﴾ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ

په ښارونو کښ۔ تکذیب کړے وو مخکښ د دوی نه قوم

شَدِيدِ الْعِقَابِ ذِي الطَّوْلِ دا تعلق لری د کافر او مشرک سره۔ الطَّوْلِ په معنیٰ د غنا سره یعنی مستغنی دے د مشرکانو نه او طَوْلِ فضل، انعام او قدرت ته ویلے کیږی.

**فائده:**- د غافر او قابل په مینځ کښ یئ واؤ د جمع ذکر کړے دے اشاره ده چه د مؤمن تائب د پاره یئ دوه قسمه رحمتونه جمع کړیدی او د مشرک د پاره یئ هر یو تخویف مستقل ذکر کړے دے. لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ دا جمله یئ په طور د صفت د الله تعالیٰ سره ذکر کړیده او په منزل- د علت ده د ماقبل د پاره د دے وجے نه واؤ یئ عاطفه نه دے ذکر کړے. إِلَيْهِ الْمَصِيرُ دا صفت تخویف او بشارت دواړو ته شامل دے قرطبی او خطیب شربینی وغیره واقعه د عمر رضی الله عنه لیکلے ده چه هغه یو شرابی ته خط کښ دا آیاتونه اولیکل هغه ته چه خط اورسیدلو نو ژړا یئ اوکړه او توبه یئ اُویستله او عمر رضی الله عنه خلقو ته اُویل چه یو رور مو په لغزش کښ پریوتے وی نو دا سے عمل ورسره کوئ او د توبے او د مغفرت دُعا ورله کوئ او شیطان ته یئ مه پریږدئ.

سے :- دا زجر دے مجادلینوته او دا دویم عنوان دے چه په قران او د دے په مقصد کښ چه توحید دے خوک جګړے کوی نو هغه کافر وی۔ او حدیث مرفوع کښ ذکر دی چه جدال په قران کښ کفر دے او بل حدیث کښ روایت دے چه دا جدال سبب د هلاکت د مخکنو خلقو دے۔ او مراد د جدال نه طعن کول په قران کښ چه دا سحر دے شعر دے کهانت دے وغیره او په دے باندے شبهات او اعتراضونه کول دی۔ او دے ته جدال بالباطل ویلے کیږی او په دے سورت کښ دا په مختلف تعبیراتو سره ذکر دے په ۵ ۳۵ ۵۶ کښ.

او د دے جدال مقصد د حق مقابله کول او هغه ختمول دی او هر چه جدال بالحق دے هغه صفت د صالحینو دے لکه جادِلهم بالتی هی احسن او مراد د هغے نه شبهات او شکونه د اهل باطل دفع کول او په هغوی باندے الزامی دلیلونه قائمول دی په نرمه طریقه سره او دا خو جهاد فی سبیل الله دے.

فَلَا يَغْرُرْكَ الخ په دے کښ جواب د وهم دے کہ دا مجادلین کافر وے نو په

نُوۡحٍ وَّالۡاَحۡزَابُ مِنۡۢ بَعۡدِهِمۡ ۪ وَهَمَّتۡ

دَ نوح علیه السّلام او نورو مخالفو ډلو روستو دَ دوی نه او پوخ قصد کړے وو

كُلُّ اُمَّةٍۢ بِرَسُوۡلِهِمۡ لِيَاۡخُذُوۡهُ وَجٰدَلُوۡا

هر امت په باره دَ رسول خپل کښې دَ پاره دَ دې چه اونیسی هغه (دَ قتل کولو دَ پاره) او جګړه کوله دوی

بِالۡبَاطِلِ لِيُدۡحِضُوۡا بِهِ الۡحَقَّ فَاَخَذۡتُهُمۡ ۣ

په باطل سره دَ پاره دَ دے چه اوتوړوی په دے سره حق لره تو اونیول ما هغوی

فَكَيۡفَ كَانَ عِقَابِ ﴿۵﴾ وَكَذٰلِكَ حَقَّتۡ

نو څه رنګ شو عذاب زما ۔ دغه شان پوره شوه

كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اَنَّهُمۡ

یوه فیصله دَ رب ستا په کافرانو باندے چه دوی

دنیاکښې دَ دوی مزے او مالداری ولے ده جواب اوشو چه دا مزے نه دی بلکه تَقَلُّبُ دے۔او باب تفعّل کښې معنیٰ دَ تکلف ده یعنی اګرچه دَ دوی جائیدادونه او تجارتونه اولښکرے وغیره ډیردی لیکن دا سبب دَ پریشانئ او دَ تکلیفونو دے اطمینان ورله نیشته ۔

ف:۔ دا تخویف دنیوی دے په ذکر دَ مجادلینو تیرشوؤ سره او دَ عذاب دَ هغوی سره او دَ هغوی درے مرضونه ئے ذکر کړے دی یو تکذیب او دویم تکلیف ورکول رسولانوته دریم جدال بالباطل ۔

لِيَاۡخُذُوۡهُ مراد دَ دے نه قیدول او قتل کول او نور تکلیفونه ورکول دی ۔

بِالۡبَاطِلِ مراد دَ دے نه شبهاتِ باطله دی چه هیڅ حقیقت ئے نیشته ۔

لِيُدۡحِضُوۡا بِهِ الۡحَقَّ دا مقصد دَ جدال دَ دوی دے ۔ دَ حَضُ په اصل کښې خوئیدلو ته ویلے کیږی نو مراد ترینه زائله کول او ختمول دَ حق دی ۔

وقف النبي صلی الله علیه وسلم
وقف لازم

أَصْحٰبُ النَّارِ ﴿٦﴾ اَلَّذِيْنَ يَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ

اوسیدونکو دَ اُور دي هميشه . هغه ملائک چه پورته کوی عرش دَ الله تعالیٰ

وَمَنْ حَوْلَهٗ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ

او هغه چه چاپیره دَ هغه نه دي تسبیح وائي سره دَ ستائینې دَ رب دَ دوی نه

وَيُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِيْنَ

او ایمان راوړی په هغه باندے او بخنه غواړی دپاره دَ

اٰمَنُوْا ۚ رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا

مومنانو (وائي دوی) اے ربه زمونږ راګیر کړے دے تا هر څیز په رحمت او علم کښ

فَاغْفِرْ لِلَّذِيْنَ تَابُوْا وَاتَّبَعُوْا سَبِيْلَكَ

نو بخنه اوکړه هغه چاته چه توبه ئے کړے ده دَ شرک نه او تابعداری کړے ده ستا دَ لارے

وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ﴿٧﴾ رَبَّنَا وَاَدْخِلْهُمْ

او بچ اوساتے دوی لره دَ عذاب دَ اُور نه . اے ربه زمونږ او داخل کړے دوی

ت ۶ :. په دے کښ تخویف اخروی دے . وَكَذٰلِكَ یعنی "څه رنګ چه اونیول مونږ دوی لره په عذاب سره". حَقَّتْ عَلَيْهِمْ لزوم دَ کلمے نه مراد په تقدیر کښ فیصله کول دی یا صادور دَ فیصلے دَ الله تعالیٰ دے په وخت دَ کولو دَ دوی کښ. اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ دابیان دَ کلمة دے یا مراد دَ کلمے نه قول دَ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ دے او اَنَّهُمْ کښ باءِ سببیه مقدّر دے یعنی په سبب دَ دے چه دوی مستحق دَ اُور دی.

ت ۷ ت ۸ ت ۹ :. په دے ایاتونو کښ بشارت دے مؤحدینو ته روستو دَ تخویق دَ منکرینو نه او دادریم عنوان دے او هرکله چه ئے دَ کافرانو دشمنی ذکر کړه دَ مؤمنانو سره نو اوس ذکرکوی دوستانه او شفقت دَ ملائکو په مؤمنانو باندے دپاره دَ تسلئ دَ دوی . اَلَّذِيْنَ يَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ تخصیص دَ دے ملائکو ئے دَ دے وجے نه اوکړو چه دوی ډیر مقرب او لوئے شان او قوت والا دی حدیث دَ جابر رضی الله عنه کښ مرفوعًا راغلے دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ حملة العرش دَ ملائکو نه دَ یو ملک حال ذکر کړو چه دَ غوږ دَ نرمے نه ئے تر اوګے پورے دَ اووؤ سوؤ کلونو مزل دے . او دَ دے ملائکو صحیح عدد الله تعالیٰ

جَنّٰتِ عَدْنِ الَّتِیْ وَعَدْتَّهُمْ وَمَنْ صَلَحَ

جنتو د دیره کیدلو ته هغه چه تا وعده کړے ده دَ دوی سره او هغه څوک چه جوړ وی (دَ دوی سره)

مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّیّٰتِهِمْ ؕ

دَ پلارانو دَ دوی نه او دَ بیبیانو دَ دوی نه او دَ اولاد دَ دوی نه

اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۸﴾ وَقِهِمُ السَّیِّاٰتِ ؕ

یقیناً ته زور اور حکمتونو والا یې۔ او بچ ساتے دوی لره دَ ناکاره عقوبتونو

وَمَنْ تَقِ السَّیِّاٰتِ یَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهٗ ؕ

او هغه څوک چه تا بچ ساتل دَ ناکاره عقوبتونو نه په دے ورځ نو یقیناً رحم اوکړو تا په هغه بانده

ته معلوم دے ځکه چه په دے کښ صحیح حدیث مرفوع نیشته. یُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ دا ذکر دَ عبادت او دَ طاعت دَ ملائکو دے. وَیُؤْمِنُوْنَ بِه دا علت دے دَپاره دَ تسبیح او حمد او به نه مراد دَ الله تعالیٰ توحید دے وَیَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا اشاره ده چه دوی خیرخواه دَ مؤمنانو دی نو معلومه شوه چه اشتراک په عقیده دَ توحید کښ سبب دَ محبت او دَ نصیحت (خیرخواهی) دے او په دے کښ ترغیب دے ایمان راوړلو ته رَبَّنَا دا ذکر دَ دُعا دَ مغفرت دے او لفظ دَ رَبَّنَا وسیله ده دَ نوم دَ الله تعالیٰ په عامو دُعاګانو کښ اشاره ده چه یا الله ته زمونږ مُربّي او محسن یې نو په مونږ بانده احسان دَ اجابت دَ دُعا اوکړه وَسِعْتَ كُلَّ شَیْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا دا هم وسیله ده په دوه صفتونو دَ الله تعالیٰ سره ځکه چه دَ اجابت دَ دُعا دَپاره رحمتِ عظیمه او علم په حالاتو دَ دُعا کوونکی بانده ضروری دے په اصل کښ فاعل دَ وسعت رحمت او علم دے لیکن دلته کښ فاعل یې الله تعالیٰ اوګرځوو او رحمت او علم یې په طریقه دَ تمیز سره ذکر کړو اشاره ده چه الله تعالیٰ په توسیع دَ رحمت او دَ علم کښ بے اختیاره نه دے او دا رنګ اشاره ده په تمیز بعد الابهام کښ تاکید او مبالغ دَ دے دواړه صفتونو ته۔ وَاتَّبَعُوْا سَبِیْلَكَ په تابُوْا کښ اشاره وه عقیدے دَ توحید او اجتناب عن الشرك ته او په وَاتَّبَعُوْا کښ اشاره ده عمل صالح ته۔ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِیْمِ په دے کښ اشاره ده معفرتِ کامله ته یعنی داسے مغفرت ورته اوکړے چه دَ عذاب هیڅ استحقاق په کښ پاتے نه شی۔ رَبَّنَا وَاَدْخِلْهُمْ هرکله چه مخکښ یې ازاله دَ عذاب ذکر کړه نو اوس دُعا دَ ثوابِ کامله ذکر کوی. وَمَنْ صَلَحَ الآیة یعنی چاچه دَ مؤحد (پاتے په بل مخ)

ع ۲

وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

او دا کامیابی لویه ده یقیناً هغه کسان

كَفَرُوْا يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللّٰهِ اَكْبَرُ مِنْ مَّقْتِكُمْ

چه کفر ئې کړے دے آواز به ورکیدیشی دوی ته (د قیامت په ورځ) چه خامخا غصه د الله تعالی پیره ده د غصے ستاسو ته

اَنْفُسَكُمْ اِذْ تُدْعَوْنَ اِلَى الْاِيْمَانِ

تن په ځانونو ستاسو باندے کله چه بللے کیدلے به تاسو ایمان ته

سره په توحید کښې موافقت کړیدے پلار، شیخ اولاد اګرچه عماهده ئې د دغه کس پشان نه ده کړے لیکن دوی لره به د هغه د پوره خوشحاله کولو د پاره جنت ته داخل کړے شی او دا رنګ سورة رعد ۲۳ کښې تیر شویدی. وَقِهِمُ السَّيِّئَاتِ مراد ترینه عذاب د ګناهونو د هغوی دے نو سوال دادے چه داخو تکرار دے ځکه چه مخکښې هم وقهم عذاب الجحيم ذکر شویدے جواب دادے چه دلته ضمیر اباء او ازواج او ذریات ته راجع دے او مخکښې ضمیر اصل مؤحد داعی ته راجع وؤ. یا مراد وقایة د سیئات نه په دنیا کښې یعنی ساتل دی د ګناهونو نه.

يَوْمَئِذٍ په اوله معنیٰ ورځ د قیامت او په دویمه معنیٰ دنیا مراد ده.

د مطرف قول دے چه ډیر خیرخواه په بندګانو د الله تعالیٰ کښې د بندګانو د پاره ملائک دی په سبب د دے ایاتونو او بدخواه په مخلوق کښې د مخلوق د پاره شیطان دے. او دا رنګ په دے ایاتونو کښې د مؤمنانو د پاره ډیر لوئے بشارت دے چه که یو ملک دعا او غوارې نو مستجاب ده نو چه ټول ملائک غوارې نو هغه خو ضرور قبلوی.

او خلف بن هشام ویلے دی چه ما په سلیم بن عیسیٰ باندے قران لوستلو چه دے ایت ته را اورسیدم نو هغه اوژړل او اوئې ویل چه اے خلفه مؤمن د الله تعالیٰ په نیز څومره ګران دے چه دے په بستره باندے اوده پروت وی او ملائک ورله مغفرت غوارې دا قرطبی روایت راوړے دے.

فَتَكْفُرُوْنَ ﴿١٠﴾ قَالُوْا رَبَّنَآ اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ

نو تاسو به کفر کوۀ . دوی به اُوائی اے ربه زمونږ مړګ راوستلے دے تا په مونږ یانے دوه کرته

وَاَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوْبِنَا

او ژوندی دے دا کړیدے دوه کرته نو اقرار کوو مونږ په ګناهونو خپلو باندے

فَهَلْ اِلٰى خُرُوْجٍ مِّنْ سَبِيْلٍ ﴿١١﴾

نو آیا شته دے وتلو ته خه لار .

سنا :- دا تخویف شدید دے کافرانو مجادلینو ته روستو دَ عظمت شان دَ مؤمنانو نه او دا خلورم عنوان دے . يُنَادَوْنَ آواز به ورکیدے شی دَ قیامت په ورځ او دوی به په جهنم کښ وی او ځان ته به ډیر غصّه وی . لَمَقْتُ اللّٰهِ لام ئے ابتدائیه دَدے وجے نه ذکر کړو چه ینادون کښ معنیٰ دَ قول پرته ده او دَ مقوله په سر کښ لام ابتدائیه داخلیدے شی . مِنْ مَّقْتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ او دا غصّه دَ دوی په قیامت او په جهنم کښ ده اِذْ تُدْعَوْنَ اِلَى الْاِيْمَانِ دا متعلق دے په لمقت الله پورے یعنی دَ الله تعالیٰ غصّه په تاسو باندے په دنیا کښ وه چه کله به تاسو ته دعوت او تبلیغ دَ ایمان کیدے شو او تاسو به انکار کوۀ او دا غصّه دَ الله تعالیٰ ستاسو دَ دے غصّے نه ډیره لویه ده یعنی تاسو الله تعالیٰ له ډیر غصّه کړے او خفه کړے دے په انکار کولو ستاسو دَ توحید نه او س په ستاسو څه غصّه وی ؟

**فائده** :- مقت سخت غضب او بغض ته ویلے کیږی او دا صفت دَ الله تعالیٰ دے څه رنګ چه دَ هغه دَ شان سره خائیږی تاویل ته هیڅ ضرورت نیشته۔

سلا :- دا جواب دَ هغوی دے په طریقه دَ اقرارِ جرم سره دَ دے دَ پاره چه دَ جهنم نه او ځی او دُنیا ته واپس لاړ شی هاں پدے آیت کښ دَ ډیر هیبت دَ عذاب دَ وجے نه دُنیا ئے هیره شویده نو هغے ته دَ واپس کیدلو ذکر نه کوی او په بل حالت کښ دوی وائی هل الیٰ مرَدٍّ من سبیل شوریٰ سکک فارجعنا نعمل صالحا سورة السجده سلا یا لیتنا نرد انعام سکا اخرجنا نعمل صالحا فاطر سک

**فائده** :- په دے آیت کښ دوه مرګونه او دوه ژوندونه ئے ذکر کړے دی لکه چه سورة بقره سکا کښ ذکر دو - په دے کښ اول قول دا دے چه دَ اول مرګ نه مراد وجود دَ دوی وؤ په شکل دَ نطفے سره په ریاڅے په بل مخ )

ذٰلِكُمْ بِاَنَّهٗۤ اِذَا دُعِیَ اللّٰهُ وَحْدَهٗ كَفَرْتُمْ ج

دا دَدے وجہ نه چه کله به یلے کیدے شو الله تعالٰی په یو والی سره نو تاسو به انکار کوۂ

وَاِنْ یُّشْرَكْ بِهٖ تُؤْمِنُوْا ط فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ

او که چرے شرک به کیدے شو دَهغه سره نو تاسو به ایمان راوړو نو اختیار دَ یو الله تعالٰی دے

الْعَلِیِّ الْكَبِیْرِ ﴿۱۲﴾ هُوَ الَّذِیْ یُرِیْكُمْ

چه اوچت دے او لوے دے۔ خاص الله تعالٰی هغه ذات دے چه ښائی تاسو ته

ارحامو دَ مائینډ وکیښ او دَ دویم مرګ نه مراد مشهور مرګ دے او دَ اول حیات نه مراد روح اچول دی په بدن کښ په ارحامو دَ مائینډ وکیښ او بیا دنیا ته بهر راوتل او دویم ژوند روح اچول دی په دغه بدن کښ په ورځ دَ قیامت او هغ ته بعث بعد الموت ویلے کیږی او دا سے ترتیب په سورة مؤمنون دَ ۱۲ نه تر ۱۶ پورے ذکر کړے دے۔ په دے قول کښ په نطفه باندے دَ میت اطلاق په طریقه دَ تشبیه یا مجاز سره شویدے او دا قول دَ ابن عباس او ابن مسعود او قتاده او ضحاك نه مفسرینو نقل کړے دے او دا غوره دے په دے کښ دَ قبر دَ حیات ذکر نه دے شوے ځکه چه هغه حیاتِ حقیقیه نه دے۔ دویم قول دادے چه اول مرګ مشهور مراد دے او اول حیات په قبرونو کښ مراد دے بیا دویم مرګ په قبر کښ او دویم حیات په آخرت کښ مراد دے لیکن په دے قول باندے اشکال دادے چه اول ژوند چه دنیوی او حقیقی ژوند دے دَ هغه ذکر پریخودل او حکمی ژوند ذکر کول بعیده خبره ده دویم داچه په دے توجیه باندے درے حیاته معلومیږی دریمه داده چه په قبر کښ دَ حیات نه روستو بیا مرکیدلو دَ پاره دلیل صریح صحیح نیشته۔

۱۲:- ذٰلِكُمْ دَ کښ اشاره ده پټ عبارت ته یعنی (لیس الے خروج من سبیل) او دَ دے علت ذکر کوی چه انکار عن التوحید دے۔ وَحْدَهٗ مصدر مضاف دے په موضع دَ حال کښ دے یعنی متوحداً و منفرداً یا منصوب دے په ظرفیت سره یعنی علی حدته۔ وَاِنْ یُّشْرَكْ بِهٖ دا مضارع په معنٰی دَ ماضی ده عطف دے په دعٰی باندے یا مراد دادے چه روستو دَ واپس کیدلو نه دنیا ته (بالفرض) که چرے شرک کیدے شی نو تاسو ئے بیا هم منئ نو دا پیشان دَ "لَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ" (انعام ۲۸) دے۔ فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ دا جمله هم علت دے چه نجات

ایٰتِهٖ وَیُنَزِّلُ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ رِزْقًا ؕ

دلیلونه او رالیږی تاسو لره د اسمان نه روزی

وَمَا یَتَذَكَّرُ اِلَّا مَنْ یُّنِیْبُ ﴿۱۳﴾

او نصیحت نه قبلوی مګر هغه څوک چه ورګرځی الله تعالیٰ ته۔

فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ وَلَوْ كَرِهَ

نو حاجتونه غواړئ د الله تعالیٰ نه خالص کوونکی یئ هغه دپاره بلنه کول اګرچه بد ګڼړی

الْكٰفِرُوْنَ ﴿۱۴﴾ رَفِیْعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ ۚ

کافران۔ (الله تعالیٰ) اوچتوونکے د درجو دے عرش والا دے

نیشته ده دے وجه نه چه اختیار د الله تعالیٰ دے او رد دے په مشرکانو باندے هغوی عقیده لره چه زمونږ شفعاؤ ته اختیار دے مونږ به بچ کوی د تکلیف نه په دُنیا او اٰخرت کښ۔

۱۳:۔ دا دلیل عقلی د توحید دے او علت دے دپاره د دے چه فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ او دفع د عذر د مشرکانو ده په اظهار د دلیلونو سره په دُنیا کښ۔ اٰیٰتِهٖ مراد د دے عقلی دلیلونه په محسوساتو د دنیا سره اسمانونه، زمکے، غرونه، نمر، سپوږمے، ستوری، هواګانے، وریځے، بارانونه، اونے او بوټی وغیره دی۔ رِزْقًا مراد ترینه سبب د رزق دے یعنی باران۔ اٰیٰتِهٖ کښ اصلاح او قوام د دین ته اشاره ده او رِزْقًا کښ اصلاح او قوام د بدن ته اشاره ده۔ وَمَا یَتَذَكَّرُ یعنی تذکر په طریقه د توحید سره موقوف دے په طلب د حق باندے۔

۱۴:۔ د دے ایت نه تر ۱۵ پورے دویم باب دے په دے کښ دعویٰ د سورت ده او عظمت د هغه دعوے دے په ذکر د صفاتو د الله تعالیٰ سره د تخویف اخروی او دنیوی نه دپاره د منکرینو د دغه دعوے تر ۲۲ پورے بیا مثال د تخویق په واقعه د فرعون سره او تشجیع په تبلیغ د توحید باندے په مکالمه د رجلِ مؤمن سره او په اٰخر کښ تخویق اخروی په ذکر د براءت د متبوعینو د اتباعو خپلو نه په شرک او کفر کښ۔

په دے (۱۴) کښ دعویٰ د سورت ده یعنی امر په توحید فی الدعاء او رد د شرک فی الدعا او فَا ئے د دے وجه نه راؤړو چه دا تفریع ده په تیر شوے عنوانانو باندے۔ مُخْلِصِیْنَ لَهُ اخلاص براءت دے ریاتے په بل څ

يُلْقِى الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ

راغورځوي وحي په حکم خپل سره په هغه چاچه اوغواړي

مِنْ عِبَادِهٖ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ⑮

دَ بندګانو خپلو نه د ے دپاره چه ويره ورکړي دَ ورځ دَ ملاقاتونو نه

دَ هر قسم شرک جلي او خفي او دَ تشبيه نه. الدِّيْنَ دلته مراد دعا ده. وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ اشاره ده چه څوک توحيد في الدعا بيانګړي نو هغه کافروي او دا رنګ اشاره ده چه په دے مسئله کښ په دَ منکرينو دَ طرف نه هر قسم مصيبتونه راځي چه په هغ باند ے صبر کول ضروري دي.

۱۵: په دے کښ درے صفات دَ الله تعالىٰ ذکر کوي دَپاره دَ ترغيب دَ توحيد في الدعاء او دا عظمت دَ دعوے دے. يعني په الله تعالىٰ پورے دُعا او مدد خاص کړئ دَ دے وجه نه چه دَ هغه دَپاره صفاتِ عاليه دي.

رَفِيْعُ الدَّرَجٰتِ په معنىٰ دَ مرتفع دے يعني حق دار دَ اوچتو درجو دَ مدح او دَ ثنا دے يا په معنىٰ دَ رافع دے يعني اوچتوونکے دَ درجاتو دَ مؤحدينو دے په اخرت کښ او اوچتوي درجے دَ بعض خلقو په بعضو باندے په دنيا کښ لکه چه فرمائيلي دي "يرفع الله الذين امنوا منكم والذين اوتوا العلم درجات ورفع بعضكم فوق بعض درجات". ذُو الْعَرْشِ يعني خالق او مالک دَ عرش دے او محتاج نه دے عرش ته. يُلْقِى الرُّوْحَ مراد دے نه وحي ده ځکه چه په هغ سره حياتِ ايماني حاصليږي او عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ نه مراد انبياء عليهم السلام دي او فعل مضارع دَپاره دَ حکايت دَ حال ماضيه دے يعني وحي ئے رالیږلے ده په انبياء عليهم السلام او په دے نبي صلى الله عليه وسلم باندے يا مراد دَ روح نه قرآن دے نو مراد دَ عباده نه په دے امت کښ هغه خلق دي چه هغوي ته الله تعالىٰ علوم دَ قرآن کريم او توفيق دَ عمل ورکړے وي.

لِيُنْذِرَ داغاية او مقصد دَ القا دَ روح دے يعني مراد دَ دے نه دعوت او تبليغ دے. يَوْمَ التَّلَاقِ په اصل کښ التلاقي دے (ملاقاتونه دَ يو بل سره) او دا نوم دَ ورځ دَ قيامت دے ځکه چه ملاقات (يو ځائے کيدل) دَ روح او شي دَ بدن سره او ملاقات دَ هرچا په اوشي دَ خپلے جزاء دَ اعمالو سره او ملاقات په اوشي دَ عابدانو او معبودانو او ظالمانو او مظلومانو او دَ اسمان والو او دَ زمکے والو او دَ اولينو او دَ اخرينو دَ الفظ دے ټولو ته عام او شامل دے.

يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ ۚ لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ

هغه ورځ چه دوی به ښکاره وی نه دے پټ په الله تعالیٰ باندے د دوی نه

شَيْءٌ ؕ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ؕ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ

هیڅ څیز د چا ده بادشاهی نن - د الله تعالیٰ ده چه یو دے

الْقَهَّارِ ⑯ اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۢ

زوراور دے - نن به بدله ورکیدے شی هر نفس ته

بِمَا كَسَبَتْ ؕ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ

د هغه عمل چه هغه کړے وی زیاتے نیشته نن یقیناً الله تعالیٰ زر

الْحِسَابِ ⑰ وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ

حساب کوونکے دے - او ویره ورکړه دوی ته د ورځ د نزدے آفت ته

۱۶:- په دے کښې هیبت شان د ورځ د قیامت او د الله تعالیٰ څلور صفتونه ذکر کوی اول علم کلی په دے لفظ سره لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ دویم پوره بادشاهی او اختیار په سوال وجواب سره لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلّٰهِ دریم او څلورم الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ بٰرِزُوْنَ د قبرونو نه راوتل او په ډاګه کیدل چه هیڅ پرده به نه وی او حالتونه ښکاره کیدل دے ټولو ته شامل دے. لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ تخصیص د الیوم ئے د دے وجے نه اوکړو چه په دغه ورځ به ټول بادشاهان او د هغوی بادشاهی او ټول متکبرین او د هغوئ دعوے په ختم شی سوا د الله تعالیٰ نه. په دے سوال وجواب کښې اقوال دی اول قول دا دے چه الله تعالیٰ به یو منادی (ملک) ته امر اوکړی نو هغه به دا آواز اوکړی نو ټول مؤمنان او کافران به دا جواب ورکړی او دا قول د ابن مسعود رضی الله عنه دے. دویم قول دا دے چه سوال او جواب دواړه د الله تعالیٰ د طرف نه دی. دریم قول دا دے چه ملائک به یو بل ته دا سوال او جواب کوی او انسانانو ته به ئے آوروی.

۱۷:- دا نور احوال د ورځ د قیامت ذکر کوی. او تفریع ده په مخکښې صفتونو د الله تعالیٰ باندے یعنی هر کله چه ثابته شوه چه عالِم دے په هر څه باندے او بادشاه دے د هر څه نو معلومه شوه چه جزا سزا ورکول بغیر د ظلم نه او حساب کول دا هم ثابت دی - اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ. (ریاتے په بل مخ)

إِذِ الْقُلُوبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كَاظِمِينَ

کله چه زړونه به د غتو مرۍ سره وي ډک به وي غم نه

مَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ ﴿١٨﴾

نه به وي ظالمانو لره هیڅ دوست کرم او نه سفارشي چه د هغه خبره منلی کیدیشي.

يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ ﴿١٩﴾

پوهه دے الله تعالی په پټ نقصان د سترګو باندے او هغه چه پټوی ئے سینے.

د دے وجے نه د اسبابو د حساب کولو ته محتاج نه دے او حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما سره ثابت ده چه د وخت د نصف النهار (د دنیوی ورځے د نیمے) پورے به بتول حساب ختم کړی.

ف ۱۸ :- دا نور هیبت شان د قیامت ذکر کوی په څلورو طریقو سره اول داچه أزِفَة ده یعنی تردے راتلونکے حادثه او مصیبت دے او دا سے په سورة نجم ۵۷ کښ هم راغلی دی دویم إِذِ الْقُلُوبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ دا کنایه ده ډیرو غمونو لکه سورة احزاب کښ وبلغت القلوب الحناجر یا په حقیقت باندے حمل دے چه د ډیر هیبت د وجے نه زړونه به د خپل ځایونو نه زائل شی او اوچت به شی مرو ته. دریم كَاظِمِينَ د رعب او غم نه به ډک وی ګویا که رګونه د ساه اغستلو ئے بند شوے دی څلورم حال مَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ، حمیم هغه دوست ته ویلے کیږی چه د دوست د تکلیف په وخت کښ په دهٔ باندے ګرموالے او خوځیدل راځی یعنی ګرم دوست او مراد تر دینه نفع ورکول دی ځکه حمیم په وینی لکه سورة معارج ۱۰-۱۱ لیکن نفع به نشی ورکولے وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ دلته نفی د قید او مقید د دواړو ده یعنی سفارشی نیشته او خبره به ئے څه رنګ او منلے شی او دا ایت په باره د مشرکانو او کافرانو کښ دے د نورو ګناهګارانو مؤمنانو د پاره سفارش کیدے شی او فائده به رسوی.

ف ۱۹ :- دا متعلق دے د سریع الحساب سره چه حساب کولے شی او د هر عمل حساب به کوی اګرچه پټ عملونه دی یا متعلق دے د ف ۱۵ سره یعنی نور صفتونه د الله تعالی ذکر کوی د پاره د اثبات د توحید فی الدعا. خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ خائنة په معنی د خصلت ذات خیانت او اضافت ئے په من یا په لام سره دے یعنی هغه خصلت د نقصان او خیانت چه سترګو نه صادریږی یا خائنة مصدر دے په

وَاللّٰهُ يَقْضِيْ بِالْحَقِّ ؕ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ

او الله تعالیٰ پوره ورکوی حق لره او هغه کسان چه دوی ترینه حاجتونه غواړی

مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَقْضُوْنَ بِشَيْءٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

سوا د الله تعالیٰ نه نشی پوره کولے هیڅ څیز یقیناً الله تعالیٰ

هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ﴿۲۰﴾ اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا

هر څه اوری هر څه وینی ۔ آیا دوی نه گرځی

فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

په ملک کښې نو چه اوګوری چه څه رنګ دۓ انجام

الَّذِيْنَ كَانُوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَانُوْا هُمْ

د هغه کسانو چه وو دوی نه مخکښې وو هغوی ډیر

اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاٰثَارًا فِي الْاَرْضِ

سخت د دوی نه په قوت کښې او ډیرو نښو والا وو په ملک کښې

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ وَمَا كَانَ

نو اونیول هغوی لره الله تعالیٰ په سبب د ګناهونو د هغوی او نیشته

ع ۲

معنیٰ د خیانت یا اضافت د صفت دے موصوف ته یعنی الاعین الخائنة ۔ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه یو سړے د یو قوم سره په مجلس کښې ناست وی او پردۓ زنانه ورتیریږی او دے هغه زنانه ته په داسے طریقے سره نظر اوکړی چه ملګری ورباندے پوهه نه شی دے ته خائنة الاعین ویلے کیږی. خائنة الاعین پټ عمل دے د اندامونو ۔ او مَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ پټ عمل د زړونو دے.

۲۰: داهم صفت د الله تعالیٰ دے د پاره د توحید ۔ يَقْضِيْ قضا فیصلے کول او حاجات پوره کول دواړو ته عام دے وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ دا رد دے په شرک فی الدعاء باندے یعنی سوا د الله تعالیٰ نه ټول معبودان هیڅ حاجت نشی پوره کولے نو معلومه شوه چه د هغوی نه حاجتونه غوښتل او حاجت روا ګڼړل بے فائدے کار او ظلم دے.

لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ﴿۲۱﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ

دوی لره د الله تعالیٰ نه هیڅ بچ کوونکے. دا په دے وجه چه یقینًا

كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَكَفَرُوْا

راتلل په دوی ته رسولان په ښکاره حکمونو نو دوی به انکار کوؤ

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ قَوِيٌّ شَدِيْدُ

نو اونیول دوی لره الله تعالیٰ یقینًا الله تعالیٰ قوت والا دے سخت

الْعِقَابِ ﴿۲۲﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا

عذاب ورکوونکے دے. او یقینًا لیږلے وؤ موږ موسیٰ علیه السلام په معجزاتو زمونږ سره

وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۳﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

او دلیل ښکاره فرعون ته او هامان

۲۱ :- دا متعلق دے د ۵ سره او تخویف دنیوی دے منکرینو د دعوے توحید ته او د "والذین یدعون من دونه لا یقضون بشئ" د پاره دلیل دے چه تیر شوی مشرکان هلاک کړے شویدی او د هغوی معبودانو هغوی لره بچ نه کړل وماکان لهم من الله من واق لکه چه د هغوی ظاهری قوتونو هم عذاب نه شو دفع کولے. اٰثارًا فی الارض د هغوی د مکانو نو چتونو او دیوالونه دروازے منارے تر اوسه پورے موجود دی لکه د ثمودیانو کهنډرات.

۲۲ :- دا تفصیل د بذنوبهم دے یعنی لوئے ګناه د دوی په ګناهونو کښ انکار وؤ د رسولانو نه او د هغوی د بینٰتو نه په توحید باندے.

**فائده :-** تیر شوی ایت کښ ذکر د عذاب اهم وؤ نو اَخَذَ ئے مخکښ ذکر کړو او سبب د هغے ئے روستو راوړو او په دے ایت کښ ذکر د سبب اهم وؤ نو سبب ئے مخکښ ذکر کړو او اَخَذَ ئے روستو ذکر کړو.

۲۳ :- دا د تخویف دنیوی مثال پیش کوی او د اَشَدَّ قُوَّةً نمونه ده. بِاٰیٰتِنَا سورة اسراء ۱۰۱ کښ نهه عدد ئے ذکر کړے دے او تفصیل ئے سورة اعراف کښ تیر شویدے وسلطن مبین مراد ترینه عصا ده تو تخصیص بعد التعمیم دے یا مراد ترینه هغه رعب او هیبت دے په زړه د فرعون باندے د موسیٰ علیه السلام نه چه سره د ډیر قوت او ظلم نه بیا هم موسیٰ علیه السلام لره نشی قتل کولے.

وَقَارُوْنَ فَقَالُوْا سٰحِرٌ كَذَّابٌ ﴿۲۴﴾ فَلَمَّا

او قارون ته نو دوی اُویل چه دا جادوگر ډیر دروغژن دے . نو هر کله چه

جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا اقْتُلُوْٓا

راوړو دوی ته حق زمونږ د نیز نه نو دوی اُویل قتل کوئے

اَبْنَآءَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ وَاسْتَحْیُوْا

ځامن د هغه چا چه ایمان ئے راوړے وُو دَدهٔ په ملگرتیا کښ او جیا واخلے

نِسَآءَهُمْ ؕ وَمَا كَيْدُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ﴿۲۵﴾

دَ زنانو دَ دوی ته او نه دے چل ول دَ کافرانو مگر په بربادئ کښ دے .

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُوْنِیْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰی

او اُویل فرعون پریږدئ ما لره چه قتل کړم موسیٰ علیه السّلام لره

۲۴:. دَدے دریو کسانو خاص ذکر ئے اوکړو ځکه چه دَ موسیٰ علیه السّلام سره دَ دُشمنئ سبب دَ فرعون بادشاهي او دَ هامان وزارت او دَ قارون سرمایه داری وه او دا درے قوّتونه اکثر دَ حق په مقابله کښ اودریگی.

(سوال) قارون خو اول وخت دا قول نه دے کړے نو څه رنگ ئے فقالوا کښ دے هم داخل کړو ؟ جواب دا دے چه اول سرته دَدهٔ دا قول باطني وُو اگرچه په ظاهر کښ ایمان راوړے وُو او په روستو وخت کښ ئے دا قول ظاهراً او عملاً شو. سَاحِرٌ معجزات دَ هغه ئے په سحر باندے حمل کړل كَذَّابٌ مسائل دَ توحید او وحی ئے دروغژن اوګنړل.

۲۵:. دا امر دَ قتل دَدے دَپاره دے چه خلق دَ دهٔ سره ملگرتیا اونکړی په دهٔ باندے ایمان رانوړی او دَ دے نه مخکښ امر دَ قتل دَ دے دَپاره وُو چه موسیٰ علیه السّلام پیدا نشی او دَدے قتل ذکر سورة اعراف ۱۲۷ کښ دے او دَ اول قتل ذکر سورة بقره ۴۹ کښ دے وما كيد الكافرين اه دا جواب دَ سوال دے چه فرعونیانو دَ قتل کولو منصوبے جوړے کړے ایا په دے سره خلق دَ ایمان قبلولو نه بندشول؟ جواب او شو چه دَ کافرانو منصوبے او چلونه دَ حق نه په رکاوټ جوړولو کښ همیشه برباد وی.

وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ ۚ إِنِّيْٓ أَخَافُ أَنْ يُّبَدِّلَ دِيْنَكُمْ

او مدد دے اوغواړی د رب خپل نه بیقیناً زه ویریګم چه بدل به کړی ستاسو دین

أَوْ أَنْ يُّظْهِرَ فِي الْأَرْضِ الْفَسَادَ ﴿۲۶﴾

یا به ښکاره کړی په ملک کښی فساد کول .

۲۶ :. هر کله چه دغه منصوبے هیڅ فائده اونکړله نو فرعون بله منصوبه جوړه کړه چه موسیٰ علیه السّلام قتل کړی . ذَرُوْنِیْٓ دا ئے د دے وجے نه اویل چه د هغه په قوم کښی داسے کسان وو چه فرعون ته ئے مشوره ورکوله چه موسیٰ ع مه قتل کوه د هغے یو وجه داده چه بعض کسانو په زړونو کښی محبت د موسیٰ علیه السّلام وو ئ لکه چه ښځے د فرعون ویلے وو (سورة قصص ۹ کښی) نو شاید چه هغے ورته بیا هم ویلے دی چه دے مه قتلوه دویمه وجه داده چه بعض کسانو ورته اویل چه دا کمزورے سړے دے اوکه تا قتل کړو نو خلق به گمان اوکړی چه فرعون د دهٔ د مقابلے نه عاجز وؤ نو ځکه ئے قتل کړو . دریمه وجه داده چه په ملک کښی همیشه داسے اُمراء وی چه هغوی بادشاه لره په یو حادثه کښی مشغولول غواړی د پاره د دے چه دوی ترینه خلاص وی نو د غسے د فرعون په اُمراؤ کښی وو چه فرعون ئے د موسیٰ علیه السّلام په مقابله کښی مشغولول غوختل چه موږ ترینه بچ یو . یا سبب د دے هغه رعب د موسیٰ علیه السّلام دے په فرعون بانده توچا منع کړے نه دے لیکن هسے وائی چه ما پریږدئ چه دے قتل کړم . وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ دا هم وهم د خلقو دفع کوی چه د موسیٰ د خبرے کولو نه زهٔ نه ویریږم او تاسو هم مه ویریږئ . اِنِّیْٓ اَخَافُ ، فرعون ذکر کوی سبب د قتل د موسیٰ علیه السّلام ځکه چه یو د دوؤ خطرونه شته چه یا به د ستاسو عقیدے او دین خراب کړی او یا به کم از کم دله خپله جوړه کړی نو په وطن کښی به جنګونه او فساد جوړ کړی نو اول فساد د دین دے او دویم فساد د دنیا دے او فساد د دین ئے مخکښی ذکر کړو ځکه چه عام خلق په خپل دین بانده رکه حق وی اوکه باطل وی ) ډیر غیرت کوی په نسبت د مالونو او د دنیا ، او دلیل دے چه باطل پرستو خلقو ملیانو پیرانو اقتدار والا خپل عوامو لره د دین (باطل) په نوم بانده دهوکه ورکوی او دا رنګ معلومه شوه چه حق پرستو ته جاهلانو خلقو همیشه د اشرارو د مفسدینو نوم کیخود لے دے .

وَقَالَ مُوْسٰى اِنِّىْ عُذْتُ بِرَبِّىْ وَرَبِّكُمْ

او وویل موسیٰ علیه السلام یقیناً ما پناهي غوختې ده په رب زما او په رب ستاسو

مِّنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۲۷﴾

دَ هر متکبر نه چه ایمان نه لري په ورځ دَ حساب.

وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ

او وویل یو سړي مؤمن دَ کورنۍ دَ فرعون نه وو

يَكْتُمُ اِيْمَانَهٗ اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا

پټوو دهٔ ایمان خپل ایا قتل کوئ تاسو سړے

اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّيَ اللّٰهُ وَقَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

چه اوبه وائي رب زما الله تعالیٰ دے او یقیناً راغلے دے تاسو ته په ښکاره حکمونو سره

مِنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَاِنْ يَّكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهٗ ۚ

ستاسو دَ رب دَ طرف نه او که چرے دے دروغژن وی نو په دهٔ باندې که وبال دَ دروغو دَدهٔ

وَاِنْ يَّكُ صَادِقًا يُّصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِىْ

او که چرے رښتنے وی دے نو اوبه رسي تاسو ته بعض دَ هغه عذاب نه



۲۷:. موسیٰ علیه السّلام دَ خپل توکل علی الله اوَ عدم خوف په بهادرے سره اظهار کوی چه زهٔ هر وخت دَ الله تعالیٰ نه سوال کوم او دُعاء غواړم چه ما لره دَ داسے ظالمانو نه پناهي راکړی.

مِنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ قاتل په ناحقه او ظالم هغه خوک دے چه دا دواړه صفتونه پکښ وی ځان لوے ګڼړی نو دَ چا حق خبره نه مني او طبیعت ئې غواړی چه په لاندے خلقو باندے ظلم اوکړی لیکن بعض طبیعت دَ انسان ظلم کول غواړی لیکن دَ قیامت دَ حساب نه ویره کوی اوچه دَ حساب نه هم نه ویریږی نو دا ډیر لوئے ظالم وی.

يَعِدُكُمْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ

چه وعده کوی تاسو سره دے یقیناً الله تعالیٰ هدایت نه ورکوی هغه چاته چه هغه

مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ﴿۲۸﴾ يٰقَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ

دَ حد نه تیرونکی ډیر دروغژن وی ۔ اے قومه زما ستاسو دَپاره بادشاهی ده

۲۸: دَ دے ایت نه دعوت دَ رجلِ مؤمن شورو دے هر کله چه موسیٰ علیه السّلام په الله تعالیٰ سره پناهی او غوختله نو الله تعالیٰ دَ هغه دَ امداد دَپاره دا رجلِ مؤمن را اوچت کړو چه فرعون ئے منع کوؤ دَ قتل دَ موسیٰ علیه السّلام نه او په دے کښ تشجیع ده په دعوت باندے او ذکر دَ طریقے دَ دعوت دے او تسلّی ده اهل حق ته ۔ او په مکالمه دَ رجلِ مؤمن کښ شلور حِصّے دی ۔ اوله حِصّه په دوه ایا تونو کښ ده په دے کښ ذکر کوی چه کول دَ موسیٰ علیه السّلام دَ قتل کولو نه په نرمه ناصحانه طریقے سره او اشاره کوی چه دَ بادشاهئ دَ غرور دَ وجے نه دَ حق مقابله مه کوئ تباه به شئ ۔ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ، الله تعالیٰ نوم نه دے ذکر کړے بلکه وصف دَ رجولیت ئے ذکر کړے دے اشاره ده چه دا پوره نر او کامل سړے وؤ ۔ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ مفسرینو ویلے دی چه دَ فرعون دَ تره ځوئے وؤ او دَ دے وجے نه فرعون ورته ډیر مهلت ورکړو او دَ هغه بیان ئے هم واؤریدو که اسرائیلی وے نو فرعون دا سے مهلت نه ورکوؤ ۔ يَكْتُمُ اِيْمَانَهٗ دا طریقه دَ دعوت ده چه په وخت دَ ابتدا دَ دعوت کښ دا ضروری خبره نه ده چه داعی دِ خپل مسلک خلقو ته ښکاره کړی دَپاره دَ دے چه هغه خلق دَ ابتداء نه نفرت او نه کړی هاں که هغه خلق مطالبه اوکړی چه ستا مسلک او جماعت څه دے نو بیا دِ جواب ورکړی (اِنَّنِیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ) سورۃ حٰمٓ سجده ۳۳۔ او دا کتمان ګناه نه دے بلکه رخصت دے ځکه چه یو کتمان دَ حق دے چه بیان دَ حق نه کوی او بل کتمان دَ حال دے او په دے سره دَ هغه ایمان ته هیڅ نقصان نه دے رسیدلے دَ دے وجے نه الله تعالیٰ ورته مؤمن صفت ویلے دے او روستو هغه ایمان ښکاره کړے دے ۔ او که په داسے وخت کښ اظهار دَ ایمان کوی نو دا غوره او عزیمت دے دَ دے وجے نه په حدیث دَ ابو بکر رضی الله عنه (چه روستو ذکر کیږی) کښ قول دَ علی رضی الله عنه دا دے وَاللّٰهِ لَيَوْمٌ اَبِیْ بَکْرٍ خَيْرٌ مِّنْ مُّؤْمِنِ اٰلِ فِرْعَوْنَ اِنَّ ذٰلِكَ الرَّجُلَ كَتَمَ اِيْمَانَهٗ فَاَثْنٰی اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَيْهِ فِیْ كِتَابِهٖ وَهٰذَا اَبُوْ بَكْرٍ اَظْهَرَ اِيْمَانَهٗ وَبَذَلَ مَالَهٗ وَدَمَهٗ لِلّٰهِ تَعَالٰی ۔ دلته دَ یکتم

الْيَوْمَ ظٰهِرِيْنَ فِي الْاَرْضِ فَمَنْ يَّنْصُرُنَا

نن زور اور يئ په دے ملک کښې نو څوک به موبز سره مدد اوکړي

مِنْ بَاْسِ اللّٰهِ اِنْ جَآءَنَا قَالَ فِرْعَوْنُ

دَ عذاب دَ الله تعالى نه که چرے راشي مونږ ته اُويل فرعون

معنیٰ کول چه يخووولو يئ ايمان خپل دا دَ لغت او تمام مفسرينو نه خلاف ده ۔
اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّيَ اللّٰهُ يعني دَ دَهٔ هيڅ جرم نيشته چه دَ هغې په وجه يئ قتل کوئے دَ
الله تعالى توحيد ته دعوت ورکول خو څه جرم نه دے ۔ وَقَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ
يعني دليل يئ تاسو ته راوړے دے او يو دليل نه دے بلکه ډير دي ۔
مِنْ رَّبِّكُمْ يعني دليلونه يئ دَ ځان نه نه دي جوړ کړي بلکه دَ رب دَ طرف نه دي
وَاِنْ يَّكُ كَاذِبًا داشک نه دے بلکه دا تلطّف (نرمه طريقه) کول دي يعني کـ
کاذب اوکه صادق وي نو په تاسو باندے وبال نيشته نو وَلے قتل کوئے بلکه کـ
صادق وي نو په تاسو باندے به عذاب راشي ۔ بَعْضُ الَّذِيْ يَعِدُكُمْ مراد ترينه
عذاب دَ دنيا دے لکه چه سورة طٰه ۱۳۴ کښ ذکر دي او باقي عذاب به په آخرت
کښ وي ۔ امام بخاري او مسلم حديث ذکر کړے دے چه رسول الله صلّى الله
عليه وسلّم دَ کعبے په خوا کښ ولاړ وؤ نو عقبه راغے او دَ هغه اوګے يئ دَ شا
دَ طرف نه اونيولے او دَ سټ نه يئ څادر تاؤ کړو مرے يئ ورله خفه کړه
نو ابوبکر رضی الله عنه راغے او دَ عقبه اوګے يئ اونيولے او دَ رسول الله صلّى الله
عليه وسلّم نه يئ لرے ديکه کړو او اوفرمائيل يئ اتقتلون رجلاً ان يقول ربى
الله وقد جاءکم بالبينات من ربکم ۔ او حکيم ترمذی او ابن حجر په الصواعق
المحرقه کښ دا حديث اوګد ذکر کړے دے ۔
اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ دا جمله مستانفه جواب سوال دے چه آيا
په دے بيان سره فرعونيانو ته څه فائده اورسيدله نو جواب اوشو چه مسرف
کذاب ته فائده نه رسيږي ۔ دَ مسرف نه مشرک مراد دے او كَذَّابٌ په دعویٰ
دَ ربوبيت کښ دے او دا اوصاف دَ فرعون وو ۔ يا دا په کلام دَ رجل مؤمن کښ
داخل دے يعني بالفرض که موسیٰ عليه السّلام مسرف وي په ځان زيلے کوي
او کذاب وي په دعویٰ دَ رسالت کښ نو نشي کامياب کيدلے ۔

مَآ اُرِيۡكُمۡ اِلَّا مَآ اَرٰى وَمَآ اَهۡدِيۡكُمۡ اِلَّا سَبِيۡلَ

زۀ رائے نه درکوؤم تاسو ته مګر هغه چه ما رائ درکړے ده او نه خایم زۀ تاسو ته مګر لار

الرَّشَادِ ﴿۲۹﴾ وَقَالَ الَّذِيۡۤ اٰمَنَ يٰقَوۡمِ اِنِّيۡۤ

دَ کامیابئ . او اُویل هغه کس چه ایمان ئے راوړے وو اے قومه زما یقینًا

اَخَافُ عَلَيۡكُمۡ مِّثۡلَ يَوۡمِ الۡاَحۡزَابِ ﴿۳۰﴾

ویره کوؤم په تاسو باندے پشان دَ ورځ دَ عنادیانو .

ف ۲۹:- په دے ایت کښ تزهید فی الدنیا دے سرهٔ دَ تخویف نه چه دَ بادشاهئ او دَ زوراورئ په سبب دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه بچ کیدل نشی . يٰقَوۡمِ دا لفظ دلیل دے چه دا رجلِ مؤمن دَ فرعونیانو دَ نسل نه وؤ او دَ دے ندا مقصود بالنداء پټ دے یعنی دَ الله تعالیٰ شکر اوکړئ په ایمان راوړلو سره په موسیٰ علیه السّلام باندے او دَ دهٔ دَ قتل نه په ځان ساتلو سره (فاشکروا لله ولا تقتلوا موسیٰ) فَمَنۡ يَّنۡصُرُنَا جمع متکلم ئے ذکر کړه دَ پاره دَ بچ کیدلو دَ تهمت نه او ترغیب دَ نصیحت په قبلولو باندے . قَالَ فِرۡعَوۡنُ هرکله چه فرعون اویریدلو چه دَ دے سړی په بیان سره په خلقو باندے اثر پریوځی نو په هغه قوم باندے تلبیس اچوی چه زه ستاسو خیرخواه او مرشد یم زما رائے باندے عمل کوئ .

مَآ اَرٰى دا ماخوذ دے دَ رائ نه مراد دَ دے نه قتل کول دَ موسیٰ علیه السّلام دی سَبِيۡلَ الرَّشَادِ یعنی دَ موسیٰ علیه السّلام نه انکار کول او زما په دین باندے مضبوط پاتے کیدل دا هدایت او رشد دے او دغسے باطل پرستان خپلو باطلو طریقو ته دَ رشد او هدایت په نظر سره ګوری (وَيَحۡسَبُوۡنَ اَنَّهُمۡ يُحۡسِنُوۡنَ صُنۡعًا) .

ف ۳۰:- دَ دے ایت نه دَ مکالمے دَ رجلِ مؤمن دویمه حصّه ده تر ۳۵ پورے په دے کښ تخویف دنیوی او اخروی ذکر کوی او دلیل نقلی دَ یوسف علیه السّلام نه او زجر په صفاتو قبیحو باندے ذکر کوی . په دے کښ ترقی په دعوت کښ دَ ماقبل نه ده ځکه چه مخکښ دَ عذاب راتلل ئے په طریقه دَ شک سره (ان جاءنا) ذکر کړے وؤ او اوس یقینًا ذکر کوی په لفظ دَ اِنِّيۡۤ اَخَافُ عَلَيۡكُمۡ په تاکید سره . مِثۡلَ يَوۡمِ الۡاَحۡزَابِ هغه قومونه چه تحزب او ډله بازی ئے کوله په مقابله دَ رسولانو کښ دَ هغوی دَ عذابونو پشان . (سوال) دَ هغوی دَ

مِثْلَ دَأْبِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ

پشان د حال د قوم د نوح علیه السلام او د عادیانو او ثمودیانو

وَالَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ۭ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ

او د هغه کسانو چه د دوی نه روستو وو او نه غواړی الله تعالی

ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ ﴿۳۱﴾ وَيٰقَوْمِ اِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ

هیڅ ظلم کول په بندګانو باندے. او اے قومه زما یقینًا زه ویریږم په تاسو باندے

يَوْمَ التَّنَادِ ﴿۳۲﴾ يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ ۚ

د ورځ د چغو وهلو نه. هغه ورځ چه او به ګرزئے تاسو شا کوونکی

مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلِ

نه به وی تاسو لره د الله تعالی نه هیڅوک بچ کوونکے او هغه څوک چه بے لارے کړی

اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿۳۳﴾ وَلَقَدْ جَآءَكُمْ

الله تعالی هغه لره نو نیشته هغه لره هیڅ هدایت درکوونکے. او یقینا راغلے وو تاسو ته

عذابونو ورځ او واقعات خو ډیر دی نو یَوْمِ لفظ ئے مفرد ولے ذکر کړے دے؟ (جواب) اشاره ده هغه ټول د الله تعالی د قدرت او د غضب په ړواندے په یوه ورځ او په یو واقعه باندے حساب دی۔

س ۳۱ :۔ دا تفصیل د اجمال دے لفظ دَأْبِ کښ اشاره ده چه د هغوی کفر او تکذیب او د هغې په سبب سره عذاب راتلل د ټولو یو عادت او حالتِ مستمره دے۔ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ دا جمله مستانفه جواب سوال دے که څوک اُوائی چه دا قومونه هلاکول آیا ظلم نه دے؟ جواب اوشو په دے جملے سره یعنی بغیر د حجت نه او بغیر د ګناه نه عذاب نه ورکوی۔

س ۳۲ س ۳۳ :۔ په دے کښ تخویف اخروی ذکر کوی۔ یوم التناد دا نوم د ورځ د قیامت په دے وجه سره دے چه په دغه ورځ کښ به ډیرے نداګانے وی۔ نداګانے د جنت والو جهنمیانو ته او برعکس او آوازونه د اعراف والو دواړو طرفونو ته او ندا د ملائکو جنتیانو ته او آوازونه هرچا ته د هغوی د امام په نوم باندے او فریادونه کول د کافرانو او ظالمانو او نداء د الله تعالی پیریانو او انسانانو ته وغیره. مُدْبِرِيْنَ یعنی شا ګرځوونکے به وی ریاتے په بل مخ)

يُوسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا زِلْتُمْ

يوسف عليه السلام دَ دے نه مخکښې په ښکاره حکمونو سره نو هميشه وئے تاسو

فِي شَكٍّ مِّمَّا جَآءَكُمْ بِهٖ ؕ حَتّٰٓى إِذَا هَلَكَ

په شک کښې دَ هغې نه چې راوړے وُو تاسو ته ترهغې پورے چې کله مړ شو

قُلْتُمْ لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْ بَعْدِهٖ

نو تاسو اوئيل هيچرے به را نه ولېږی الله تعالیٰ دَ دهٔ نه روستو

رَسُوْلًا ؕ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ

هيڅ رسول دغه شان بے لارے کوی الله تعالیٰ هغه چا لره چه دَ حد نه تيريږی

مُّرْتَابٌ ﴿۳۴﴾ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ

او پوخ شک کوونکے وی. هغه کسان چه جګړے کوی په اياتونو دَ الله تعالیٰ کښې

دَ موقف دَ حساب نه روان به کړے شی او ر ته. مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ يعنی دَ دوی معبودانِ باطله دوی لره نشی بچ کولے او نور هم هيڅوک بچ کوونکی نيشته.

۳۴:- دا دليل نقلی دے دَ يوسف عليه السلام نه او دے کې دَ دے وجے نه خاص کړو چه په مصر کښې دے مشهور پيغمبر راليږلے شوے وُو او دا رنګ دا دَ روستې جملے مثال ذکر کوی (چه الله تعالیٰ چا لره بے لارے کړی نو څوک ئې په لارے کولے نشی) بِالْبَيِّنٰتِ مراد ترينه هغه توحيد تفصيلی دے چه په سورة يوسف ۳۹ ۴۰ کښې ذکر دے. دا خطاب په اصل کښې دَ دوی مشرانو ته وُو ليکن دوی (موجوده) دَ پلارانو په لارے روان وو نو دواړه په خطاب کښې يوشان اوګرځولے شول. مِمَّا جَآءَكُمْ دَ دے نه مراد توحيد دے.
لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا يعنی کلک شوئے تاسو په کفر باندے او تاسو اوُويل بنهٔ ده چه دَ يوسف نه خلاص شُو بل پيغمبر به بيا نه راځی.
يا مراد دا دے چه هر کله يوسف عليه السلام وفات شو او نظام دَ مصر ګډوډ شو نو تاسو ارمان اوکړو چه ارمان دے دا سے رسول به بيا راشی اشاره ده چه اوس دَ موسیٰ عليه السلام نه انکار کوئے ليکن بيا به ورپسے ارمانونه کوئے
كَذٰلِكَ کاف دَ پاره دَ تشبيه دے. يعنی لکه چه مصر والا ګمراه شول دغه شان

بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰىهُمْ ۭ كَبُرَ مَقْتًا

بغیر دَ دلیل نه چه راغلے دی دوی ته ډیره غټه ده دا جګړه

عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۭ

په نیز دَ الله تعالیٰ او په نیز دَ مؤمنانو

كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ قَلْبِ

دغه شان مهر وهی الله تعالیٰ په ټول زړه

مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ﴿۳۵﴾ وَقَالَ فِرْعَوْنُ

دَ تکبر کوونکی زور بشکاره کوونکی ۔ او اُویل فرعون

يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ

اے هامانه جوړه کړه ماله دنګه بنګله دَپاره دَدے چه اورسم

هرمسرف مرتاب گمراه کیږی یا کاف په معنیٰ دَ لام تعلیلی سره دے یعنی دَ وجے دَشک کولونه په توحید کښ گمراهی پیدا کیږی مُسْرِفٌ شرک کوونکے چه هغه دَحدادودونه تجاوز کوی ځکه مسرف دے مُّرْتَابٌ په بیّنا تو دَ توحید کښ شک کوونکے چه په درجه دَ انکار کښ اوګرځی نو مرتاب شی ۔

۳۵:۔ دا ترقی ده دَ دوی په گمراهئ کښ چه اول شک وی بیا ارتیاب شی بیا گمراهی شی نو ورپسے جدال کول شی په حق کښ ۔ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ دا معنیٰ دَ جدال باطل ده ۔ اَتٰىهُمْ په دے لفظ کښ اشاره ده چه دلیل هغه دے چه دَ الله تعالیٰ دَطرف نه راغلے وی نو داسے دلیل دَدوی سره نیشته ۔ كَبُرَ مَقْتًا دا قباحت دَ دے جدال ئے ذکر کړے دے چه دالوئے سبب دَ غضب دَ الله تعالیٰ او دَ مؤمنانو دے كَذٰلِكَ کاف تشبیهی یا تعلیلی دے ۔ عَلٰى كُلِّ قَلْبِ کل ئے مقدم ذکر کړے دے اشاره ده چه دَ هر متکبر په زړه باندے مهر نه وهی لیکن هرکله چه دَ بعضِ متکبر په زړه مهر لګوی نو دا مهر احاطه اوکړی دَ هغه په زړه باندے ټول زړه ئے بند کړی ۔ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ اول په حقوق الله کښ دے او دویم په حقوق العباد کښ دے ۔

الْاَسْبَابَ ﴿۳۶﴾ اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ فَاَطَّلِعَ اِلٰٓى

دروازو ته - دروازو دَ اسمانو ته نو ورښکاره به شم

اِلٰهِ مُوْسٰى وَاِنِّىْ لَاَظُنُّهٗ كَاذِبًا ؕ وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ

اِلٰه دَ موسٰی علیه السّلام ته او یقیناً زه ګمان کوم په دهٔ باندې دروغژن او دغه شان ښائسته کړے شوې

لِفِرْعَوْنَ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَصُدَّ عَنِ السَّبِيْلِ ؕ

فرعون ته ناکاره عمل دَ دهٔ او بند کړے شو دَ حق لارے نه

وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ اِلَّا فِىْ تَبَابٍ ﴿۳۷﴾

او نه وو چل ول دَ فرعون مګر په تباهئ کښې وو -

ف۳۶:- دا جواب دے دَ فرعون نه په طریقهٔ دَ تلبیس سره دَ پاره دَ دے چې دَ خلقو په زړونو کښې کلام دَ رجلِ مؤمن اثر او نه کړی یعنی خلقو ته دا ښکاره کوی چه په زمکه کښې خو الٰه زهٔ یم او دَ موسٰی علیه السّلام اِلٰه که چرے وی نو په اسمانو کښې به وی نو دَ هغې دَ مقابلے دَ پاره دَ اسباب جوړولو حکم ئې هامان ته او کړو.
صَرْحًا دنګه بنګله یا مناره چه دَ لرے نه هم ښکاریږی. الْاَسْبَابَ هر هغه څیز چه بل ته پرے رسیدل کیدے شی نو هغې ته سبب ویلے کیږی کهٔ لار وی او که دروازه وی.

ف۳۷:- هرکله چه اسباب دَ اسمانو ته رسیدل ګرانه خبره ده نو دَ هغې دَ اثبات دَ پاره اول ئې اجمال او کړو نو اوس تفصیل کوی دَ پاره دَ تلبیس په خلقو باندے.
فَاَطَّلِعَ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى په نصب (زور) دَ دے لفظ کښې یو وجه داده دا جواب دَ امر دے چه لفظ دَ ابن لی دے او جواب دَ امر کښې دَ فاء نه روستو اَن پټ وی او دا مسلک دَ بصریانو دے دریمه وجه داده چه دَ لعلّ په جواب کښې هم اَن مقدّر وی دَ وجې دَ تشبیه نه دَ تمنی سره او دا مسلک دَ کوفیانو دے او دا ډیر مفسرینو غوره کړے دے. او دا قول دَ فرعون په دے عقیده باندے بناء دے چه الله تعالیٰ یو جسم دے او په اوچت مکان باندے ناست دے لکه دَ دنیا دَ بادشاهانو پشان او دَ هغه سره مقابله کیدے شی او دا عقیده هم کفر دے یا مراد دا دے چه یو اوچت محل جوړ کړی چه په هغې سره دَ کواکب حال معلومیږی او دے ته اسباب السموات ویلے کیږی نو دَ هغې نه به حال دَ اسمانو نو معلوم کړی چه آیا دَ موسٰی علیه السّلام وحی دَ اسمانو نو نه راځی او اِلٰه

وَقَالَ الَّذِيٓ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوْنِ

او ویل هغه کس چه ایمان ئې راوړے وو اے زما قومه تابع شئ زما

اَهْدِكُمْ سَبِيْلَ الرَّشَادِ ﴿۳۸﴾ يٰقَوْمِ اِنَّمَا

او به خایم تاسو ته لار د کامیابئ - اے قوم زما یقیناً

د اسمانونو ده ئ لره رسول کړے دے وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ كَاذِبًا دا لفظ د تلبیس د پاره دے یعنی محل جوړول او اسمانو نو ته ختل او اِلٰه معلوموڵ چه ضروری خبره نه وه ځکه چه غالب گمان یا یقین دا دے چه موسیٰ علیه السلام په دعویٰ د اِلٰه کښ او په دعویٰ د رسالت کښ دروغژن دے. وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ یعنی لکه چه اسمانونو ته ختل او د الله تعالیٰ حالات معلومول ممکن ندی او د ټولو اهل عقلو په نیز بائد ے ناکاره عمل دے لیکن ده ته هغه خائسته عمل ښکاریدلو او چه شرک او کفر ښه کار او گنړلو نو هغه د توحید منلو نه محروم وی د دے وجه نه وصد عن السبيل ئې ذکر کړو.

وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ اِلَّا فِيْ تَبَابٍ دا جمله مستانفه جواب سوال دے چه ایا په دے مکر د فرعون سره څه کامیابی حاصله شوه نو جواب او شو حاصل د جواب دا دے چه دا صرح ئې جوړ کړے نه دے یا ئې جوړ کړو او د مال او د وخت تاوان ئې او شو لیکن الله تعالیٰ هغه محل تباه کړو او فرعون او د هغه قوم ئې غرق کړو.

۳۸: دا دریمه حصّه ده د مکالمے د رجلِ مؤمن ترسټ پورے په دے کښ دعوت ورکوی خپلے اتباع ته او تزهید فی الدنیا او بشارتِ اخرویه ذکر کوی. اهدکم سبیل الرشاد دا په مقابله د قول د فرعون کښ دے چه په ۲۹ کښ تیر شو او په دے کښ تصریح او کړه رجلِ مؤمن د خپل مسلک او د مقابلے کولو د فرعون سره (سوال) رجلِ مؤمن د ئیس تابعدارے د رسولانو ته دعوت ورکړے دے (اتبعوا المرسلين) او دے رجلِ مؤمن خپلے تابعدارے ته دعوت ورکړیدے او دا رنګ امتی لره خو دا نه دی جائز چه خپلے تابعدارے ته خلق را اوبلی ؟ جواب دا دے. په واقعه د سورة یٰس کښ قوم تکذیب د رسولانو کړے وو د هغوی تابعداری کول ئې سپیره والے گنړلو نو رجلِ مؤمن د هغوی د تابعدارے امر ورکړو او د هغے سبب ئې ذکر کړو او په دے سورت کښ فرعون د قتل د موسیٰ علیه السّلام اراده کړیده او رجلِ مؤمن د موسیٰ علیه السّلام د بچ کولو کوشش کوئ نو اوویل ئې چه زما سره موافقت او کړئ او د موسیٰ علیه السّلام په بچ ساتلو کښ د قتلولو نه او په دے خبره کښ رشد دے او دا سے موافقت ته دعوت ورکول کار د امتی د ے نو دا اتباع په معنیٰ د ملګرتیا کولو ده.

هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا مَتَاعٌ ۫ وَّاِنَّ الْاٰخِرَةَ

دا ژوند دنیوی لږه مزه ده او یقیناً اخرت

هِیَ دَارُ الْقَرَارِ ﴿۳۹﴾ مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا

هغه کور د همیشه ارام دے. چاچه عمل کړیوی ناکاره تو

يُجْزٰۤى اِلَّا مِثْلَهَا ۚ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ

بدله به نشی ورکیدے مګر د هغے پشان او چاچه عمل اوکړو موافق د سنت سره که

ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ

نارینه دی او که زنانه دی او حال داچه مؤحد دی نو دغه کسان به داخلیږی

الْجَنَّةَ يُرْزَقُوْنَ فِيْهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۴۰﴾

جنت ته روزی به ورکیدیشی په هغے کښ بے حسابه .

وَيٰقَوْمِ مَالِیْۤ اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ وَتَدْعُوْنَنِیْۤ

او اے زما قومه څه وجه ده مالره (اوتاسولره) چه زهٔ رابلم تاسو نجات ته او تاسو بلے مالره

۳۹ :- په دے کښ تزهید فی الدنیا او ترغیب الی الآخرة ذکرکوی یعنی د دنیا داقتدار د پاره د پیغمبر مخالفت مه کوئے مَتَاعٌ نظم الدرر او تفسیر سراج المنیر کښ ذکر دی چه د عربو په محاوره کښ په مرداره باندے د متاع اطلاق کیږی چه هغه صرف د سخت ضرورت په وخت کښ د ضرورت مطابق جائز ده نو دا رنګ دنیا هم ده . او هر کله چه په لفظ د متاع کښ دلالت کول دی په زر فناکیدلو باندے نو د هغے په مقابله کښ جنّت ته ئے دار القرار اُویل معنیٰ په هغے کښ فنا نیشته بلکه همیشه ژوندون دے الآخِرَةَ په معنیٰ د جنّت دے یا په معنیٰ د ورځ د اخرت دے .

۴۰ :- په دے کښ اشاره ده چه اخرت مکان د جزاء او د بدلے دے او تخویف او بشارت ئے ذکر کړو . بِغَيْرِ حِسَابٍ (شمار) ئے نشی کیدے یا حساب کول په هغے کښ نیشته .

إِلَى النَّارِ ﴿۴۱﴾ تَدْعُونَنِي لِأَكْفُرَ بِاللَّهِ وَأُشْرِكَ

اُور ته تاسو بلې ما لره دے د پاره چه کفر اوکړم په الله تعالی او شریک کړم

بِهِ مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ وَأَنَا أَدْعُوكُمْ

د هغه سره هغه څوک چه نیشته ما لره په شرکت د هغه باندے هیڅ دلیل او زهٔ رابلم تاسو

إِلَى الْعَزِيزِ الْغَفَّارِ ﴿۴۲﴾ لَا جَرَمَ أَنَّمَا

زور اُور او بخنه کوونکی ذات ته - خامخا هغه څوک

تَدْعُونَنِي إِلَيْهِ لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ

چه تاسو بلئ مالره هغه ته نیشته د هغه په وس کښ دُعا قبولول

فِي الدُّنْيَا وَلَا فِي الْآخِرَةِ وَأَنَّ مَرَدَّنَا إِلَى اللَّهِ

په دنیا کښ او نه په آخرت کښ او یقیناً واپسی زمونږ الله تعالی ته ده

وَأَنَّ الْمُسْرِفِينَ هُمْ أَصْحَابُ النَّارِ ﴿۴۳﴾

او یقیناً مشرکان دی همیشه اوسیدونکی په اُور کښ -

ف۴۱:- د دے ایت نه تر ف۴۳ پورے د مکالمے د رجلِ مؤمن خلورمه حصّه ده او په دے کښ تفصیل دے د توحید او د شرک او بیان د فرق دے د دواړو دعوتونو په مینځ کښ او محاکمه کول دی. نو په دے ایت کښ غایة د توحید (نجات) او غایة د شرک (اُور) ئې ذکر کړے دے د جنّت نه ئې تعبیر په نجات سره اوکړو اشاره ده چه په جنّت کښ د هر غم او مصیبت او تکلیف او فنا وغیره چه د دنیا اوصاف دی نجات حاصلیدل دی -

ف۴۲:- دا تفسیر د ماقبل دے په طریقه د لف نشر غیر مرتب یعنی د النَّارِ نه مراد کفر او شرک دے او د النجاة نه مراد توحید د عزیز غفار دے تَدْعُونَنِي مدعو الیه حذف دے یعنی الی الهتکم من دون الله - وَأُشْرِكَ دا تفسیر د أَكْفُرَ دے - الْغَفَّارِ په دے کښ اشاره ده چه الله تعالی شرک لره هم په توبے سره بخښی او نور گناهونه هم بخښی -

ف۴۳:- دا صریح رد دے په شرک فی الدعاء باندے أَنَّمَا لفظ د مَا عام دے معبودان من دون الله تعالی ته که بُتان وی او که بزرګان وغیره ټولو ته شامل دے لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ زجاج معنی کړے ده لیس له استجابة دعوة (بیانے په بل مخ)

فَسَتَذْكُرُونَ مَا أَقُولُ لَكُمْ ۚ وَأُفَوِّضُ أَمْرِي

نو زر ده چه یاد به کړئ تاسو هغه چه زۀ وایم تاسو ته او سپارم خپل کار

إِلَى اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿۴۴﴾

الله تعالیٰ ته یقیناً الله تعالیٰ لیدونکے دے د بندګانو خپلو ۔

فَوَقَاهُ اللَّهُ سَيِّئَاتِ مَا مَكَرُوا ۖ وَحَاقَ بِآلِ

نو بچ اوساتلو الله تعالیٰ هغه لره د بدو (اثارو) چلونو د مخوی نه او راګیر کړه

فِرْعَوْنَ سُوءُ الْعَذَابِ ﴿۴۵﴾ النَّارُ يُعْرَضُونَ

فرعونیانو لره ناکاره عذاب ۔ اُور پیش کیدیشی دوی

یعنی دوی د هیڅ چاحاجت او دُعا نشی قبلولے نه په دنیا او نه په اخرت کښ او د کلبی نه نقل دے چه دوی لره شفاعت نیشته (شفاعتِ قهریه) په دنیا او اخرت کښ یا مراد د دے نه حق د دُعا او د عبادت دے یعنی دوی په دنیا او اخرت کښ د عبادت او د دعا حقدار نه دی وَأَنَّ الْمُسْرِفِينَ مراد د دے نه مشرکان دی چه د حدودو شرعیو نه ئے زیاتے کړے دے هم أَصْحَابُ النَّارِ مراد د اصحاب نه هغه کسان دی چه همیشه لازم وی د اُور سره او همیشه جهنمی کیدل خاص دی په کافرانو مشرکانو پورے۔

سمے:۔ دا خاتمه د بیان ده په ډیر غوره خاتمے سره ځکه چه اول تهدید دے په نه منلو سره حاصل دا چه اوس زما دعوت ته نه منئ لیکن بیا به ارمان اوکړئ په وخت د نزول عذاب کښ بیا تفویض او توکل علی الله دے او مفسر ینو لیکلے دی چه فرعونیانو د قتل د دے رجل اراده اوکړه نو هغه دا کلمه اُویله او دا کلمه ئے ایزده کړے ده د موسیٰ علیه السلام نه چه انی عذت بربی وربکم من کل الایة

سمے:۔ دا برکت د دعوت الے الله دے چه په هغه قوم باندے عذاب راغے او دے ترینه بچ شو۔ سَيِّئَاتِ مَا مَكَرُوا مراد هغه عذابونه دی چه وخت په وخت په فرعونیانو باندے نازلیدل او هغه په سورة اعراف کښ ذکر دی یا مراد ترینه غرق دے او تفسیر مدارک کښ نسفی لیکلے دی چه فرعون د دهٔ د قتل کولو د پاره زر کسان اولیږل نو بعضے کسان درندګانو اوخوړل او کوم کسان چه واپس راو تختیدل نو هغه فرعون پانسی کړل۔ سُوءُ الْعَذَابِ مراد ترینه هغه ټول عذابونه دی سره د غرق نه۔

عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا ۚ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ ۫

په هغې باندې صبا او بېګا او په هغه ورځ چې قائم شي قيامت (او به ويلې شي)

اَدْخِلُوْٓا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ ﴿۴۶﴾

داخل کړئ فرعونيان ډېر سخت عذاب ته۔

۴۶:۔ اَلنَّارُ بدل دے دَ سوء العذاب نه يا خبر دَ مبتدا محذوف دے او په دے دواړه توجيهاتو باندے يُعْرَضُوْنَ حال دے دَ النار يا دَ آل فرعون نه۔ يا النار مبتدا ده يعرضون ئے خبر دے، غُدُوًّا وَّعَشِيًّا مراد دَ دے نه صبا او بېګا دے دَ دُنيا دَ ورځو په حساب باندے يعنی په اور باندے پيشي به! دوه وخته وی او باقی اوقاتو کښں نور عذابونه دی يا دا کنايه ده دَ هميش والی نه۔ او ابن کثير په سند دَ ابن ابی حاتم سره حديث ذکر کړيں دے چه ارواح دَ فرعونيانو دَ تورو مارغانو په خيټو کښں دی او صبا بېګاه په جهنم باندے پيش کيږی۔ او دَ قتاده روايت دے چه داحال دَ روح دَ هر کافر دے۔ او حديث دَ بخاری او مسلم کښں په روايت دَ ابن عمر رضی الله عنهما سره وارد دی چه ټول اهلِ نار باندے مقدن دَ هغه پيش کيږی صبا او بېګا تر قيامته پورے۔

فائده:۔ دَ دے ايت نه ډېر مفسرينو او محدثينو او علماء عقائدو استدلال کړے دے په دے خبره چه عذاب قبر حق دے او امام بخاری په ترجمة الباب دَ عذاب القبر کښں دا ايت کريمه ذکر کړے دے په دے باب کښں اوله ضروری خبره داده چه په احاديثو صحيحه کثيره کښں خو لفظ دَ عذاب القبر را غلے دے او عذاب في القبر هم راغلے دے (انهما ليعذبان في قبورهما، الحديث) په دے باندے دليل دے نو دَ دے تعبير نه انکار کول ګمراهي ده هاں تفصيلي کيفيت دَ هغې زمونږ دَ شعور او علم نه اوچت دے بعض هغه تفصيلات چه صحيح احاديثو کښں راغلی دی مثلاً سوال جواب کول او دَ هغې دَ پاره کينول دَ مړی او دَ چا دَ پاره وسعت دَ قبر او دَ چا دَ پاره تنګسيا دَ قبر دَ مرغو په اجوافو او حواصلو کښں دَ روح اچول وغيره دَ دے مثل ضروری دی بيا دَ اهل سنّت والجماعت په دے کښں دوه قولونه دی اول دا چه عذاب په روح باندے په خپل مستقر کښں او په بدن باندے په خپل مکان کښں برابره خبره ده که روغ سالم وی او که ذرے ذرے دی او که ذرے په خيټو دَ حيواناتو کښں وی او که درياب کښں وی وغيره او بدن ته الله تعالىٰ دو مره حيات ورکړے دے (پاتے په بل مخ)

وَاِذۡ يَتَحَآجُّوۡنَ فِى النَّارِ فَيَقُوۡلُ الضُّعَفٰٓؤُا

او كله چه دوى به بحثونه كوى په اور كښ نو وائى به كمزورى

لِلَّذِيۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡٓا اِنَّا كُنَّا لَـكُمۡ

هغه كسانو ته چه لوئى ئې كړيده يقينًا موږ ستاسو دَپاره

تَبَعًا فَهَلۡ اَنۡـتُمۡ مُّغۡنُوۡنَ عَنَّا نَصِيۡبًا

تابعدار وو نو ايا تاسو لرې كولے شئ زموږ نه يوه برخه

مِّنَ النَّارِ ﴿۴۷﴾ قَالَ الَّذِيۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡٓا اِنَّا

دَ اور ـ او به وائى هغه كسان چه لوئى كړيده يقينًا موږ

چه دَ عذاب احساس كولے شى ليكن تعلق دَ روح دَ بدن سره په دے باندے صريح صحيح دليل نيشته او مسئله دَ عود دَ روح په سورة زمر كښ موږ ذكر كړے ده دويم قول دادے چه عذاب صرف په روح باندے دے ليكن په شرط دَ جسمِ مثالى سره چه په هغے باندے حديث دَ طير تعلق فى شجر الجنة دلالت كوى او دَ عذاب تعلق دَ بدن اصلى سره نيشته په دے كښ اول قول صحيح دے ـ كه چرے سوال اوكړے شى چه دا ايت مكيه دے او په حديث دَ امام احمد رحمة الله كښ وارد دى چه عذاب دَ قبر نيشته هاں څه وخت روستو بيا نبى صلى الله عليه وسلم ته وحى اوكړے شوه په باره دَ عذاب قبر كښ او دا حديث وارد دے په مدينه منوره كښ نو چه په مكه كښ الله تعالىٰ دا ايت رالیږلے وو او په دے كښ اثبات دَ عذاب قبر وو نو نبى صلى الله عليه وسلم انكار ولے كاوو ـ دَ دے جواب ابن كثير په درے طريقو سره كړے دے اول جواب دادے چه په دے ايت سره صرف پيشى دَ روح په اور باندے په برزخ كښ ثابت ده او دا دلالت نه كوى چه دَ بدن سره دَ عذاب تعلق شته اوكه نه! نو حصول دَ عذاب دَ بدن دَ پاره په احاديثو سره دَ دے ايت دَ نزول نه روستو ثابت شو ـ دويم جواب دادے چه ايت دلالت كوو په عذاب دَ كافرانو فقط دَ دے نه عذاب دَ مؤمن په قبر كښ نه ثابتيدلو او په احاديثو سره عذاب دَ مؤمنانو گنهگارانو ثابت شو ـ دريم جواب دادے چه ايت دلالت كوى په عذاب دَ ارواحو باندے نو په احاديث كښ عذاب دَ اجسادو هم ثابت شو ـ

ﮐﮯ ۴۷: دا تخويف اخروى دے مرتب دے په واقعه دَ فرعونيانو لكه چه ال فرعون

كُلٌّ فِيهَا إِنَّ اللَّهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ ﴿۴۸﴾

ټول په دے کښ پراته يو يقيناً الله تعالىٰ فيصله کړيده په ميږ دَ بندګانو کښ۔

وَقَالَ الَّذِينَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوا

او وبه وائي هغه کسان چه په اُور کښ دی څوکيدارانو دَ جهنم ته دُعا اوغواړئ

رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ ﴿۴۹﴾

دَ رب خپل نه چه آسان کړی زمونږ نه يو ورځ دَ عذاب نه۔

قَالُوا أَوَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ

دوی به اووائي آيا نه وو راغلی تاسو ته رسولان ستاسو په ښکاره دليلونو سره

قَالُوا بَلَىٰ ۚ قَالُوا فَادْعُوا ۗ وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ

دوی به اُووائي هاں ولے نه او به وائي ملائيک نو دُعا ځان له اوغواړئ او نه ده دُعا دَ کافرانو

دَ فرعون تابعداری کړے ده په کفر او شرک کښ داسے هر هغه څوک چه دَ باطل پرستو ملايانو پيرانو اقتدار والو تابعداری کوی نو په جهنم کښ به دننه دَ دوی جګړه وی۔ الضُّعَفٰٓؤُا مراد ترينه هغه خلق دی چه په علم او عقل کښ کمزورے وی په بدن کښ کمزوری ترينه مراد نه ده۔ تَبَعًا دا دَ مفرد او جمع دواړو دَپاره مستعمليږی يا اسم جمع دَ تابع ده۔

س۴۸ :۔ دا جواب دے دَ مستکبرينو په اظهار دَ عجز سره چه موږ ځان نه شو خلاصولے نو تاسو نه به څنګه عذاب دفع کړو اِنَّ اللّٰهَ قَدْ حَكَمَ يعنی فيصله دَ الله تعالىٰ ده په هغې کښ دَ چا وس نه چليږی او دا فيصله په انصاف سره ده نو اعتراض پرے نشی کيدلے۔

س۴۹ :۔ هر کله چه په کورنۍ کښ دَ يو بل دَ مدد نه نااميده شی نو څوکيدارو (ملائکو) دَ جهنم نه به طلب دَ دُعا اوکړی۔ يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ دا تنزل دے په درخواست کولو کښ يعنی که پوره نجات نه راکوی يعنی په يو غير معينه ورځ کښ لږ عذاب دِ زمونږ نه لرے کړی۔ جَهَنَّمَ دَ دے لغوی معنیٰ ده ډونګ وبيخ والا يا سخت ځيز۔

ع ۵ | ۱۳

إِلَّا فِي ضَلَٰلٍ ﴿٥٠﴾ إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ

مگر بربادہ دہ ۔ یقیناً مونږ مدد کوو دَ رسولانو خپلو سرہ او دَ

ءَامَنُوا۟ فِي ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ

مؤمنانو سرہ په ژوندہ دنیوی کښں او په هغه ورځ چه پیښ به شی

ٱلْأَشْهَٰدُ ﴿٥١﴾ يَوْمَ لَا يَنفَعُ ٱلظَّٰلِمِينَ

گواهان ۔ په هغه ورځ چه نفع به نه ورکوی ظالمانو ته

ف۵ :- دا جواب دے دَ ملائکو دَ طرفه په تاکید سرہ په زور نه کښں رُسُلُکُمْ
یعنی ستاسو دَ جنس نه پیغام راوړونکی دَ الله تعالیٰ وو او بے دلیله خبره ئے
نه ده کړے بلکه بِالْبَيِّنَٰتِ ډیر واضح دلیلونه ئے راوړے وو سره دَ دے نه
تاسو انکار کړے وؤ نو معلومه شوه چه تاسو ډیر ظالمان کافران ئے مونږ
ستاسو دَ پاره سفارش نه شو کولے بخپله ځان له دُعا اوغواړئے ۔
وَمَا دُعَٰٓؤُا۟ ٱلْكَٰفِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَٰلٍ مراد ترینه دُعا ده په آخرت کښں چه هغه
بربادہ ده نه قبلیږی ۔ دنیا کښں دَ دوی بعضے دُعاګانے قبلیږی ۔
ف۵۱ :- دَ دے سورت دریم باب دے تر آخر دَ سورت پورے په دے کښں
تسلّی ده ایمان والو ته او امر دے په صبر او استغفار او تسبیح سرہ دَ پاره د
دعوت کوونکی ۔ او امر دے په استعاذہ سرہ په وخت دَ جدال دَ خلقو کښں ۔
بیا اثبات دَ قیامت دے په دوه دلیلونو سرہ ۔ بیا رد دے په شرک فی الدعا باندے
چه دعوی دَ سورت ده او په هغے باندے تفصیلی اووه دلیلونه دی چه په هغے
کښں تفصیل دَ نعمتونو دَ الله تعالیٰ دے چه مالک دَ دے نعمتونو الله تعالیٰ
دے نو دَ بل چا نه ولے حاجتونه غواړئے ۔ بیا زجر او تخویف شدید دے
مجادلینو ته او دلیل نقلی اجمالی دے دَ انبیاء علیهم السّلام نه او بیا درے
عقلی دلیلونه دی او اختتام دے په تخویف دنیوی او په عدم قبولیت دَ توبے
سرہ په وخت دَ عذاب کښں ۔ په دے ( ف۵۱ ) کښں تسلی ده په نصرت الٰهیه
سرہ او دا نتیجه ده دَ ماقبل چه فرعونیان دَ دُنیا او دَ آخرت په عذابونو مبتلا
شول او مؤمنان بنی اسرائیل الله تعالیٰ دَ عذاب نه بچ کړل او دَ دشمن په مقابله
کښں ورسره مدد اوکړو نو دا حال دَ ټولو مؤمنانو دے فِي ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا
وَيَوْمَ يَقُومُ ٱلْأَشْهَٰدُ په دنیا کښں امداد دے کله په غلبه ورکولو سرہ کله

مَعْذِرَتُهُمْ وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ

بهانے د هغوی او دوی د پاره لعنت دے او دوی لره

سُوْٓءُ الدَّارِ ﴿۵۲﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْهُدٰى

ناکاره کور دے. او یقینًا ورکړے وُو مونږ موسٰی علیه السّلام ته هدایت

وَاَوْرَثْنَا بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ الْكِتٰبَ ﴿۵۳﴾

او پاتے کړو مونږ په بنی اسرائیلو کښ کتاب (تورات)

هُدًى وَّذِكْرٰى لِاُولِی الْاَلْبَابِ ﴿۵۴﴾

په هدایت او نصیحت دُو خالص عقل والو لره.

فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاسْتَغْفِرْ

نو صبر کوه یقینًا وعده د الله تعالیٰ رشتیا ده او بخنه غواړه

دُشمن په هلاکولو سره او په آخرت کښ نصرت د جهنم نه بچ کول او جنت ته داخلول او عزت او اکرام ایدی ورکول. الاشهاد مراد د دے نه هغه شاهدان دی چه په جُدا جُدا ایاتونو کښ ذکر کړیدی. پیغمبران لکه سورة نساء ۴۱ مؤمنان لکه سورة بقره ۱۴۳ اندامونه لکه سورة یٰس ۶۵ او سورة نور ۲۴ او حٰم سجده ۲۰ ملائک لکه سورة قٓ ۲۱.

۵۲:- د مظلومانو د بشارت نه روستو د ظالمانو حال ذکر کوی لَا يَنْفَعُ الظّٰلِمِيْنَ مَعْذِرَتُهُمْ یعنی معذرت به نه شی پیش کولے او که بالفرض پیش کوی نو فائده به نه ورکوی لکه سورة مرسلات ۳۶ او سورة قیامت ۱۵ کښ.

۵۳ ۵۴:- دا هم یو نوع د نصرت الٰهیه دے او دا رنګ دا سبب دے د پاره د حصول د نصرت الٰهیه او دا دلیل نقلی دے د کتاب د موسٰی علیه السّلام نه وَاَوْرَثْنَا په دے کښ اشاره ده چه دا کتاب په بنی اسرائیلو کښ چلیدلو تر نزول د انجیل پورے او دا رنګ لفظ د میراث دلالت کوی چه دوی اهل او حقدار د دے کتاب وو.

اول الهدٰی مفعول بِهٖ دے او دویم هُدًى مفعول لَهٗ دے هدایت ئے عام وُو او تذکرئے خاص وُو په اولوالالباب پورے.

لِذَنۢبِكَ وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ بِالۡعَشِيِّ
دَپاره دَ خطائے خپلے او پاکی وايه سره دَ ستائينې دَ رب ستا نه بيګا

وَالۡاِبۡكَارِ ﴿۵۵﴾ اِنَّ الَّذِيۡنَ يُجَادِلُوۡنَ
او صبا . يقينًا هغه کسان چه جګړه کوی

فِىۡۤ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيۡرِ سُلۡطٰنٍ اَتٰٮهُمۡ ۙ اِنۡ
په اياتونو دَ الله تعالیٰ کښې بغير دَ دليل نه چه دوی ته راغلے وی نيشته

فِىۡ صُدُوۡرِهِمۡ اِلَّا كِبۡرٌ مَّا هُمۡ بِبَالِغِيۡهِ ۚ
په سينو دَ دوی کښې مګر لوے حسد دے چه نه دی دوی رسيدونکی هغې پورې کيدلو ته

فَاسۡتَعِذۡ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيۡعُ
نو پناهی غواړه په الله تعالیٰ سره يقينًا هغه هر څه اوری

۵۵:۔ دا تسلی ده رسول الله صلی الله عليه وسلم لره او اداب ذکر کوی دَ پاره دَ داعی الی الحق او په دے ايت کښې درے اداب ذکر دی. ۱ صبر په مصيبتونو باندے. ۲ استغفار. ۳ تسبيح او حمد. اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ مراد دَ دے نه وعده دَ نصرت ده چه ۵۱ کښې ذکر شوه. وَاسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۡۢبِكَ لفظ دَ استغفار مستلزم دَ ګناه نه دے بلکه هر بنده او بالخصوص مقرب بنده لره دَ استغفار په طور سره اظهار دَ بندګۍ لازم دے او دارنګ لفظ لِذَنۡۢبِكَ صريح په ګناه کولو کښې نه دے بلکه ذنب چه په معنیٰ دَ ګناه وی نو عام مفسرين تاويل کوی په ذنب امتك سره يا په تعليق مقدر سره يعنی که "بالفرض ګناه درنه صادر شوے وی".
يا ذنب نه مراد خلاف اولیٰ دی چه هغه ګناه نه دے ليکن انبياء عليهم السلام دَ هغې په کولو باندے هم خفه کيږی. بِالۡعَشِيِّ وَالۡاِبۡكَارِ مراد دَ عشی نه دَ زوال نه تر غروب دَ نمر پورے او مراد دَ ابکار نه دَ صبا ختلو نه تر زوال پورے يا دَ نمر ختلو پورے. صبر بندګی دَ زړه ده استغفار بندګی دَ ژبے ده او تسبيح او حمد بندګی دَ عام بدن ده.

الْبَصِيرُ ﴿٥٦﴾ لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ

مرخه وینی - خامخا پیدائش دَ اسمانونو او دَ زمکې ډیر لوے دے

مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

دَ پیدائش دَ انسانانو نه لیکن ډیر دَ دے انسانانو نه

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْاَعْمٰى

نه پوهیږي - او برابر نه دے ړوند

وَالْبَصِيرُ ۙ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

او لیدونکے او هغه کسان چه ایمان یې راوړے دے او عملونه یې کړي دي دَ ښت برابر

س۵۶:- په دے ایت کښې څلورم ادب ذکر کوي یعنی استعاذه بالله په وخت دَ جدال دَ مجادلینو کښې. او زجر دے هغوی ته او تسلّی ده چه مجادلین خپل مقصد ته نه شي رسیدلے.

اِنْ فِيْ صُدُوْرِهِمْ اِلَّا كِبْرٌ مراد دَ کِبر نه امر کبیر (لوے مقصد) دے هغه په س۵ کښې تیر شویدے یعنی حق لره مغلوب کول او حق پرستو لره ختمول. مَّا هُمْ بِبَالِغِيْهِ دوی دغه مقصد ته نشي رسیدلے یعنی دغه مقصد دَ دوی نه حاصلیږي یا مراد دَ کِبر نه تکبر اولوئي ده یعنی دَ دوی په سینو کښې تکبر دے دَ حق منلو نه او نشي رسیدلے دوی مقتضٰی دَ دے تکبر ته او مقتضٰی دَ تکبر حق لره ختمول دي او هر کله چه دَ دوی دَ جدال او تکبر په سبب مؤمن داعي غصّه کیږي نو دَ غصّے دَ دفع کولو دَ پاره یې اُفرمائیل فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ.

س۵۷:- په دے ایت کښې زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت روستو دَ زجر نه په انکار دَ توحید باندے او اثبات دَ قیامت دے په دلیل اِنّي سره یعنی پیدائش دَ اسمانونو او زمکې دَ اثارو دَ قدرت دَ الله تعالی دے خو دا دلیل دے په دے باندے چه الله تعالی دَ خلقو په بیا پیداره ژوندي باندے قدرت لري نو دا استدلال دے دَ اثارو نه او دے ته دلیل اِنّي ویلے کیږي. او دا رنګ دا استدلال دے دَ قدرت نه په اعلی څیز باندے په قدرت سره په ادنٰی څیز باندے او دا قطعي دلیل دے.

وَلَا الْمُسِيْٓءُ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۸﴾

او نه بد عمل ډیر لږ نصیحت اخلئ تاسو۔

اِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيْهَا وَلٰكِنَّ

یقینًا قیامت خامخا راتلونکې دے هیڅ شک نیشته په هغې کښې لیکن

اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۹﴾ وَقَالَ

ډیر د خلقو نه ایمان نه راوړی۔ وئیلے دی

رَبُّكُمُ ادْعُوْنِيْٓ اَسْتَجِبْ لَكُمْ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ

رب ستاسو حاجتونه غواړئ زمانه زۀ به پوره کوؤم حاجتونه ستاسو یقینًا هغه کسان

يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ

چه لوئي کوی د دُعا زمانه زر ده داخل به شی

جَهَنَّمَ دٰخِرِيْنَ ﴿۶۰﴾ ع اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ

جهنم ته ذلیلان به وی۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه جوړه کړے ده

ع ۶

۵۸ :- داهم استدلال دے په اثبات دَ قیامت باندے په طریقه دَ دلیل لمّی سره یعنی فرق په مینځ دَ دے فریقینو په دنیا کښې په عقیده او عملونو کښې دلیل دے په فرق کولو سره په جزا او سزا کښې او میدان دَ جزاء او سزا خو غیر وی دَ میدان دَ عمل نه نو معلومه شوه چه قیامت حق دے۔ په دے آیت کښې اول عدم مساوات په طریقه دَ تشبیه سره او دویم په طریقه دَ اصل سره دے ځکه چه مراد دَ اعمٰی نه جاهل مقلد دے او مراد دَ بصیر نه عالم مستدِّل دے او دا سے په سراج المنیر کښې لیکلے دی۔

۵۹ :- دا نتیجه دَ ماقبل دواړه دلیلونو ده په ۵۷ کښې دلیل ذکر کړے وؤ او چه په دلیل باندے نه پوهیږی نو هغه ته بے علمه وئیلے کیږی دَ دے وجے نه دَ هغه آیت په آخر کښې لا یعلمون ذکر کړے دے او په دے آیت کښې مقصد ذکر کړے دے او دا مقصد چه نه منی نو هغه ته بے ایمانه وئیلے کیږی ځکه ئے دلته لا یومنون اوئیل۔

۶۰ :- هر کله چه په قیامت کښې دَ نجات دَ پاره عقیده او عمل دَ توحید ضروری دی۔ نو اوس په دے آیت کښې توحید فی الدعاء ته (چه دعویٰ دَ سورت وه)

لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ط
تاسو لره شپه (تیاره) چه آرام کوئے په هغے کښ او ورځ رڼا والا

اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ
یقیناً الله تعالیٰ فضل والا دے په خلقو باندے لیکن

اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۶۱﴾ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ
ډیر د خلقو نه شکر نه کوی دغه ذات الله تعالیٰ دے

ترغیب ورکوی او دا دلیل وحی دے د پاره د اثبات د دعوے۔ اَسْتَجِبْ لَكُمْ هر کله چه مراد دُعا نه شرعی دُعا ده چه هغه مشروط ده په شرطونو په نورو آیاتونو کښ او احادیثو کښ او د هغے سره وعده د استجابت لازمه ده د دے وجے نه استجب سره یٔ قید نه دے لګولے یا دا چه قید د اِن شئت دلته پټ دے په قرینه د نورو آیاتونو سره لکه سورة اسراء ۱۸ انعام ۴۱ لیکن اول قول صحیح دے ځکه چه دا قیودات د کافرانو په باره کښ دی۔
يَسْتَكْبِرُوْنَ استکبار په طریقه د مجادلے سره او په طریقه د شرک کولو سره دے عَنْ عِبَادَتِيْ مراد د عبادت نه دُعا ده په طریقه د توحید سره او په دے باندے دلالت کوی هغه حدیث صحیح چه الدعاء هو العبادة. او حدیث په لفظ د الدعاء مخ العبادة سره ضعیف دے۔ دَاخِرِيْنَ په ذلت سره جهنم ته داخلیدل مختص دی په کافرانو پورے نو دا دلیل شو چه استکبار د دُعا د الله تعالیٰ نه کفر دے او مراد د دُعا نه په دے آیت کښ سوال د حاجاتو دے په عقیده د توحید سره۔
۶۱: هغکښ آیت کښ دعوی د توحید ذکر شوه نو اوس د هغے د اثبات د پاره عقلی دلیلونه ذکر کوی او په دے دلیلونو کښ غټ غټ نعمتونه ذکر کوی چه د دے پیدا کوونکے او مالک صرف الله تعالیٰ دے نو د نورو نه حاجات مه غواړئے. په دے دلیل کښ دوه غټ نعمتونه ذکر کړی۔ بیا د اللیل صفت یٔ حذف کړے دے چه مظلما دے او فائده یٔ ورله ذکر کړے ده ځکه چه تیاره مقصد نه دے او د النهار سره یٔ صفت ذکر کړے دے لیکن فائده یٔ حذف کړے ده چه تبتغوا من فضله دے مثلاً ځکه چه دا صفت مستلزم دے ډیرو فائدو لره۔ او الَّيْلَ هغکښ (پاتے په بل مخ)

رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ لَا إِلٰهَ إِلَّا

رب ستاسو دے پیدا کوونکے دَ هر خیز دے نیشته حقدار دَ بندګئ سِوا

هُوَ فَأَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴿۶۲﴾ كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ

دَ هغه نه نو څه رنګه اړولے شئ تاسو دَ حق نه ۔ دغه شان اړولے کیدل

الَّذِيْنَ كَانُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ﴿۶۳﴾

هغه کسان چه وو دَ ایاتونو دَ الله تعالیٰ انکار ئے کوؤ ۔

اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه جوړه کړے ده تاسو لره زمکه دَ ارام دَ پاره

وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ

او اسمان چت او شکلونه ئے درکړیدی تاسو ته نو خائسته کړیدی شکلونه ستاسو

وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ

او روزی درکړیده دَ پاک خوراکونو نه دغه الله تعالیٰ

ذکر کړے دے ځکه چه دَ میاشتو په حساب کښ شپه مقدم وی په ورځ باندے۔ او لفظ دَ النّاس ئے دوه کرته ذکر کړو دَ تاکید دَ زجر دَ پاره اول الناس کښ ټول انسانان مراد دی او دویم کښ اکثر مراد دی۔

س ۶۲:۔ په دے کښ دلیل دے او نتیجه ده دَ مخکښ دلیل دَ پاره هم۔ توحید دَ ربوبیّت او توحید دَ الوهیت دواړه ئے په دے ایت کښ جمع کړے دی. تُؤْفَكُوْنَ په هغه اوړیدلو کښ ذکر کیږی چه یو جانب حق وی او بل جانب باطل وی۔

س ۶۳:۔ په دے ایت کښ علت دَ اوړیدلو ئے ذکر وکړو چه انکار دَ ایات الله دے او دا مشترک علت دے دَ پاره دَ منکرینو۔

رَبُّكُمْ ۚ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۶۴﴾

رب ستاسو دے نو برکتونو والا الله تعالیٰ دے چه رب دَ عالمینو دے۔

هُوَ الْحَيُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ

الله تعالیٰ ژوندے دے همیشه، نیشته حق دار دَ بلنے سوا دَ هغه نه نو بلئ هغه لره چه اخلاص کونکی یئ

لَهُ الدِّيْنَ ؕ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۶۵﴾

هغه لره دَ بلنے، صفتونه دَ خدائیتوب خاص الله تعالیٰ لره دی چه رب دَ عالمینو دے۔

قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ اَنْ اَعْبُدَ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ

ته اُووایه یقیناً زه منع کړے شوے یم چه بندګی اوکړم دَ هغه کسانو چه تاسو ئے بلے

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَمَّا جَآءَنِيَ الْبَيِّنٰتُ

سوا دَ الله تعالیٰ نه هر کله چه راغلل ماته ښکاره دلیلونه

س ۶۴:۔ داهم دلیل دے او په دے کښ څلور لوے انعامات ذکرکوی هغه مخکښ انعامات زمانیه وو اودا انعامات مکانیه دی او دَ مکان سره ئے ذکر دَ مکین (انسان) هم کړے دے نو په دے ایت کښ آفاقی علوی او سفلی او انفسی نعمتونه ئے دَپاره دَ دلیلونو یوځائے کړے دی. فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ دا رنګ سورة تغابن ۳ اوالتین ۴ کښ هم راغلے دی. الله تعالیٰ انسان سیدها قد وقامت والا پیدا کړے دے اوخوراک سکاک په لاسو باندے کوی او سترګے او پوزه اوخوله ئے په خائسته ترتیب سره په مخ باندے جوړ کړے دی اوایت دلیل دے چه په مخلوق کښ دَ انسان احسن صورت والا بل څیز نیشته دے. فَتَبٰرَكَ دا تفریع ده په تیرشوی نعمتونو باندے او برکت په معنیٰ دَ ډیروفایدو دے اکولودے اوفائدے وخت په وخت زیاته ولونه ویلے کیږی اودَ دے تشریح مخکښ تیره شویده اوهرکله چه نعمتونه زمانیه دَپاره دَ تربیت او نعمتونه مکانیه هم دَپاره دَ تربیت دی دَ دے وجے په س ۶۲ اوپه دے ایت دواړو کښ ذلکم الله ربکم ذکرکړے دے.

س ۶۵:۔ داهم دلیل دے او توحید دَ الوهیت او توحید فی الدعاء ئے شروع دَ حمد نه په طور دَ نتیجے سره ذکر کړیدی.

مِنْ رَّبِّيْ ز وَاُمِرْتُ اَنْ اُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۶۶﴾

دَ طرف دَ رب زما نه او حکم کړے شوے دے ماته چه تابع اوسم رب دَ عالمینو لره ۔

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ

خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړی یئے تاسو دَ خاورو نه بیا دَ

نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ

نطفے نه بیا دَ ټکړے دَ وینے نه بیا را اوباسی تاسو

طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا اَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُوْنُوْا

واړه واړه بیا ( ر پالی تاسو ) چه اورسیږئ ځوانئ خپلے ته بیا ( عمر درکوی ) دَ پاره دَ دے چه

شُيُوْخًا ج وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّتَوَفّٰى مِنْ قَبْلُ

بوډاګان شئ او بعضے ستاسو نه هغه دی چه مړه کړے شی مخکښ

وَلِتَبْلُغُوْٓا اَجَلًا مُّسَمًّى وَّلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۶۷﴾

او ( ساتی تاسو ) دَ پاره دَ دے چه اورسے تاسو نیټے مقررے ته او دِ دے دَ پاره چه دَ عقل نه کار وا خلے ۔

س۶۶ :- دا نتیجه دَ دلیلونو مخکښو ده یعنی دغه دلیلو نه مستلزم دَ شرک نه دَ تهی دَ پاره او دَ توحید دَ امر دَ پاره دی او دارنګ دا جواب دے مشرکانو ته هر کله چه هغوی دعوت ورکوی بندګے دَ غیر الله ته نو دا جواب به یئے کیدیشی.

س۶۷ :- دا هم دلیل دے مشتمل دے په مختلفو حالتونو دَ انسان با تدا ے په وخت دَ ابتدائی پیدائش کښ نو دیته دلیل انفسی ویلے کیږی ۔

مِنْ تُرَابٍ دَ هر انسان نطفه دَ زمکے دَ اشیاؤ نه پیدا کیږی نو معلومه شوه چه تراب ماده بعیده ده او هر کله چه دَ دے حالاتو په انقلاب کښ وخت لری نو دَ دے وجے نه ثُمَّ ثُمَّ یئے په مینځ کښ راوړے دے ۔

(سوال) سورة حج س۵ کښ ثم من مضغة ذکر کړے دے نو دلته ولے ذکر نه کړو؟
(جواب) هر کله چه دَ دے ایت نه مخکښ دَ صورت دَ انسان ذکر یئے کړے دے او صورت دَ مضغ سره تعلق لری دا سے شو لکه صور مضغکم نو بیا ذکر ته ضرورت نه وو. او سورة حج کښ دا سے ذکر نه وو کړے شوے ۔

طِفْلًا جنس دے په معنی دَ جمع سره او طفولة تابعدارے ته ویلے کیږی نو ځو پورے چه بچے مور او پلار ته محتاج وی په خوراک او سکاک کښ او په جامه

هُوَ الَّذِي يُحْيِ وَيُمِيتُ ۚ فَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا

خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه ژوندی کول او مړه کول کوی نو کله چه اراده وکړی د یو کار

فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٦٨﴾

نو یقیناً اُوائی هغے ته او شه نو هغه اوشی.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي

آیا ته نه ګورے هغه کسانو ته چه جګړے کوی په

آيَاتِ اللَّهِ أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ ﴿٦٩﴾ الَّذِينَ

آیاتونو د الله تعالیٰ کښ څه رنګ اړولے کیږی دَ حق نه. دا هغه کسان دی

كَذَّبُوا بِالْكِتَابِ وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا

چه تکذیب کوی د کتابونو او د هغه خبرے چه رالیږلے دی موږ په هغے سره رسولان زموږ

فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٧٠﴾ إِذِ الْأَغْلَالُ فِي

نو زر دے چه دوی به پوهه شی په هغه وخت چه طوقونه به په

اغوستلو کښ تو دے تابع دے دَ موراو پلار. أَشُدَّكُمْ اجتماع دَ قوت بدنیه او قوتِ عقلیه ته أَشُدَّ ویلے کیږی. ثُمَّ لِتَبْلُغُوا نه رواندے فعل پټ دے یعنی ثم یربّیکم لتبلغوا. او دَ اشدّ اطلاق ترځلویښتو کالو پورے کیږی. ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا دلته هم فعل پټ دے یعنی ثم ینقص القوة لتکونوا شیوخاً. وَلِتَبْلُغُوا دلته فعل مقدر دے ویفعل ذلك لتبلغوا اجلاً مسمّی، مراد دَ دے نه اجل مقرره دَ مرګ دے.

ف ۶۸ :- داهم دلیل دے مخکښ خاص دَ انسانانو حیات او ممات ذکر شوی وو په دے کښ عام ذکر کوی او په فَإِذَا قَضَىٰ سره اشاره کوی چه دا کارونه الله تعالیٰ ته ډیر آسان دی.

ف ۶۹ ت ۷۰ :- دا بیا زجر دے مجادلینو ته یعنی دغه دلیلونه چه تیر شول په دے کښ جګړے کوی او خپل شرک ثابتوی او دَ دے مجادلینو حال ئے بیان کړے دے. بِالْكِتَابِ جنس کتابونه الٰهیه ترینه مراد دی یا صرف قرآن مراد دے وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا مراد دَ دے نه مسئله دَ توحید ده چه هغه په سورة انبیاء ف ۲۵ او سورة نحل ف ۳۶ کښ ذکر ده.

أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ ۖ يُسْحَبُونَ ﴿٧١﴾

ستونو دَ دوی کښ وی او زنځیرونه (په خپو کښ وی) راښکلے کیږی به

فِي الْحَمِيمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ ﴿٧٢﴾

په ایشیدلو اوبو کښ بیا به په اُور کښ روا ته کړے شی.

ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ تُشْرِكُونَ ﴿٧٣﴾

بیا به اُویلے شی دوی ته کوم ځائے دی هغه کسان چه تاسو شریکول دَ الله تعالیٰ سره

مِنْ دُونِ اللَّهِ ۖ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا بَلْ

سوا دَ الله تعالیٰ نه دوی به اُوائی روک شو زمونږ نه بلکه

لَمْ نَكُنْ نَدْعُو مِنْ قَبْلُ شَيْئًا ۚ

نه دے رابللے مونږ دَ دے نه مخکښ هیڅ څیز

ـا نه تر ـ۷۶ پورے په دے ایاتونو کښ تخویف اخروی ذکر کوی دَ پاره دَ مجادلینو او دا تخویف مشتمل دے په لس امورو باندے. ؏۱ إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ اذ په معنیٰ دَ اذا سره دے دَ دے وجه نه چه دا حالات راتلونکی دی لیکن قرآن کښ اکثر دَ قیامت حالات په الفاظو دَ ماضی سره ذکر کوی دَ وجه دَ یقین نه ؏۲ وَالسَّلَاسِلُ، دَ دے دوه معنے دی اول دا چه عطف دے الاغلال باندے په طریقه دَ عطف مفرد سره په مفرد باندے یعنی سلاسل به هم دَ دوی په ستونو کښ وی دویمه معنیٰ دا ده چه عطف دَ جملے دے په جمله باندے او خبر ئے حذف دے یعنی سلاسل به دَ دوی په خپو کښ واچولے شی. ؏۳ يُسْحَبُونَ دَ السلاسل سره متعلق دے نو ترجمه ئے دا ده یعنی راښکلے کیږی به په دغه زنځیرونو سره یا مطلق راښکل مراد دی. ؏۴ فِي الْحَمِيمِ متعلق دے دَ يسحبون سره او یا مستقله جمله ده په تقدیر سره چه يدخلون فی الحميم. ؏۵ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ یعنی په شان دَ خاشاک به په دوی سره اور تود ه وے شی یا معنیٰ دا چه روَتلوے به شی په اور کښ یا په معنیٰ دَ ډکولو سره دے یعنی ډکولے به شی په دوی سره اور دَ جهنم ؏۶ ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ الخ دا نیوس دَ پاره دَ سخت زجر دے هغه چا ته چه په دنیا کښ شرک فی الدعائی کړے وُو. أَيْنَ مَا كُنْتُمْ تُشْرِكُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ یعنی کوم ځائے دی چه آواز کړے ورته

كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷۴﴾ ذٰلِكُمْ

دغه شان به خطا كوى الله تعالىٰ كافرانو لره . دا په

بِمَا كُنْتُمْ تَفْرَحُوْنَ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ

سبب د دے چه تاسو خوشحالى كوله په ملک كښ بے غير

الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ تَمْرَحُوْنَ ﴿۷۵﴾ اُدْخُلُوْٓا

د حق د لويئ نه او په دے وجه چه تاسو لويئ كوله . داخل شئ

اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ فَبِئْسَ

دروازو د جهنم ته هميشه به يئ په هغے كښ نو ناكاره دے

مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۷۶﴾ فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ

ځائے د اوسيدلو د لويئ كوونكو . تو صبر كوه يقينا وعده د الله تعالىٰ

چه تاسو د دے عذاب نه بچ كړى نو دوى به اول جواب اوكړى ضَلُّوْا عَنَّا روک شول زمونږ نه او دا جمله مستلزم ده د دوى اقرار كولو لره په شرک د دوى باندے نو بيا به يئے خيال راشى چه دا خو مونږ بد كار اوكړو چه د ځان نه مو اقرار اوكړو نو دويم جواب به اوكړى بَلْ لَّمْ نَكُنْ نَّدْعُوْا مِنْ قَبْلُ شَيْئًا يعنى انكار به اوكړى د شرک فى الدعا نه لكه سورة انعام ۲۳ كښ تير شويدى.
۷ كَذٰلِكَ يُضِلُّ مراد د اضلال نه په جواب وركولو كښ گمراه كول دى لكه چه اوس گمراه شول چه كله اقرار كوى او كله انكار، او دا د دوى شرمول دى.
تَفْرَحُوْنَ فرق د فرح او د مرح دا دے چه اول د زړه سره تعلق لرى او دويم د ظاهر سره تعلق لرى، او دويم قول د دے برعكس دے قرطبى دويم فرق ته اشاره كړے ده ويلے دى په معنىٰ د تفرحون كښ مراد دا دے چه ښكاره كوله تاسو "خوشحالى په گناه كولو او په ډيرو مالونو او ډيرو نوكرانو او په صحت او عافيت سره" نو په دے كښ عرسونه د پيرانو هم داخل دى چه په شرک كولو سره خوشحالئ ښكاره كوى. او تَمْرَحُوْنَ دا دے چه په رفتار او گرځيدلو كښ تكبر او لويئ كوى لكه لَا تَمْشِ فِى الْاَرْضِ مَرَحًا ۸ اُدْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ مراد ترينه په طريقه د تقسيم سره دى نو بعض يو دروازے نه داخل شئ او بعضے بلے ته ۹ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۱۰ فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ . مثوىٰ هغه ځائے دے چه په هغے كښ هميشه اقامت وى او په بے اختياره ځائے كښ استعماليږى.

حَقٌّ ۚ فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ

حقه ده تو یا به او ښایو موږ تاته بعضې هغه عذاب چه وعده کوو موږ دَ دوی سره

أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴿٧٧﴾ وَلَقَدْ

یا به وفات کړو تا تو موږ ته به دوی راګرځی - او یقیناً

أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ مِنْهُم مَّن

لیږلی دی موږ رسولان مخکښ ستا نه بعضې دَ دوی هغه څوک دی

قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ

چه بیان کړیدی موږ په تا باندے او بعضې هغه دی چه نه دی بیان کړی موږ

عَلَيْكَ ۗ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِآيَةٍ

په تا باندے او نیشته په اختیار دَ رسول کښ چه راوړی هیڅ معجزه

إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ فَإِذَا جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ قُضِيَ

مګر په حکم دَ الله تعالیٰ هغه وخت چه راشی حکم دَ الله تعالیٰ فیصله به اوکړیشی

ﺳ۷۷:. هرکله چه حال دَ مجادلینو بیان شو نو اوس تسلّی ورکوی نبی صلّی الله علیه وسلّم ته په پنځو طریقو سره اول امرورکوی په صبر کولو سره په جدال او په تورو اذیتونو دَ مجادلینو باندے دویم اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ دا وعده په ﺳ۵۵ کښ تیره شویده دریم جواب دَ سوال دَ دی چه په موږ باندے په سبب دَ جدال کولو عذاب وَلے نه راځی جواب اوشو په دے قول سره چه فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ حاصل جواب دادے چه عذاب به په دوی باندے ضرور راځی یا به ستا په ژوند کښ راشی نو ته به یې اووینې یا به ستا دَ وفات نه روستو راشی نو ته یې خو نشې لیدلے لیکن قیامت کښ به اووینې ځکه چه دَ دوی رجوع کیږی موږ ته په قیامت کښ - او دَ اِمَّا جواب پټ دے (فذاك) سره -
او فَإِلَيۡنَا يُرۡجَعُونَ قائم مقام دے دَ جواب دَ نتوفینك یعنی فنعذ بهم عذابًا شدیدًا او دا سے په سورة یونس ﺳ۴۶ او سورة رعد ﺳ۴۰ او سورة زخرف ﺳ۴۱ ﺳ۴۲ کښ ذکر دی.

بِالْحَقِّ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۷۸﴾ اَللّٰهُ

په حقه سره او ښکاره شو دغه وخت تاوان د باطل پرستو خلقو. الله تعالیٰ

الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ لِتَرْكَبُوْا مِنْهَا

هغه ذات دے چه پیدا کړیدی تاسو لره څاروی د دے د پاره چه سورلی کوئے په بعضو د هغے نه

وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿۷۹﴾ وَلَكُمْ فِیْهَا مَنَافِعُ وَلِتَبْلُغُوْا

او بعضے د هغے نه تاسو خورئے. او تاسو لره په هغے کښ فائدے دی او د دے د پاره چه اورسیږئے

عَلَیْهَا حَاجَةً فِیْ صُدُوْرِكُمْ وَعَلَیْهَا وَ

په هغے باندے سواره هغه حاجت ته چه په سینو ستاسو کښ دے او په هغے باندے او

عَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ ﴿۸۰﴾ وَیُرِیْكُمْ اٰیٰتِهٖ

په کشتو باندے پورته کولے شئ تاسو. او ښائی تاسو ته دلیلونه خپل

۷۸ :۔ دا خلورمه تسلی ده په ذکر د تکالیفو د انبیاؤ سابقینو سره اشارۃً او بعضے تسلی جواب د سوال د منکرینو دے چه ته رسول یئے نو مونږ ته هغه معجزے راوړه کوم چه مونږ طلب کوو جواب دا دے وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ الخ او هم داسے ذکر شویدی په سورۃ رعد ۳۸ او سورۃ ابراهیم ۱۱ کښ۔ او په دے ایت کښ دلیل نقلی اجمالی دے د انبیاء علیهم السلام ته وَخَسِرَ هُنَالِكَ خسران د دوی په اصل کښ په وخت د ناکاره عملونو کښ وؤ لیکن په هغه وخت دوی ته خپل خسران نه ښکاره کیدلو او په وخت د عذاب کښ خسران ښکاره شو د دے وجے نه د هُنَالِكَ تخصیص یئے او کړو۔

۷۹ ۸۰ ۸۱ :۔ په دے ایاتونو کښ نور دلائل عقلیه په ذکر د نعمتونو سره ذکر کوی په اول ایت کښ یئے د څاروؤ نه دوه لوئے فائدے ذکر کړیدی چه سورلی او خوراک دے۔ لِتَرْكَبُوْا مِنْهَا لفظ د منها کښ اشاره ده چه ټول څاروی د پاره د سورلئ کولو نه دی او دا رنګ حلال څاروی ټول نه خوړلے کیږی۔ او دویم کښ یئے درے نعمتونه ذکر کړل۔ مَنَافِعُ د ویښتو او وړئے نه ډیرے فائدے دی او دا رنګ د پیؤ (شودو) نه ډیرے فائدے او د هغوی د څرمنو او هډوکو نه ډیرے فائدے دی۔ وَلِتَبْلُغُوْا عَلَیْهَا حَاجَةً فِیْ صُدُوْرِكُمْ په دے کښ اشاره ده سخت حاجت ته چه د هغے د وجے (پاتے په بل مخ)

فَبِاَیَّ اٰیٰتِ اللّٰهِ تُنۡکِرُوۡنَ ﴿۸۱﴾ اَفَلَمۡ یَسِیۡرُوۡا

نو کوم یو دَ دلیلونو دَ اللّٰه تعالیٰ نه تاسو انکار کوئے۔ آیا نو دوی نه گرځی

فِی الۡاَرۡضِ فَیَنۡظُرُوۡا کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَةُ

په ملک کښ چه اوګوری چه څه رنګ شو انجام

الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ؕ کَانُوۡۤا اَکۡثَرَ

دَ هغه کسانو چه دَ دوی نه مخکښ وو هغوی وو ډیر

مِنۡهُمۡ وَاَشَدَّ قُوَّةً وَّاٰثَارًا فِی الۡاَرۡضِ

دَ دوی نه او زیات په قوت کښ او په نښو جوړولو سره په زمکه کښ

فَمَاۤ اَغۡنٰی عَنۡهُمۡ مَّا کَانُوۡا یَکۡسِبُوۡنَ ﴿۸۲﴾

نو دفع نه کړو دَ دوی نه (عذاب) هغه کارونو چه دوی کول۔

ستاسو سینے تنګے وی چه دے حاجت ته په خرنګه ورسیږم نو دَ اوښانو او اسونو په ذریعه سره او رسیږئے۔ وَ عَلَی الۡفُلۡکِ دَ کشتئ سره لفظ دَ فی او علیٰ دواړه استعمالیږی لیکن دلته دَ مناسبت دَ علیها په وجه سره دَ علیٰ لفظ ذکر کړے شو۔

فائده:- لترکبوا او لتبلغوا او تحملون کښ خوظاهرًا یو فائده ده لیکن حقیقت کښ فرق دے هغه دا دے چه رکوب نه مراد سفر دَ سورلئ دے دَ هجرت او جهاد او طلب دَ علم دَ پاره او دَ حاجة نه مراد امور دنیویه دی لکه تجارت کول نو دا دواړه اختیاری امور دی او ضروری هم دی دَ دے وجے نه ئے په حرف دَ لام او په صیغ دَ معلوم سره ذکر کړل او تحملون نه مراد مجبوری سورلی ده لکه په حال دَ مرض کښ دَ یو ځائے نه بل ځائے ته سفر کول نو دا غیر اختیاری ده نو په صیغه دَ مجهول سره ئے ذکر کړه او خوراک دَ غوښے او دا سورلی چه روستو ذکر شوه دا دواړه مقصدی امور نه دی نو بغیر دَ لام نه ئے ذکر کړل او په روستنی ایت کښ بے شماره نعمتونو ته اشاره ده په دے لفظ سره چه ویریکم اٰیاته۔

۸۲:- مخکښ اٰیاتونو کښ اٰیات دَ نعمتونو ذکر کړل نو اوس اٰیات دَ عذاب ذکر کوی او دا تخویف دنیوی دے۔ فَیَنۡظُرُوۡا یعنی سیل اوکړئے په قصد دَ عبرت اخستلو سره نو نظر دَ فکر او کړئے۔ اَکۡثَرَ مِنۡهُمۡ ډیر وو په شماره کښ او په مال کښ وَاَشَدَّ قُوَّةً په بدنونو سره زیات قوت والا وو وَّاٰثَارًا فِی الۡاَرۡضِ او چت بنګلے

فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرِحُوْا

نو هركله چه راغلو دوى ته رسولانو د دوى ښكاره حكمونه نو لوټى اوكړه

بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا

دوى په هغه علم چه د دوى سره وُو او راګير كړه دوى لره هغه څيز

كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۸۳﴾ فَلَمَّا

چه وو دوى په هغې پورې يوقې كولې . نو هر كله

رَاَوْا بَاْسَنَا قَالُوْآ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ

چه دوى اوليده عذاب زمونږه اُويل دوى ايمان راوړے دے مونږ په الله تعالىٰ باندے په يووالى د هغه

او اباد ے كول په غرونو كښ او په ديكښ اشاره ده قوم فرعون ته چه په دے سورت كښ د هغوى حال تير شو يدے فَمَآ اَغْنٰى ، ما نافيه او استفهاميه دواړه كيدے شى تو معلومه شوه چه د عذاب د الله تعالىٰ نه د دنيا مال وجاه وغيره نجات نشى وركولے .

۸۳ :- په دے كښ سبب د عذاب ذكر كوى چه هغه تكذيب د پيغمبرانو دے . فَرِحُوْا بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ دا ضميرونه راجع دى كافرانو ته او د علم نه مراد دنيوى علمونه دى لكه فلسفه رياضى سائنس او طب وغيره لكه چه بقراط يا سقراط حكيم ته ويلے شوے وو چه ته موسىٰ عليه السّلام ته ولے نه ورځے نو هغوى اُويل چه مونږ مهذب قوم يو زمونږ د چا تهذيب او هدايت ته حاجت نيشته او دارنګ جالينوس حكيم عيسىٰ عليه السّلام ته ويلے وو چه ته مونږ ته نه ئے راليږلے شوے مونږ خوستانه بنځے يو هيږو . يا د علم نه مراد د دوى شبهات كفريه او شركيه او بدعيه دى چه دوى ګمان كړے وُو چه دا علم دے لكه استدلال د دوى په اتباع د اباؤ خپلو سره يا په دے قول سره چه لو شاء الله ما اشركنا يا په دے قول سره چه من يحي العظام وهى رميم وغيره .

بعضو مفسرينو ويلے دى چه عندهم ضمير انبياؤ ته راجع دے او فرحوا ضمير كافرانو ته راجع دے او مراد د فرح نه خندا او توقے مسخرے كول دى ، او دا ايت دليل دے پدے چه چا ته قرآن او صحيح حديث پيش كړے شى او د هغې په مقابله كښ نور كتابونه او دليلونه پيش كوى يا په خپل تقليد باندے كلك وى نو دغه سړے د هغو باطل پرستو په طريقه باندے روان دے

وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهٖ مُشْرِكِيْنَ ﴿۸۴﴾

او انکار کوؤ مونږ د هغه معبودانو نه چه شریکان کړے موو د الله تعالیٰ سره۔

فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ اِيْمَانُهُمْ لَمَّا

نو نفع نه ورکوله دوی ته ایمان راوړلو د دوی کوم وخت

رَاَوْا بَاْسَنَا ؕ سُنَّتَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ

چه اولیدلو دوی عذاب زمونږ پشان د طریقے د الله تعالیٰ هغه چه تیره شوے ده

فِيْ عِبَادِهٖ ۚ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۵﴾

په بندګانو د هغه کښ او تاوان ښکاره شو په دغه وخت د کافرانو۔

رکوع ۵

ف ۸۴:- هرکله چه کفار پوهه شول په وخت د عذاب کښ چه بل هیڅ خیز فائده نشی ورکولے بلکه معبودان د دوی هم نجات نشی ورکولے نو دوی په دغه وخت کښ ایمان په توحید باندے راؤړو لکه چه فرعون داسے کار کړے وؤ۔ وَكَفَرْنَا دا کفر په معنیٰ د انکار سره دے كُنَّا بِهٖ په سبب د عبادت کولو د هغوی مونږ مشرکان شوے وو۔

ف ۸۵:- دا ایمان اضطراری مجبوری دے دا قبول نه دے. فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ لفظ د يَكُ ئے د تاکید د نفی د پاره راوړے دے. سُنَّتَ اللّٰهِ مفعول مطلق دے د پاره د فعل محذوف سَنَّ الله تعالیٰ سنة یا مفعول به دے د پاره د فعل محذوف یعنی احذروا (او یریږئ) او د دے سنت نه مراد دا دے چه په حالت د عذاب راتللو کښ ایمان نه قبلیږی وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ په ف ۷۸ کښ ئے المبطلون اوئیل او په دے ایت کښ الکافرون وجه د فرق دا ده چه په هغه ایت کښ قضی بالحق ذکر شوے وؤ او د حق په مقابله کښ ابطال ذکر کیږی او په دے ایت کښ ایمان ذکر دے او د ایمان په مقابله کښ کفر ذکر کیږی۔

تفسیر د سورة غافر په فضل د الله تعالیٰ سره

ختم شو۔

| ایاتها ۵۴ رکوعاتها ۶ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | سورة حٰمٓ السجدة ۴۱ مکیة ۶۱ |
|---|---|---|

حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنْزِیْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ﴿۲﴾

الله تعالی ذ دے په مراد پانده بنهٔ پوهیږی. نازلول دی ذ طرف ذ لوے مهربان رحم کوونکی نه.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

**سورة حٰمٓ سجده** او ذ دے نور نومونه دا دی. فصلت، المصابیح، الاقوات، سجدة المؤمن.

**ربط** ذ دے سورت ذ مخکښ سورت سره په ډیرو طریقو سره دے. اوله طریقه داده چه په تیرشوے سورت کښ رد ذ شرک فی الدعا وؤ نو په دے سورت کښ دفع ذ درے او هامو ذ منکرینو ده. دویمه داچه په سورة مؤمن کښ تهه مفتونه ذ نازلوؤنکی ذ قران وو چه الله تعالی دے نو په دے سورت کښ تهه احوال ذ منزّل (قران) دی. دریمه طریقه دا چه هلته ذ تخویف دنیوی یوه نمونه وه نو په دے سورت کښ دوه نمونے ذکر کوی، څلورمه داچه په هغه سورت کښ یئے تفصیل ذ دعوت ذ داعی (رجل مؤمن) ذکر کړو نو په دے سورت کښ طریقے او اداب ذ دعوت ذکر کوی، پنځمه داچه په هغه سورت کښ زجرونه وو په مجادلینو باندے نو په دے سورت کښ ذ هغوی شبهاتِ باطله ذکر کوی چه دا ذ دوی جدال دے، شپږمه طریقه داده چه په هغه سورت کښ انکار ذ مشرکینو ذکر دے ذ شرك فی الدعاء نه په ورځ ذ قیامت نو په دے سورت کښ په هغوی باندے شهادت ذ جوارحو ذکر کوی.

**دعوی ذ دے سورت**: اثبات ذ توحید دے په دفع ذ درے شبهاتو سره. او په اته عقلی دلیلونو سره او په رد ذ اقسامو ذ شرک سره (شرك فی العبادت او فی الدعا او فی العلم) او په پنځلس اسماء الٰهیو سره، او په ډیر زجرونو او تخویف دنیویو او اخرویو سره.

**خلاصه ذ سورت** داده چه دا سورت تقسیم دے درے بابونو ته. اول باب تر ۳۲ پورے دے په دے کښ اول ترغیب دے قران ته په ذکر ذ نهه حالاتو ذ قران او زجر دے په اعراض ذ قران سره ریاتے په بل مخ)

كِتٰبٌ فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ

کتاب دے جُدا جُدا بیان شویدی آیاتونه دَدهٔ قران دے عربی ژبے والا دپاره دَ هغه قوم

يَّعْلَمُوْنَ ﴿۳﴾ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ۚ فَاَعْرَضَ

چه پوهیږی زیرے ورکوونکے او ویره ورکوونکے نو مخ واړولو

اَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۴﴾ وَقَالُوْا

ډیرو خلقو نو دوی نه اوری . او دوی وائی

قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ وَفِيْٓ

زړونه زمونږ په پردو کښ دی دَ هغه نه چه ته مونږ بلے هغه ته او په

بیا شبهه دَ منکرینو ده او جواب دَ هغے دے بیا خلور عقلی دلیلونه دی بیا تخویف دنیوی په ذکر دَ عاد او دَ ثمود سره او تخویف اخروی تفصیلی دے.

## (تفسیر)

۱ خبر دَ مبتدا محذوف دے یعنی هذا حٰمٓ . دا نوم دَ قران یا نوم دَ سورت دے یا دپاره دَ اعجاز دے.

۲ ۳ ۴ دا ترغیب دے په ذکر کولو دَ تهه احوالو دَ قران تنزيل دا خبر دَ مبتدا محذوف دے او دا مصدر په معنیٰ دَ مفعول دے ۲ من الرحمٰن الرحیم اشاره ده چه دا قران دَ الله تعالیٰ دَ رحمتونو ذریعه ده ۳ کتاب بدل دے دَ تنزیل نه او دا لفظ دلالت کوی چه جامع دے ۴ فصلت اٰیاته احکام او امثال او دلیلونه او تخویفات او بشارتونه ټول پکښ جدا جدا په تفصیل سره دی ۵ قراٰنا یعنی جامع دے یا مجموع دے یا لوستلے شوی دے ۶ عربیا عربی ژبے والا دے یعنی واضح بیان والا دے ځکه چه ع ر ب دلالت کوی په وضوح باندے ۷ لقوم یعلمون چه علم لری چه دا منزل من الله دے یا علم دَ توحید لری یا علم دَ لغت عربی لری نو دَ هغوی دپاره فائده ورکوونکے دے ۸ بشیرا دَ تصدیق کوونکو دپاره بشارتونه ورکوی ۹ نذیرا دَ مخالفینو دپاره په تخویفاتو باندے مشتمل دے.
فاعرض دا زجر دے فهم لا یسمعون دا تفسیر دَ اعراض دے یا معنیٰ دا چه اعراض کوی دَ توحید نه نو قران دَ دے وجے نه اوری.

اٰذَانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ

غوږونو زموږ کښې درونوالے دے او په مینځ زموږ او په مینځ ستا کښې پرده ده

فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ ۝ قُلْ اِنَّمَآ

نو ته خپل کار کوه یقیناً موږ خپل کار کوونکي یو ته اُوایه یقیناً

اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ

زهٔ بشر یم ستاسو په شان وحی کیدے شي ماته چه یقیناً حقدار د بندګۍ ستاسو

اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْهِ وَاسْتَغْفِرُوْهُ

یو ذات دے نو برابر شئ د هغه طرف ته او بخنه غواړئ د هغه نه

ف۵:۔ دا عطف دے په اعراض یا په لا یسمعون باندے او دا سبب د اعراض ذکر کوي او دا اوله شبهه ده د متکرینو حاصل شبه دا دے چه ستا دا مسئلے زموږ د پوهې نه اوچتې دي نو موږ ته دا بیان مکوه. فِيْٓ اَكِنَّةٍ په دے لفظ کښې ډیر مبالغه ده په نسبت د علی قلوبهم اکنة سره یعني دا زړونه دننه په پردو کښې انغښتلي شوي دي هیڅ وَت او روپکښې نیشته وَقْرٌ کنایه ده هغه مقصود د مشرکانو او مبتدعینو نه چه غوږونه د جاهلانو ئې د حق او ریدلو نه بند کړي دي. وَمِنْۢ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ په دے کښې ډیر تاکید دے یعني حجاب زموږ او ستا په مینځ کښې چه څومره فاصله ده هغه ټوله بنده کړے ده او دا درے واړه (اکنة، وقر، حجاب) په طریقه د تشبیه سره دي اشاره ده چه د پوهیدلو اسباب زړونه او غوږونه او سترګے دي او هغه درے واړه زموږه ته ستا په مسئلو کښې هیڅ کار نه کوي. او حجاب نه مراد مخالفت د دین دے یا تفاوت د جهل او د علم دے. فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ یعني د خپل دین په مقتضٰی باندے کار کوه او موږ پریږده چه پخپله پخواني طریقه عمل کوو یا ته کوشش کوه زموږ په مقابله کښې او موږ به ستا په مقابله کښې محنت کوو.

وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ﴿۶﴾ الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ

او تباهي ده مشركانو لره هغه كسان چه نه وركوي

الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۷﴾

زكوٰة او دوى دَ اخرت نه انكار كوونكي دي .

سـ :. دا جواب دے دَ دغه شبهے ـ حاصل دَ جواب دا دے چه زما په خبرو باندے په هله ستاسو عقلونو او غوږونو كار نه كولے او دا رنگ زه به تاسو ته هله نه ښكاره كيدلے چه زه ملك يا پيرے وے نوزهٔ خو ستاسو غوندے بشر يم ـ او بشر خو دَ يل خبرے اورى او بويل لره ويئي او دَ بويل په خبرو باندے پوهيږى ـ يُوْحٰى اِلَيَّ يعنى زما او ستا فرق خو صرف په وحى او عدم وحى كښ دے دَ بشريت په تقاضا كښ نيشته ـ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ دا خلاصه دَ ټولے وحى ده يعنى دا خو داسے مسئله ده چه په عقل او نقل سره ثابته ده او مختصره خبره ده نو بيا پرے وے نه پوهيږئے ـ فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْهِ پس دَ جواب نه دعوت دے توحيد ته ـ معنىٰ دا چه كلك شئ په توحيد باندے مه كگيږئے هيڅ قسم شرك كولو ته واستغفروه يعنى دَ تير شوے شرك كولو نه استغفار اوكړئ نو الله تعالىٰ به تاسو معاف كړى ـ وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ دا علت دے دَ استغفار يعنى دَ شرك نه توبه دَ دے وجے نه او باسئ چه دَ تباهئ نه بچ شئ ـ

سـ :. دا اوصاف قبيحه دَ مشركانو ذكر كوى روستو دَ وصف دَ شرك نه اَلَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ يعنى داسے عمل نه كوى چه دَ دوى نفس او مال په هغے سره پاك شى نو دلته زكوٰة په عامه معنىٰ سره دے لكه چه دَ ابن عباس رضى الله عنهما نه نقل دے او دا وصف ئے دَ دے وجے نه په ذكر سره خاص كړو چه مشركان دَ غير الله په نوم باندے نذرونه وركوى او منجورانو ته ئے وركوى او په گناهونو كښ خرچ كوى ليكن دَ الله تعالىٰ په نوم باندے به مسكينانو باندے خرچ نه كوى ـ او په دے ايت كښ اشاره ده چه كافرانو ته به سرهٔ دَ كفر نه په نورو گناهونو باندے هم عذاب وركوى ـ زكوٰة نه وركول يو په طريقه دَ دَ انكار سره دى نو دا خو كفر دے دويم په طريقه دَ ترك العمل دے يعنى انكار دَ فرضيت نه نه كوى ليكن نه ئے وركوى نو په دے سره كفر نه راځى ليكن عمل دَ كافرانو دے او دَ هغوى سره مشابهت دے ـ

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ

یقینًا هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړیدی دَ سنت برابر دوی لره

أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿٨﴾ قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ

ثواب دے بے انتها . ته اُووایه آیا تاسو کفر کوئے

بِالَّذِي خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ

په هغه ذات باندے چه پیدا کړیده زمکه په مقدار دَ دوه ورځو کښ

وَتَجْعَلُونَ لَهُ أَندَادًا ۚ ذَٰلِكَ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٩﴾

او جوړوئے تاسو هغه لره شریکان دغه ذات رب دَ عالمینو دے .

وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ مِن فَوْقِهَا وَبَارَكَ

او جوړ کړیدی په هغے کښ پاخه غرونه دَ پاسه دَ هغے نه او برکتونه ئې اچوے دی

فِيهَا وَقَدَّرَ فِيهَا أَقْوَاتَهَا فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ

په هغے کښ او اندازه کړیدی په هغے کښ روزئے (قوتونه) دَ هغے په اندازه دَ پوره کیدلو دَ څلورو ورځو کښ

ف ۸ :. دا بشارت او ترغیب دے ایمان او عمل صالح ته .
غَيْرُ مَمْنُونٍ ختمیدو ونکے نه دے یعنی همیشه دے او دغه اجر جنت دے معلومه شوه چه جنت به نه فنا کیږی یا زبادلے شوے به نه وی، یا نقصان به په کښ نه راځی .
ف ۹ :. روستو دَ جواب دَ سوال او دَ ترغیب دَ توحید نه اثبات دَ هغے دے په څلورو عقلی دلیلونو سره دا اول دلیل دے چه په دے کښ پیدائش دَ زمکے ذکر کړے دے په مقدار دَ دوه ورځو کښ چه ورځ دَ اتوار او دَ گل وه یعنی هغه وخت یو دا سے مقدار وُو یا نوبت وُو چه اوس دَ هغے نه تعبیر کیدے شی په دوه ورځو سره .
وَتَجْعَلُونَ لَهُ أَندَادًا ، دا تفسیر دَ کفر بالله دے . ذَٰلِكَ رَبُّ الْعَالَمِينَ، اشاره ده چه خالقیت مستلزم دَ ربوبیت دے .

سَوَآءً لِّلسَّآئِلِیۡنَ ⑩ ثُمَّ اسۡتَوٰۤی اِلَی السَّمَآءِ

برابر دپاره د محتاجو خلقو - بیا برابرشو طرف د اسمان ته

وَهِیَ دُخَانٌ فَقَالَ لَهَا وَلِلۡاَرۡضِ ائۡتِیَا

او هغه لوگے وو تو اُویل ئے هغه ته او زمکے ته راشئ

سنا:. دادویم دلیل عقلی دے په دے کښ درے صفات د تصرف الٰهی ذکر کوی اول جَعَلَ فِیۡهَا رَوَاسِیَ مِنۡ فَوۡقِهَا لفظ د فِیۡهَا دلالت کوی چه غرونه په زمکه خخ دی لکه میخونو غوندے او مِنۡ فَوۡقِهَا یعنی د زمکے دپاسه ئے دنگ دنگ بنکاره کړے دی دپاره د دے چه مخلوق ئے اُوینی اوفائده ترینه واخلی۔ د دے وجه فرمائیلے دی په سورة نبا ے کښ "والجبال اوتاداً" او په سورة مرسلات ۲۷ کښ "شامخات". دویم وَبَارَكَ فِیۡهَا ضمیر راجع دے غروتو ته چه په هغے کښ اونے کانونه د معدنیاتو وغیره دی یا ضمیر راجع دے زمکے ته دریابونو نهرونو وغیره ته اشاره ده داټول دائمی منافع دی تر قیامت پورے او برکت کښ هم معنیٰ د دوام او د ډیروالی د فائده ده، دریم وَقَدَّرَ فِیۡهَاۤ اَقۡوَاتَهَا په دے سره هغه منافع مراد دی چه د انسانانو د قوت (روزئ) سره تعلق لری او دا قوت د زمکے او غرونو نه پیداکیږی د دے وجه نه اضافت ئے د هغے ضمیر ته کړے دے او قدّر لفظ صریح دلالت کوی په مسئله د تقدیر باندے.

فِیۡۤ اَرۡبَعَةِ اَیَّامٍ په دے کښ دوه ورځے مخکنے شمار دی یعنی غرونه نهرونه وغیره ئے په دوه ورځو کښ پیدا کړے دی چه مخکنو دوه ورځو سره جمع شی نو څلور شوے او فِیۡ یَوۡمَیۡنِ ئے اونه وئیل ځکه وهم پیدا کیدلو چه دا بعینه مخکنے دوه ورځے دی او که اٰخَرِیۡنِ ئے ورسره وئیل نو کلام اوګدیدلو او بل داچه د سَوَآءً تعلق د څلورو ورځو سره دے نو که یومین ئے وئیلے وے نو بیا دا تعلق نه معلومیدلو.

سَوَآءً لِّلسَّآئِلِیۡنَ سَوَآءً په معنیٰ د مستویة حال دے د اربعة ایام نه یعنی په داسے حال کښ چه دا څلور ورځے پوره دی کمے په کښ نیشته یا سواء مفعول مطلق دے په معنیٰ د استوت سواءً او هغه جمله حال دے د اربعة نه یا د اقواتها نه.

لِلسَّآئِلِیۡنَ متعلق دے د قدّر سره او سائلین په معنیٰ د طالبین دے یعنی محتاج یا خبر دے د مبتدا محذوف هٰذَا لِلسَّآئِلِیۡنَ یعنی دا تفصیل دپاره د هغه چادے چه تپوس نه کوی په باره د دے ورځو کښ۔ یا متعلق دے په سواء پورے یعنی په داسے حال کښ چه داڅلور ورځے برابر دی په شمار کښ چه علم د

طَوۡعًا اَوۡ كَرۡهًا ؕ قَالَتَاۤ اَتَيۡنَا طَآٮِٕعِيۡنَ ﴿۱۱﴾

په خوښۍ سره یا په ناخوښۍ دواړو ویل راژو موږ په خوښۍ سره .

فَقَضٰهُنَّ سَبۡعَ سَمٰوَاتٍ فِىۡ يَوۡمَيۡنِ

نو پوره يې کړه هغه اووه آسمانونه په اندازه د دوه ورځو کښ

وَاَوۡحٰى فِىۡ كُلِّ سَمَآءٍ اَمۡرَهَا ؕ وَزَيَّنَّا

او وحې اولیږله په هر آسمان کښ د کار د هغې او ښائسته کړيدے موږ

السَّمَآءَ الدُّنۡيَا بِمَصَابِيۡحَ ۖ وَحِفۡظًا ؕ

آسمان نزدے په چراغونو سره اوساتنه کړیده موږ د هغې

سائلینو سره دے چه هغه اهل کتاب دی ځکه چه د هغوی په علم کښ هم خلور ورځې دی .

سلا :- دا دریم دلیل عقلی دے . استوٰی صفت د الله تعالیٰ دے او لفظ الی السماء د پاره د علو (اوچت والی) دے نو معنیٰ معلومه ده چه اوچت شو آسمان ته ، لیکن کیفیت یې موږ ته معلوم نه دے یا استوٰی په معنیٰ د قصد او د پوره ارادے کولو ده یعنی پوره توجه یې اوکړه او دا هم صفت د الله تعالیٰ دے . وَهِيَ دُخَانٌ مفسرینو ویلے دی چه عرش د الله تعالیٰ د آسمانونو د پیدائش نه مخکښ په اوبو باندے وو نو په هغه اوبو کښ الله تعالیٰ حرکت او اضطراب پیدا کړو نو د هغې نه بیو بړاس پیدا شو هغې ته یې دخان اُویل یعنی پشان د دخان (لوګی) تور تور اجزاء وو . فَقَالَ لَهَا دا قول دخان ته خطاب دے او مراد دا دے چه اے دخان زما حکم ته تابع شه چه آسمانونه درنه په خپل حکم سره جوړ وؤم او زمکے ته یې اُویل چه ستا نه د مخلوق د پاره فائدے پیدا کوؤم . یا دا قول روستو د جوړولو د آسمانونو ته دے طَوۡعًا اَوۡ كَرۡهًا یعنی حکم به تاسو ضرور منئ که خوښه مو وی او که نه قَالَتَاۤ اَتَيۡنَا طَآٮِٕعِيۡنَ او ظاهر دا ده چه دا سوال او جواب حقیقتًا دی چه الله تعالیٰ دوی له د ګویایۍ طاقت ورکړے وو . طائعتین یا طائعات یې او نه ویل ځکه دے دواړو چه کله خبرے کولے نو پشان د ذوی العقول شول د دے وجه نه یې صیغه د تثنیه مذکر ذکر کړه .

ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿۱۲﴾ فَاِنْ

دا تقدیر دَ زوراور پوهه دے . نو که

اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ صٰعِقَةً مِّثْلَ

دوی مخ اوګرځوؤ نو ته ورته اوایه ویره درکوومه تاسو ته دَ عذاب نه پشان

صٰعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ ﴿۱۳﴾ اِذْ جَآءَتْهُمُ الرُّسُلُ

دَ عذاب دَ عادیانو او ثمودیانو . کله چه راغلل دوی ته رسولان

ف ۱۲ :- دا هم دلیل عقلی دے مشتمل دے په څلور تصرفاتِ الهیه باندے اول فَقَضٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ضمیر دَ هُنَّ السماء ته راجع دے او هغه معنیٰ جمع ده. فِیْ یَوْمَیْنِ دا دوه ورځې غیر دَ هغه څلورو ورځو نه نو ټولے شپږ ورځے شوے دویم تصرف وَاَوْحٰی فِیْ کُلِّ سَمَآءٍ اَمْرَهَا مراد دا دے چه هر اسمان کښې ملائک دی نو هغوی ته ئے دَ هغوی مناسب احکام اولیږل یا اُوحٰی په معنیٰ دَ انفذ دے او چلوؤ په اسمان کښې انتظام مناسب دَ هغې - دریم وَزَیَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْیَا بِمَصَابِیْحَ اشاره ده چه ستوری دَ نزدے اسمان سره تعلق لري اګرچه دَ اسمان نه کوزوی لیکن دَ اسمان زینت وریاندے جوړ دے څلورم وَحِفْظًا مفعول مطلق دے دَ فعل محذوف یعنی وحفظناها حفظا. ذٰلِكَ تَقْدِیْرُ مراد دَ تقدیر نه هر څیز په مناسب انداز سره پیدا کول دی.

ف ۱۳ :- روستو دَ دلیلونو نه تخویف دنیوی دے اعراض کوؤنکو ته په ذکر دَ دوه نمونو دَ مخکنو قومونو چه عاد او ثمود دی فَاِنْ اَعْرَضُوْا دا متعلق دے دَ ف سره (سوال) اعراض خو اکثرو خلقو کړے دے نو په دے کښې لفظ دَ اِنْ ولے ذکر کړو چه دلالت کوی په شک باندے ؟

(جواب) دلته مراد دَ اعرضوا نه دوام دَ اعراض دے یعنی که په اعراض کولو ئے همیش والے اوکړه او توبه ئے اونکړله ، او ذکر دَ عاد او ثمود اشاره ده چه دَ چا قوت دَ بدنونو او دَ چا قوت دَ هنر مندے دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه بچ کول نشی کولے صٰعِقَةً یعنی سخت عذاب چه دَ هغے نه چغې وهل پیدا کیږی او انسانانو لره بے هوشه کړی یا ئے مړه کړی.

مِنۢ بَيۡنِ اَيۡدِيۡهِمۡ وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ اَلَّا

مخکښ د دوی نه او روستو د دوی نه چه مه کوئ

تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّا اللّٰهَ ؕ قَالُوۡا لَوۡ شَآءَ رَبُّنَا لَاَنۡزَلَ

بندگی سوا د الله تعالیٰ نه دوی اُویل که غوښتلے رب زموږ نو نازل کړې به ئې وو

مَلٰٓئِكَةً فَاِنَّا بِمَاۤ اُرۡسِلۡتُمۡ بِهٖ كٰفِرُوۡنَ ﴿۱۴﴾

ملائک نو یقینًا موږ په هغه څیز باندے چه تاسو پرے رالیږلے شوے ئې انکار کوو۔

فَاَمَّا عَادٌ فَاسۡتَكۡبَرُوۡا فِى الۡاَرۡضِ بِغَيۡرِ

نو هرکله چه عادیان وو نو لوئی ئې اوکړه په ملک کښ په ناحقه

الۡحَقِّ وَقَالُوۡا مَنۡ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ؕ اَوَلَمۡ

سره او دوی اویل څوک دے سخت زموږ نه په قوت کښ ایا دوی نه

يَرَوۡا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِىۡ خَلَقَهُمۡ هُوَ اَشَدُّ

کوری یقینًا هغه الله چه پیدا کړیدی دوی هغه خورا زیات دے

سا ۱۴:- دا ذکر سبب د عذاب دے په دے دواړو قومونو باندے۔
مِنۢ بَيۡنِ اَيۡدِيۡهِمۡ یعنی د دوی نه مخکښ لیږلے شوے رسولان دوی ته راغلل چه د هغوی عمرونه الله تعالیٰ اوګده کړے وو وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ او د دے قومونو د هلاکت نه روستو هم رسولان پاتے شویوو اشاره ده چه دوی د رسولانو نه خالی نوو پاتے شوے یا عبارت کښ تقدیر دے رفاتذروهم من بین ایدیهم) یعنی ویره ئې ورکړه دوی ته د تیر شوے عذابونو نه او د راتلونکو عذابونو نه۔ اِنۡ لَّا تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّا اللّٰهَ معلومه شوه چه ټول رسولان متفق وو په مسئله د توحید فی العبادات باندے قَالُوۡا دا انکار د دوی ذکر کوی او دا سبب د عذاب دے او حاصل د انکار ئې دا دے چه موږ رسول بشر نه منو که ملائک رسولان وے نو موږ به منلے وے بِمَاۤ اُرۡسِلۡتُمۡ بِهٖ اشاره ده چه اصل انکار د دوی د مسئلے د توحید نه وؤ چه په هغې باندے رسولان رالیږلے شوے وو۔

مِنْهُمْ قُوَّةً ۭ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ⑮

دَ دوی نه په قوت کښې او وو دوی زمونږ دَ ایاتونو نه یې انکار کوؤ ۔

فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِيْٓ اَيَّامٍ

نو را اولیږله مونږ په دوی باندے سیلۓ تیزه په ورځو

نَّحِسَاتٍ لِّنُذِيْقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ

سپیرو کښې دَپاره دَدے چه اوڅکوو مونږ دوی ته عذاب دَ رسوا یۓ

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۭ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ

په ژوند دنیوی کښې او خامخا عذاب دَ اخرت

اَخْزٰى وَهُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ ⑯ وَاَمَّا ثَمُوْدُ

ډیر رسوا کوونکے دے او دوی سره به مدد نشی کیدلے ۔ او هر چه ثمودیان وو

سـ۱۵ :. دَ مشترکه انکار ذکر کولو نه روستو دَ هر یو قوم جدا جدا طریقه دَ کفر او عذاب ذکر کوی. نو دَ عادیانو مرض استکبار وؤ او سبب دَ استکبار غټ والے دَ بدنونو دَ دوی وؤ نو مراد دَ استکبار نه دا دے چه دوی دَ هود علیه السّلام خبرے ته غوږ نه کیخودلو او بے پرواه یۓ نه کوله اَوَلَمْ يَرَوْا دا رد دے دَ دوی په قول باندے یعنی هر کله چه الله تعالیٰ دَ دوی خالق دے نو معلومه شوه چه دَ هغه قوت دَ دوی نه زیات دے نو دوی به څه رنګ په خپل قوت سره دَ هغه عذاب دفع کړی وَكَانُوْا دا عطف دے په استکبروا باندے بِاٰيٰتِنَا دَ دے نه مراد دلیلونه دَ قدرت دَ الله تعالیٰ او دَ توحید دَ هغه دی۔

سـ۱۶ :. دا تفسیر دَ صاعقے دَ عادیانو دے ۔ صَرْصَرًا سخته تیزه او سخته یخه او سخته اواز کوونکے وه دالفظ دلالت کوی په دے ټولو معانیو باندے نو په هغه سیلے کښې دا درے وړاړه صفتونه موجود وو اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ دَ دغه ورځو شماره په سورة الحاقه کښې ذکر ده. نَحِسَاتٍ نحس مقابل دَ سعد دے یعنی سپیرے وۓ په حق دَ هغوی کښې یا مراد دے په معنیٰ دَ پرله پسے یا سختے یخے یا ډیرو دوړو والا. لِّنُذِيْقَهُمْ دا متعلق دے په ارسلنا پورے عَذَابَ الْخِزْيِ هر کله چه دوی تکبر کړے وؤ نو دَ دوی سره مناسب وه شرمندګی او سپکول دَ دوی دَ دے وجے نه الخزی او اخزیٰ یۓ دَ عذاب سره ذکر کړو ۔

فَهَدَيْنٰهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى

نو هدايت اوكړو موږ هغوته (په واسطه د رسول د نو) نو خوښ كړو هغوی ړوند والے په هدايت باندے

فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ

نو اونيول هغوی چغې د عذاب د ذلت

بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۷﴾ وَنَجَّيْنَا الَّذِيْنَ

په وجه د هغه عملونو چه دوی كول او بچ كړل موږ هغه كسان

اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿۱۸﴾ وَيَوْمَ يُحْشَرُ

چه ايمان ئے راوړے وؤ او وو چه ځان ئے ساتلو د شرك نه. او په كومه ورځ چه جمع به كړے شي

اَعْدَآءُ اللّٰهِ اِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ﴿۱۹﴾

دشمنان د الله تعالىٰ اور ته نو دوی به تقسيم شي په ډلو ډلو۔

ف ۱۷، ۱۸:۔ دا ذكر د دويمے نمونے د عذاب دے فَهَدَيْنٰهُمْ يعنی په واسطه د رسولانو دوی ته توحيد او ايمانيات په دليلونو سره بيان شول او دوی واوريدل ليكن فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى حاصل دا دے چه عاديانو د سرهٔ هدايت ته غوږ نه وؤ ايخودے د وجے د استكبار نه او ثموديانو خو غوږ كيخودلو ليكن ګمراهی (شرك وكفر) ورته ښائسته ښكاريدله نو د دے وجے نه اعراض ئے اوكړو د دے نه معلومه شوه چه كفر كوؤنكی دوه قسمه دی يو قسم ضديان عناديان چه حق پيژنی ليكن نه منی او دويم قسم چه شرك او كفر ورته جائز او د ثواب كار ښكاريږی نو توحيد نه منی او دواړه قسمونه اوس هم موجود دی۔ صٰعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ اضافة بيانيه دے يا اضافة د صفت دے موصوف ته الْهُوْن، مصدر دے مضاف ئے حذف دے يعنی ذِی الهون۔ وَنَجَّيْنَا الخ، سره بشارت دے مؤمنانو لره او دا متعلق دے د دواړو قصو سره يعنی په عاديانو او ثموديانو كښ چه چا ايمان راوړے وؤ نو هغوی نجات اوموندلو يا متعلق دے صرف ثموديانو پورے اشاره ده چه عاديانو كښ ايمان والا ډير كم وو د دے وجے نه د هغوی ذكر اونشو۔

ف ۱۹:۔ روستو د تخويف دنيوی نه تخويف اخروی ذكر كوی۔ اَعْدَآءُ اللّٰهِ هر مشرك او كافر او د الله تعالىٰ او د رسول د حكم مخالفت كوؤنكی (پاتے په بل مخ)

حَتّٰٓى اِذَا مَا جَآءُوْهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ

ترجمه: تر هغې پورې چه کله راشي اُور ته گواهي به اوکړي په دوی باندې غوږونه دَ دوی

وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۰﴾

او سترګې دَ دوی او څرمنې دَ دوی په هغه عملونو باندې چه دوی کول.

وَقَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا ۭ

او دوی به اُوائي څرمنو خپلو ته ولې گواهي اوکړه تاسو په مونږ باندې

قَالُوْٓا اَنْطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْطَقَ كُلَّ

دوی به اُوائي گويائي راکړه مونږ ته الله تعالىٰ هغه ذات چه گويائي ورکړې ده هر

شَيْءٍ وَّهُوَ خَلَقَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّاِلَيْهِ

څيز ته او هغه پيدا کړي يُ تاسو اول ځل او هغه ته به

تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ

اوګرځولے شئ تاسو. او نه وئ تاسو چه پرده موکوله دَ ډېرنه چه گواهي به اوکړي

په دے لفظ کښې داخل دے ليکن هغه خلق چه دَ قرآن نه اعراض کوي او نه يُ اوري او نور خلق ترينه هم منع کوي دا اول نمبر دشمنان دَ الله تعالىٰ دي په دے سورت کښې دا صفت والا خلق ذکر شويدي دَ دے وجې نه خاص په دے سورة کښې اعداء الله يُ وصف ذکر کړے دے. يُوْزَعُوْنَ يعني روستو دَ جمع کولو نه به په مختلف ډلو کښې تقسيم کړے شي او اور ته به داخل کړے شي ځکه چه وَزَعْ په اصل کښې تقسيم ته ويلے کيږي.

ف ۲۰: هر کله چه سورة مؤمن کښې ذکر کړے وو چه دا مشرکان به انکار اوکړي دَ شرک کولو نو په دے سورت کښې په هغوی باندے شهادت دَ خپلو اندامونو ذکر کوي. تخصيص دَ دے درے اعضاؤ يُ کړے دے دَ دے وجې نه قوت دَ اوريدلو په غوږونو کښې دے او قوت دَ ليدلو په سترګو کښې دے او قوت دَ بويولو او څکلو او سَکلو ټولو دا په څرمنو کښې داخل دي. او هر کله چه تير شول په دے سورت کښې چه اکثر خلق په غوږونو سره قرآن نه اوري او دليلونه عقليه يُ ذکر کړه دا اشاره وه چه دا خلق په سترګو سره دے کائناتو ته نه ګوري نو دا دوه اندامونه يُ خود دے وجې نه خاص کړل په شهادت کولو سره او دا سے شهادت

ف ۲۱: تخصيص دَ څرمنو يُ اوکړو دَ دے وجې نه چه دَ غوږونو او دَ سترګو سره خطاب

عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ اَبْصَارُكُمْ وَلَا
په تاسو باندے غوږونه ستاسو او نه سترګے ستاسو او نه

جُلُوْدُكُمْ وَلٰكِنْ ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ
څرمنے ستاسو لیکن ګمان کوئے تاسو چه الله تعالیٰ نه دے عالم

كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۲﴾ وَذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ
په ډیرو دَ هغه کارونو نه چه تاسو یئے کوئے. او دا ګمان ستاسو دے

الَّذِيْ ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ اَرْدٰىكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ
دا سے ګمان چه کړے وو تاسو په رب خپل باندے هلاک یئے کړے تاسو نو شوئے تاسو

مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۲۳﴾ فَاِنْ يَّصْبِرُوْا فَالنَّارُ
دَ تاوانیانو نه. که دوی صبر کوی نو اُور

نشی کیدے او باقی اندامو تو سره مخاطبه کیدے شی او بله وجه دا چه جلود تو لو اندامو نو ته شامل دے. وَهُوَ خَلَقَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ داهم کلام دَ خرمتو دے معنیٰ دا چه الله تعالیٰ ستاسو په اول خلق باندے قادر وؤ نو زمونږ په ناطق کرځولو باندے هم قادر دے یا دا چه الله تعالیٰ تاسو اول پیدا کړی وئے نو تاسو دَ هغه نافرمانی ولے کوئے یا دا جمله معترضه ده دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه خطاب دے.

۲۲:. داهم په تخویف کښ داخل دے. داهم قول دَ خرمتو دے یا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دے په آخرت کښ یا زجر دے په دنیا کښ لیکن کُنتم په معنیٰ دَ انتم سره دے. تَسْتَتِرُوْنَ په معنیٰ دَ ځان ساتلو دے یا په معنیٰ دَ حیا کولو دے یا په معنیٰ دَ ویره کولو دے کَثِيْرًا دَ دے نه مراد هغه عملونه دی چه دوی پټ کول نو ګمان دا وؤ چه الله تعالیٰ ته دَ دے علم نیشته لکه چه دَ بعض فلسفیانو عقیده ده چه الله تعالیٰ په جزئیاتو باندے عالم نه دے او دا عقیده کفر دے. او په مشرکانو کښ دَ بعضو عقیده داوه چه الله تعالیٰ په هر څه باندے علم نه لری او دَ بعضو عقیده داوه چه الله تعالیٰ ته هیڅ خبر پته نه دے لکه قول دَ یو مشرک شاعر دے وَمَهْمَا يُكْتَمْ فَاللّٰهُ يَعْلَمُ.

۲۳:. اهل علم وائی چه ظن دوه قسمه دے یو حسن دے او بل سوء او فاسد دے حسن دا دے چه الله تعالیٰ خاوند دَ رحم او دَ فضل ګنړی (پاتے په بل مخ)

مَثْوًى لَّهُمْ ۚ وَاِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ

ځائے دَ اوسیدلو دَ دوی دے او که دوی واپسی غواړی نو دوی به نشی

مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ ﴿۲۴﴾ وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ

واپس کیدے . او جوخت لګولے دی موتږ دَ دوی سره ملګری (شیطانان)

فَزَيَّنُوْا لَهُمْ مَّا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا

نو ښائسته کوی دوی ته هغه چه مخکښ دی دَ دوی نه او هغه

خَلْفَهُمْ وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِيْٓ اُمَمٍ

چه روستو دی دَ دوی نه او پوره شو بده په دوی باندے فیصله (د داخلیږی به) په هغه ډلو کښ

او استغفار غواړی او طاعت کوی نو دغه ظن مراد دے په هغه حدیث کښ چه انا عند ظن عبدی بی او په بل حدیث کښ چه "نه دے مړ کیږی مګر په دا سے حال کښ چه په الله تعالیٰ باندے ښائسته ګمان کوی". او ظن فاسد دا دے چه الله تعالیٰ عالم الغیب نه ګڼړی یا هیڅ طاعت نه کوی او ګمان کوی چه الله تعالیٰ به ما ته بخښنه کوی - او قتاده رحمة الله علیه روایت دے چه ظن دوه قسمه دے یو منجی (نجات ورکوونکے) دویم مُردِی (هلاکوونکے) اول مراد دے په ایت انی ظننت انی ملاقٍ حسابیه. یظنون انهم ملاقوا ربهم الاکښ او دویم مراد دے په دے ایت کښ او دا رنګ په یظنون بالله غیر الحق ظن الجاهلیة کښ. او دَ عمر رضی الله عنه نه روایت دے "چه هغه خلق چه همیشه ګناهونه کوی او توبه نه کوی او خبرے کوی چه الله تعالیٰ به ما او بخی نو تر دے چه دَ دُنیا نه به مفلسان لاړشی" او دا ایت ئے اولوستلو.

ف ۲۴ :- دا هم په تخویف اخروی کښ داخل دے او دَ ان یصبروا مقابل حذف دے یعنی او لم یصبروا یعنی که صبر کوی او که نه کوی خو جهنم ته به ضرور داخلیږی لکه سورة طور ف ۱۶ وَاِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا دا دَ عتبی نه اغستلے شوے دے په معنیٰ دَ رجوع سره دے یعنی که چرے دوی دنیا ته واپسی طلب کوی نو دا نشی منلے کیدے. او قرطبی اول قول دا سے ذکر کړے دے چه دا په دنیا کښ مراد دے یعنی که دوی په دنیا کښ عمل دَ اور والو باندے نیټګ وی نو اور ته به داخلیږی او که چرے دوی سرۂ دَ کفر نه توبے او استغفار کوی نو دا سے توبه ئے نه قبلیږی.

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ ؕ
چه تیرې شویدي مخکښې دَ دوی نه دَ پیریانو او انسانانو نه
إِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۲۵﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ
یقیناً دوی تاوان والا دي. او وائي کافران

۲۵: دَ دې ایت نه دویم باب دَ دې تر ۴۴ پورې په دې کښې ذکر کوي سبب دَ اعراض او دَ منع دَ قران بیا منع کول دَ قران ذکر کوي او دا دویمه شبهه دَ دوی ده او جواب دَ هغې په تخویف اخروي سره دې بیا بشارت دې په استقامت باندې په وخت دَ شبهاتو کښې بیا طریقه دَ دعوت راوړي. بیا دوه عقلي دلیلونه بیا زجر دې الحاد کوونکو ته او صداقت دَ قران او تسلي رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته ذکر کوي. په دې (۲۵) کښې سبب دَ کفر دَ دوی ذکر کوي او دا سبب دې دَ اعراض او دَ منع کولو دَ قران ته او دا هم سبب دې دَ عذاب چه مخکښې ذکر کړې شو او په دې کښې دویمې شبهې ته اشاره ده حاصل دا دې چه دوی ته اعمال دَ مشرکانو کافرانو ښائسته ښکاري نو دَ هغې دَپاره په شیطاني وسوسو سره دلیلونه پیش کوي مثلاً وائي چه دَ اولیاؤ کرامو قدرت شته هر کله چه موتږ ورته رامدد شه او ابو نو دَ قبرونو ته آواز راکوي کله راته لاس را او باسي مصافحه راسره کوي کله راته په صحراء کښې راښکاره شي چه څه ستا مدد له راغلې یم کله راته په خوب کښې راشي او دَ مدد کولو وعدې راسره کوي او که چرته مونږ دَ دوی نذرانه پر بېږدو نو په مونږ باندې په خوب کښې کتنا پړوي او ویره راکوي نو معلومه شوه چه دَ دوی بندګي کول او دوی ته رامدد شه ویل جائز دي. حاصل دَ جواب دا دې چه دا ټول شیطاني کارونه دي هغه شیطان ځان ته دَ ولي نوم کیدي او دا کارونه شیطان دَ دې وجې نه کوي چه دې خلقو ته دَ شرک کارونه ښائسته ښکاره شي. وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ تقییض مسلط کولو او پیوست کولو ته ویلې کیږي لکه چه دَ پیازو پوستکي پیوست وي یو بل سره، یعنې شیطانان دَ دوی سره په ویښه او خوب کښې هر وخت لازم وي دَ دوی نه جدا کیږي نه. فَزَيَّنُوْا لَهُمْ مَّا بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ په دې کښې یو قول دا دې چه داول نه مراد اموال دَ دنیا دي او دَ دویم نه مراد اخرت او بعث بعد الموت دې. او دویم دې په عکس سره دې. دَ دنیا ښائسته کول دا دي چه په هغې کښې داسې مشغول شي چه دَ دین او اخرت نه غافل شي او دَ اخرت ښائسته کول دا دي (پاتې په بل مخ)

كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَالْغَوْا

مه کښ ئ غوږ ته دے قران ته او شور کوئ په مقابله

فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ﴿۲۶﴾ فَلَنُذِيْقَنَّ

د دے کښ دے د پاره چه زور اور شئ - نو خامخا او به څکوو مونږ

چه د هغې نه ئې منکر او کرځوی. نو د مَا خَلْفَهُمْ قول په اصل کښ پټ دے یعنی انسوهم (هیر کړے دے آخرت لره د دوی نه) او دریم قول نیشاپوری ذکر کړے دے چه مراد د مابین ایدیهم نه عملونه د مفسدانو د دے زمانے دی او ماخلفهم نه مراد عملونه د مفسدانو مشرانو دی چه هغه شرکیات کفریات او خرافات دی او دوی ته ښائسته او ښئ کارونه ښکاریږی. الْقَوْلُ نه مراد فیصله د عذاب ده. فِیْٓ اُمَمٍ، فی په معنیٰ د مع سره دے یا حال دے یعنی وی به دوی په هغه ډلو کښ.

۲۶:- دا زجر نتیجه ده د تیرشوی ایت د مضمون یعنی هر کله چه شیطانانو دوی ته شرکیات ښائسته کړیدی او قران کریم خوښکاره رد کوی په شرک باندے نو په دے وجه سره دوی د قران نه خلق منع کوی. اَلَّذِیْنَ کَفَرُوْا په دے وصف باندے تصریح د دے د پاره او کړه چه معلومه شی چه د قران اوریدلو نه منع کوونکے کافر دے که په هره زمانه کښ وی ځکه ابن کثیر ویلی دی چه دے ایت کښ داخل دی هغه څوک چه د دوی په مسلک باندے تلل کوی په وخت د اوریدلو د قران کښ. لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ، په دے اسم اشاره کښ مراد دا دے چه د قران دا سے لوستل په توحید او په رد د شرکیاتو باندے مشتمل دی صرف قراءت مراد نه دے. وَالْغَوْا فِیْهِ شور وشغب کول او عیبونه لګول او اعتراضونه کول او نور کول ټولو ته دا لفظ شامل دے د قران په مقابله کښ په نورو علمونو کښ مشغولیدل او شعرونه نعتونه ویل او ریډیوان غږول وغیره دا ټول په دے لفظ کښ داخل دی. لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ معلومه شوه چه مقصد د دے مخالفت کوونکو قران والا او د قران تحریک او د قران تعلیماتو لره کمزورے کول دی ګ برائے نام مسلمانان دی او که کافران وی نو دا مقصد لری.

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّلَنَجْزِيَنَّهُمْ

هغه چاته چه کفر ئے کړیدے عذاب سخت او خامخا سزا به ورکړو مونږ دوی ته

اَسْوَاَ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۷﴾ ذٰلِكَ

ډیره ناکاره سزا دَ هغه عملونو چه دوی کول دا

جَزَآءُ اَعْدَآءِ اللّٰهِ النَّارُ ۚ لَهُمْ فِيْهَا

سزا دَ دُشمنانو دَ الله تعالیٰ ده اور دے دوی لره په هغې کښ

دَارُ الْخُلْدِ ؕ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا

کور دَ همیش والی دے بدله ورکیدے شی په وجه دَ دے چه دوی دَ ایاتونو زمونږ نه

يَجْحَدُوْنَ ﴿۲۸﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

انکار کوؤ۔ او اویه وائی کافران

۲۷:۔ دا جواب دَ ماقبل قول دے په تخویف ورکولو په پنځو طریقو سره۔ په دے ایت کښ دوه طریقے دی یو عذاب شدید په دنیا او اخرت کښ او دویم تاکید په سزا ورکولو سره په حرف دَ لام او نون په لنجزینهم کښ دا رنګ په دے ایت کښ دَ قران منع کوؤنکو په باره کښ دوه حکمونه دی یو داچه دا کار دَ کفر دے او دویم داچه دا ډیر ناکاره عمل دے۔ شدیدًا هغه عذاب دے چه په ټولو اجزاؤ دَ بدن باندے وی او همیشه دَ پاره وی۔

۲۸:۔ په دے ایت کښ تخویف دے په دوه طریقو سره یو داچه دَ دوی سزا پوره اُور دے ځکه چه النَّارُ ئے معرفه ذکر کړے دے دَ پاره دَ کمال دویم داچه دغه اُور دَ دوی دَ پاره دارالخلد دے او دوه حکمونه ئے ذکر کړه یو داچه دا خلق دَ الله تعالیٰ صریح دشمنان دی دویم داچه دوی دَ الله تعالیٰ دَ ایاتونو نه عنادًا انکار کوؤنکے دی۔ ذٰلِكَ مبتدا ده جزاءِ خبر دے او النار بدل دے دَ خبر نه یا خبر دَ مبتدا محذوف دے۔ لَهُمْ فِيْهَا دَارُ الْخُلْدِ (سوال) اُور خو پخپله دارالخلد دے نو فیها ئے ولے ذکر کړو؟ (جواب) په حرف دَ فی کښ معنی دَ انغماس (غوپه کیدلو) ده یعنی دوی باندے اور دَ هر جانب نه احاطه کړے وی او دوی به پکښ غوپه وهی نو دا سخت عذاب ته اشاره ده۔

رَبَّنَآ اَرِنَا الَّذَيْنِ اَضَلّٰنَا مِنَ الْجِنِّ

اے ربه زموږ اوخايه موږ ته هغه دوه کسان چه بے لارے کړے وو موږه دَ پيريانو

وَالْاِنْسِ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا لِيَكُوْنَا

او انسانانو نه چه کيږدو موږ دا دواړه لاندے دَ خپو زموږ نه دے دَپاره چه شى دوى

مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ ﴿۲۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا

دَ ذليلانو نه. يقينًا هغه کسان چه وائى

رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ

رب زموږ الله تعالىٰ دے بيا پاخه شوے دى (په دے وينا) راکوځيږى په دوى باندے

الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا

ملائيک چه مه ويريږئ او مه خفه کيږئ

وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِىْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴿۳۰﴾

او زيرے واخلئ په جنت سره هغه چه تاسو سره ئے وعده کيدے شوه.

ف ۲۹ :- په دے ايت کښ تخويف دے په يو طريقے سره هغه په اصل کښ ارمان کول دى په تقليد دَ مشرانو گمراهانو سره او دا اشاره ده تير شوى ايت ف ۲۵ ته چه دَدوى دَپاره په دُنيا کښ ناکاره قرناء دى او اخرت کښ به هغوى ته گمراه اُوائى اَضَلّٰنَا لوئے اضلال دا دے چه دَ قران نه ئے منع کول او دوى ئے تقليد کوؤ- نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا يعنى دوى موږ لره په دنيا کښ دَ خپل حکم دَ لاندے کړے وو نو دَ هغ په بدل کښ ئے موږه نن دَ خپو لاندے کول غواړو لِيَكُوْنَا مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ يعنى لکه دوى په دُنيا کښ موږه ذليل کړے وو او دوى به اوچت زموږ په اوګو باندے ناست وو نو نن موږ غواړو چه دوى زموږ دَ لاندے او ذليل شى- ليکن دا قول دَ دوى صرف په طريقه دَ تمنا سره دے او حال دا چه نه به پوره کيږى۔

ف ۳۰ :- هرکله چه حال دَ مخالفينو دَ قران ذکر کړے شو نو اوس حال دَ قران والو ذکر کوى په طريقه دَ بشارت سره قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ دا دَ قران دَ تاثير په وجه سره دَ دوى عقيده جوړه شو يده مراد دَ دے پوره ايمان او کمالِ توحيد دے

# نَحْنُ اَوْلِیٰٓؤُكُمْ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا

موږ ستاسو ملګری یو په ژوند دنیوی کښ

یعنی "خالق او مالک او حقدار د بندګئ او د پالنے خیزونه پیدا کوونکے او ټول حاجتونو پوره کولو والا دے قادر" دلته رَبّ دے ټولو صفتونو ته شامل دے ثُمَّ اسْتَقَامُوْا مراد ترینه په توحید او ایمان باندے پوخ پاتے کیدل دی ترمرګه پورے او د دے پوخ والی تفسیر کښ د ابوبکر رضی الله عنه نه نقل دے چه شرک ئے هیڅ قسم نه وی کړے او د عمر رضی الله عنه نه نقل دے چه په امر او نهی باندے کلک وی او د لومبړانو پشان یو خوا بل خوا ته پټیږی او د عثمان رضی الله عنه نه نقل دے چه اخلاص د هر عمل د الله تعالیٰ د پاره کوی او د علی رضی الله عنه نه روایت دے چه ټول فرائض اداکوی، دا اقوال عامو مفسرینو ذکر کړیدی او په دے کښ د تابعینو هم مختلف اقوال دی لیکن د ټولو خلاصه دا ده چه په طاعت د الله تعالیٰ باندے عقیده ساتی او قولاً او عملاً ترمرګه پورے کلک وی۔
او د استقامت معنیٰ او مرتبه او نور تفصیل په تفسیر د سورة فاتحه (لطائف القرآن) کښ موږ ذکر کړے دے۔ او آقامُوْا ئے نه دے ویلے بلکه سین او تائے پکښ راوړے دی په دے کښ اشاره ده چه د الله تعالیٰ نه هر وخت طلب کوی پوخ والے په دین باندے او دا بشارت ئے په اته طریقو سره ذکر کړے دے او دے ته کرامات د اولیاؤ ویلے کیږی نو معلومه شوه چه تعریف د ولی هم دا دے چه ربنا الله وائی او صفت د استقامت پکښ موجود وی. په دے ایت کښ ئے بشارت په څلورو طریقو سره ذکر کړے دے۔
اول تنزل د ملائکو او صیغه د تتنزل دلالت کوی چه وخت په وخت همیشه نزول کوی دا نه چه صرف یو ځل نزول کوی نو دا نزول په خوب کښ هم وی په رشتینو خوبونو سره او په وخت د زنکدن کښ به وی او په وخت پورته کیدلو د قبرونو نه او په حشر کښ۔
دویم زیرے ورکول په عدم خوف سره د عذاب او د مصیبتونو او د فنا نه۔
دریم زیرے دے په عدم حزن زیره نه ورکولو سره یعنی په اولاد او کور والا او خپل خپلوانو پسے خفه کیدل به نه وی او په دنیا پسے به ارمانونه کول نه وی۔
څلورم بشارت دے په جنّت سره موافق د هغه وعدو سره چه الله تعالیٰ کړے دی چه هغه بے شماره نعمتونه دی په جنّت کښ چه په ډیرو ایاتونو کښ ذکر کړے شویدی۔

وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِيٓ

او په اخرت کښې او تاسو لره په دے کښې هغه څیزونه دي چه غواړي یې

اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ ﴿٣١﴾

نفسونه ستاسو او تاسو لره په دے کښې هغه دي چه ارمان کوئے تاسو.

نُزُلًا مِّنْ غَفُورٍ رَّحِيمٍ ﴿٣٢﴾ وَمَنْ اَحْسَنُ

میلمستیا تیاره ده دَ طرف دَ بخنه کوونکي رحم کوونکي نه. او څوک ډیر خائسته دے

قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَا اِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا

په وینا کولو کښې دَ هغه چانه چه دعوت کوي الله تعالیٰ ته او عمل کوي دَ سنت برابر

۳۱:- په دے ایت کښې بشارت په درے طریقو سره دے اول نَحْنُ اَوْلِيٰٓؤُكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا دَ فِي الْاٰخِرَةِ دا مقابل دَ قرناء الشیاطین دے لکه چه مشرکانو دَپاره شیطانان ملګري وو په دنیا کښې نو دَ مؤمنانو دَپاره ملائک ملګري دي په دنیا کښې الهام دَ خیر ورته کوي او دَ موتے دَپاره یې دَ خوب نه بیداره وي نو مضراتِ شیطاني ترینه لرے کوي لکه چه "له معقبات من بین یدیه ومن خلفه یحفظونه من امر الله" (رعد سلا) کښې تیر شوے دي. دَ فِي الْاٰخِرَةِ قرناء شیاطین خو به په اخرت کښې دشمنان شي او ملائک به اخرت کښې هم ملګري او دوستان وي شفاعت به مؤمنانو لره کوي او سلامونه به ورته کوي.

دویم بشارت وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِيٓ اَنْفُسُكُمْ اشاره ده چه دوي په دنیا کښې دَ شهواتِ نفسانیه نه ځان بچ ساتلے وو نو اخرت کښې دَ هغے ازادي ورکوي.

دریم وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ ادّعاء عام ده چه طلب په قول سره یا په تمنا دَ زړه سره وي او دا دَ اشتهاءِ نفس نه هم عام ده یعني دَ خولے په طلب او دَ زړه په تمنا او دَ نفس په اشتهاء باندے پابندي نیشته.

۳۲:- په دے کښې یو بشارت دے. نُزُلًا هغه څیزونه خوراک څکاک مکان وغیره چه دَ میلمه دَپاره تیاریږي یعني دَ دُنیا پشان به نه وي چه دَ میلمه دَپاره به تکلّف صِرف درے ورځې کوي او بیا به عام خوراک خوري لیکن په جنت کښې به هر وخت اعزاز او اکرام دَ میلمه پشان وي نُزُلًا حال دے دَ لفظ دَ مَا نه یا اُعِدَّت پټ دَپاره دَ مفعول به دے.

وَّقَالَ اِنَّنِیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ﴿۳۳﴾ وَلَا تَسْتَوِی

او وائي چه يقيناً زهٔ دَ مسلمانانو دَ ډلے نه يم - او برابر نشي كيدے

الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ؕ اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ

ښهٔ او بد دفع كوه (بدو لره) په هغه طريقه چه

اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ

خائسته ده نو دغه وخت هغه څوك چه په مينځ ستا او په مينځ دَ هغه كښ

عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ ﴿۳۴﴾

دُشمني وي گويا كه دِ دے دوست كرم (مخلص) -

۳۳:- دا بيان دَ صفت دَ استقامت دے چه دعوت الے الله كوي او په طريقه دَ زورنے سره دے هغه كسانو ته چه دَ قرآن دَ اوريدلو نه خلق منع كوي يعني قرآن ډير خائسته دعوت دے نو دَ دے نه ولے خلق منع كوئے؟ او په دے اياتونو كښ دَ دعوت الى الله اداب ذكر كوي. په دے ايت كښ درے اداب دي.

اول ادب دَعَآ اِلَى اللهِ يعني مقصد او منشور دَ دعوت دَ ده (الى الله) دے او دَ دے نه دعوت دَ توحيد په ټولو اقسامو سره او دعوت اطاعت دَ الله تعالىٰ او دَ رسول ته او دعوت عمل دَ سنت ته په ټولو حالاتو كښ مراد دے -

دوېيم ادب وَعَمِلَ صَالِحًا دا ادب دَ پاره دَ تاثير دَ دعوت دے په زړونو دَ خلقو كښ او دَ دے دَ پاره چه داخل نشي دعوت كوونكے په دے زورنه كښ اتامرون الناس بالبر وتنسون انفسكم او لم تقولون مالا تفعلون - او عمل صالح شامل دے پوره تابعدارى كول دَ سنت دَ رسول الله عليه وسلم او دَ صحابه كرامو ته -

دريم ادب وَقَالَ اِنَّنِیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ داعي دَ دعوت كولو نه روستو ذكر كړو اشاره ده چه دا قول په وخت دَ ضرورت كښ دے مثلاً چه خلق تپوس او كړي چه اے داعي ته دَ كومے ډلے سره تعلق لرے نو دا جواب دِ او كړي يا مراد دَ اسلام نه اخلاص دے يعني كه خلق گمان او كړي چه دَ دهٔ به په دے دعوت كښ دَ دنيا مال وجاه وغيره مقصد وي نو جواب به او كړي په اظهار دَ اخلاص سره -

۳۴:- په دے ايت كښ دوه اداب ذكر كوي اول وَلَا تَسْتَوِی يعني داعي له ضروري دي چه دَ حسنه او سيئه فرق پوره او پيژني (پاتے په بل مخ)

وَمَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا ۚ وَمَا يُلَقّٰهَآ

او نشی ورکیدے دا خصلت مگر هغه کسانو ته چه صبر ئے کړیدے او نشی ورکیدے دا

اِلَّا ذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ ﴿۳۵﴾ وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ

مگر لوئے برخے والا ته. او که چرے اورسیږی تا ته

دَپاره دَدے چه په حسنه باندے امر کوی او دَ سیئه نه نهی کوی او حَسَنَةُ توحید او سنّت ته ویلے کیږی او سیئهٔ شرک بدعات او فسق فجور ته ویلے کیږی یا مراد دَ حسنه نه خائسته اخلاق دی او دَ سیئه نه بد اخلاق دی. اولا لفظ ئے مکرر راوړو دپاره دَ تاکید دَ فرق په مینځ دَ حسنه او سیئهٔ کښ لکه چه سورة فاطر کښ ومایستوی الاحیاء ولا الاموات کښ تیر شویدی یا دَ دے وجے نه چه دَ حسناتو په مینځ کښ هم تفاوت دے او دَ سیئاتو په مینځ کښ هم تفاوت دے. دویم ادب تفریع ده په ماقبل جمله باندے اِدفع بِالّتِی هِیَ احسن یعنی په بیان دَ حسنه سره چه توحید او سنت دے دفع کوه شرک و بدعت او گناهونو لره اشاره ده چه دَ مسئلے مقابله په مسئلے سره کوه په کنځلو او جگړے کولو سره مکوه یا مراد دا دے چه په صبر حلم او عفو او کرم وغیره دَ مخالفینو دَ غضب او کنځلو او دَ ظلم وغیره مدافعت کوه او قرطبی دَ ابوبکر رضی الله عنه نه روایت راوړے دے "چه یو شخص بل ته کنځل اوکړی نو هغه بل دِ ورته اوائی که تا زما په باره کښ رشتیا ویلے وی نو الله تعالیٰ دِ ما ته مغفرت اوکړی او که تا دروغ ویلے وی نو الله تعالیٰ دِ تا ته مغفرت اوکړی". فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ الخ دا بیان دَ فائدے دَ دغه طریقے دَ دعوت او دَ هغے ثمره او نتیجه ذکر کوی. وَلِیٌّ یعنی قریب یا دوست حَمِیْمٌ مخلص په اوکړئ (سوال) دَ دے ادا یو خو انبیاء علیهم السّلام ټول سره یا بند وو خاص کر بیا زمونږ نبی صلّی الله علیه وسلّم خو په دے ادا یو باندے پوره متصف وُو او حال دا چه دَ هغه بعض دشمنان لکه ابوجهل، ابولهب وغیره خو دوستان نه شول؟ (جواب) دا چه مراد دَ دشمن نه په دے ایت کښ دشمن دے دَ جهل دَ وجے نه عنادی دشمن مراد نه دے عداوةٌ کښ تنکیر دپاره دَ خاص نوع دے په قرینه دَ سورة عنکبوت ۴۶ چه دے کښ دَ عنادیانو استثناء ئے کړے دَ جدال بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ نه. او هر کله چه کتابیانو کښ ضدیان عنادیان ډیر دی په نسبت دَ نورو عوامو نو سورة عنکبوت کښ استثناء باندے تصریح اوکړه او په دے سورت کښ استثناء ذکر نه کړه (والله اعلم بالصواب).

۳۵:- په دے ایت کښ عظمت شان دَ دغه خصلت ذکر کوی یعنی دفاع په احسن طریقے سره دَ صبر تا کو او دَ جنتیانو خصلت دے. ذُوْ حَظٍّ عَظِیْمٍ دَ دے نه مراد

مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۗ اِنَّهٗ

دَ شیطان دَ طرف نه چوکه نو پناه غواړه په الله تعالیٰ سره یقیناً

هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۶﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ

هغه هر څه اوری په هر څه پوهه دے. او بعض دَ دلیلونو دَ توحید نه شپه

وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ۗ لَا تَسْجُدُوْا

او ورځ او نمر او سپوږمۍ دی سجدے مه کوئ

لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ

نمر ته او نه سپوږمۍ ته او سجده خاص کوئ الله تعالیٰ ته

الَّذِيْ خَلَقَهُنَّ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ

هغهٔ الله تعالیٰ چه پیدا کړے دی دا که چرے تاسو خاص هغه لره

جنّت دے۔ دَ دے نه معلومه شوه چه دعوت کوؤنکے حق ته په دا سے خصلتونو سره دَ الله تعالیٰ په نیز باندے دَ لوئے برخے خاوند دے، او جاهلان خلق دَ برخے خاوند هغه چا ته وائی چه لیونے او مجذوب وی او دا ناکاره عقیده ده۔

۳۶: په دے ایت کښ بل ادب ذکر کوی دَ پاره دَ داعی۔ وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ یعنی هر کله چه مخالفین سب و شتم کوی نو شیطان انسی یا جنّی تا ته وسوسه اوکړی چه ته هم ورته تحمّل اوکړه او جګړے ته دِ اماده کوی نَزْغٌ دَ نزغ فاعل یئے هم نزغ کرځولے دے دَ پاره دَ تاکید یا نزغ په معنیٰ دَ نازغ دے۔ او مِنَ الشَّيْطٰنِ کښ مِنْ بیانیه دے۔ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ دَ استعاذه بالله قرآن کښ په دوه حالتونو کښ امر دے اول په وخت دَ شورو کولو دَ قراءت دَ قرآن کښ لکه سورة نحل ۹۸ او دویم په وخت دَ غضب او غصّه کیدلو کښ لکه چه سورة اعراف ۲۰۰ کښ دی۔ سورة اعراف کښ انه سميع عليم نکره یئے ذکر کړیدی او په دے ایت کښ انه هو السميع العليم معرفه او ضمیر فصل یئے ذکر کړیدے وجه دا ده چه په دے سورت کښ دَ منکرینو ډیر ضد او عناد ذکر کړے شو نو دَ هغے دَ دفع کولو دَ پاره ډیر تاکیدی الفاظ پکار دی او سورة اعراف کښ دَ منکرینو ضد او عناد یئے نه دے ذکر کړے نو هلته تاکید ته ضرورت نیشته۔

تَعۡبُدُوۡنَ ﴿۳۷﴾ فَاِنِ اسۡتَكۡبَرُوۡا فَالَّذِيۡنَ

بندګي کوئ نو که چرے دوی لوئی کوی نو هغه کسان

عِنۡدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُوۡنَ لَهٗ بِالَّيۡلِ وَالنَّهَارِ

چه ستا دَ رب سره دی تسبیح وائی هغه لره دَ شپے او دَ ورځے

وَهُمۡ لَا يَسۡـَٔمُوۡنَ ﴿۳۸﴾ السجدة وَمِنۡ اٰيٰتِهِ

او دوی نه ستړے کیږی ۔ او بعض دَ دلیلونو دَ توحید نه دادی

۳۷:- په دے ایت کښ دلیل عقلی په توحید باندے ذکر کوی او اشاره ده چه داعی ګر چه غصه شی نو اعوذ بالله وئیلو نه روستو دِ دلیلونه پیش کوی وَمِنۡ اٰيٰتِهِ په دے کښ اشاره ده چه دلیلونه دَ توحید بے شماره دی الَّيۡلُ وَالنَّهَارُ دا مسبب دی او الشمس والقمر اسباب دی یعنی پیدا کوونکے دَ اسبابو او مسببٰاتو الله تعالیٰ دے. لَا تَسۡجُدُوۡا رد دے په هغه مشرکین باندے چه دَ نمر او سپوږمئ عبادتونه کوی لکه چه قوم دَ ابراهیم علیه السّلام وو دا رنګ بلقیس او قوم دَ هغے وو او حدیث کښ وارد دی چه دَ نمر دَ طلوع او غروب په وخت کښ عبادت کوونکی دَ شمس هغے ته سجدے لګوی۔ او دا هغه خلق دی چه دَ رڼا عبادت کوی نو دا په اصل کښ دَ مجوسیانو یوه ډله ده۔ الَّذِيۡ خَلَقَهُنَّ ضمیر راجع دے اللیل والنهار والشمس والقمر ته یا صرف شمس و قمر ته (سوال) چه په ماقبل مرجع کښ مؤنث یو دے چه شمس دے او درے مذکر دی نو پکار وو چه مذکر له ئے تغلیب ورکړے وے په مؤنث باندے؟ (جواب) په تانیث کښ اشاره ده دَ دوی ضعف او کمزورئے ته بل دا چه اکثر مشرکین عبادت دَ نمر ډیر کوی په نسبت دَ سپوږمئ، دَ هغے عبادت کوونکی لګ دی نو دَ دے وجے نه ضمیر دَ مؤنث ئے ذکر کړو۔ اِنۡ كُنۡتُمۡ اِيَّاهُ تَعۡبُدُوۡنَ یعنی مشرکان هم دعوے کوی چه مونږ دَ الله تعالیٰ عبادت کوو نو اشاره ئے او کړه چه عبادت په شرع کښ توحید دَ دے نو که بندګی دَ الله تعالیٰ په طریقه دَ توحید سره کول غواړئ نو غیرالله ته سجدے مه کوئ او په دے ایت کښ اشاره ده چه مشرکان ډیر بے عقله دی ځکه چه دلیلونه دَ توحید ئے معبودان ګرځولے دی۔

۳۸:- دا زجر دے په پرېخودلو دَ سجدے سره دَ وجے دَ استکبار نه پشان دَ ابلیس. بِالَّيۡلِ وَالنَّهَارِ مراد دَ دے نه دوام دے وَهُمۡ لَا يَسۡـَٔمُوۡنَ اشاره ده

أَنَّكَ تَرَى الْأَرْضَ خَاشِعَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا

چه ته وینې زمکه اُوچه نو کله چه اورَوو موږ

عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ ؕ إِنَّ الَّذِي

په هغې باندې اوبه تازه شي او بوګه شي یقیناً هغه ذات

أَحْيَاهَا لَمُحْيِ الْمَوْتَىٰ ؕ إِنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ

چه دا ئې تازه کړه خامخا ژوندي کوونکے دَ مړو دے یقیناً هغه په هر

شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ يُلْحِدُونَ

څیز باندې قدرت لری . یقیناً هغه کسان چه کږ لیچ کوی

فِي آيَاتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا ؕ أَفَمَنْ يُلْقَىٰ

په ایاتو زموږ کښ نه شي پټیدے زموږ نه ایا نو هغه څوک چه غورځولے کیږی

چه تسبیح ویل دَ ملائکو دَپاره امر کړځیدلے دے لکه انسان چه سا اخلی او په هغې باندې نه ستړے کیږی نو معلومه شوه چه دَ تسبیح سره ملائک نور کارونه هم په امر دَ الله تعالیٰ سره کولے شي تسبیح ویل دوی له دَ نورو کارونو نه منع کوی۔

۳۹:۔ دا بل دلیل عقلی دے او اشاره ده چه په باران سره په زمکه کښ انقلاب پیدا کیږی دارنګ په قرآن بیا نولو سره په خلقو کښ انقلاب پیدا کیږی .

خَاشِعَةً اوچه او شاړه او دوړو والا چه بوټی پکښ نه وی ۔ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ دا حالت مخکښ دَ بوټی راوتلو نه وی یعنی زمکه په وخت دَ بوټی راوتلو کښ او خوزیګی یعنی ځائے دَ راوتلو فراخه شي او دا زمکه او پړسیږی یعنی نرمه شي خوښنا په دے معنیٰ باندې په عبارت کښ تقدیم او تاخیر دے یا دا روستو دَ بوټی راوتلو نه صفتونه دَ بوټی دی زمکے ته ئې نسبت مجازیه دے یعنی ټیغ دَ بوټی په وخت دَ راوتلو کښ او خوزیګی او بیا پوره ته شي پره طرف ته او دارنګ په سورة ق ۵ کښ تیر شویدی ۔ إِنَّ الَّذِي أَحْيَاهَا دا استدلال دے دَ دے حالت نه په دوباره ژوند ثابتولو باندې او دارنګ دا تذکیر دَ قیامت دے یعنی هر کله چه انسان خپل فصل دَ زمکے اوینی نو هسے نه چه دَ دنیا دَ محبّت دَ وجے نه بعث بعد الموت هیر کړی۔

فِي النَّارِ خَيْرٌ أَمْ مَنْ يَأْتِي آمِنًا يَوْمَ

په اور کښې غورځول شوی غوره دے او که هغه څوک چه راځي په امن والا په ورځ

الْقِيَامَةِ ۚ اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ ۖ إِنَّهُ بِمَا

د قیامت عمل کوئ چه څه هم خوښه وی یقیناً الله تعالیٰ په هغه عملونو

تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٤٠﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا

چه کوئ تاسو لیدونکے دے. یقیناً هغه کسان چه کفر ئې کړے دے

بِالذِّكْرِ لَمَّا جَاءَهُمْ ۖ وَإِنَّهُ لَكِتَابٌ

په قرآن باندے هرکله چه راغے دوی ته (هلاک به شی) او یقیناً دا کتاب دے

عَزِيزٌ ﴿٤١﴾ لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ

عزتمند نه شی راتللے دهٔ ته باطل د مخکښې

سنڌ:. دا متعلق دے د لا تسمعوا لهذا القرآن سره یعنی الحاد په آیاتونو کښې په داسے طریقه کوی چه خلق ئې د اوریدلو نه منع کوی او تحریف او باطل تاویلونه کوی او مقابلے کوی نو دوی لره زجر او تخویف ورکوی په درے طریقو سره اوله طریقه لا یخفون علینا یعنی هر وخت الله تعالیٰ عالم دے او قادر دے د دوی په هلاکولو باندے.

دویمه طریقه أفمن یلقٰی الخ یعنی الحاد کوونکی به په اور د جهنم کښې پرېوځی غورځیږی او مؤمنان به د جهنم نه په امن وی نو آیا دوی دواړه ډلے یو شان دی؟ استفهام انکاری دے. او خیر ئې د دے وجے نه نقل کړو چه په قرآن کښې الحاد کوونکے ځان غوره ګڼړی.

دریمه طریقه اعملوا ما شئتم په دے آیت کښې اثبات د مشیت او ارادے دے د پاره د انسانانو که نیک وی یا بد.

۴۱ سنڌ:. دا هم زجر دے ملحدینو د قرآن ته سره د بیان د صداقت د قرآن نه په څلور صفتونو سره. إن الذين كفروا د دے خبر پټ دے د پاره د تعمیم د بد حالے د هغوی یعنی تباه دی. عذاب به ورکړے کیږی. بے عقله دی. او ر کښې به پرېوځی غورځیږی. عنادیان دی وغیره. عزیز د دے ډیرے معنی دی او هغه ټولے مراد دی. عزت مند دے په نبز د الله تعالیٰ. غالب دے په هر کتاب باندے.

يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ ۖ تَنْزِيلٌ مِّنْ حَكِيمٍ

دَ دهٔ نه او نه دَ روستو دَ دهٔ نه نازلول دَ دهٔ دَ طرف دَ حکمت والا

حَمِيدٍ ﴿۴۲﴾ مَا يُقَالُ لَكَ إِلَّا مَا قَدْ قِيلَ

ستائیلے شوی نه. نه ویلے کیږی تاته مګر هغه چه ویلے شویدی

لِلرُّسُلِ مِنْ قَبْلِكَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ لَذُو

رسولانو ته ستا نه مخکښ یقینًا ستا رب خامخامالک

مَغْفِرَةٍ وَذُو عِقَابٍ أَلِيمٍ ﴿۴۳﴾ وَلَوْ جَعَلْنَاهُ

دَ بخښنے دے او مالک دَ عذاب دردناک دے. اوکه چرے نازل کړے وے موږ

بے مثله بے نظیره دے. ګران دے یعنی خوک ئې مقابله نشی کولے.

لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ باطل نه مراد تغییر او تبدیل دے یا تکذیب دے یا شیطان دے.

مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ دوه طرفونه ئې ذکر کړه مراد تری هر طرف دے یعنی

دَ هیڅ جهت نه پکښ باطل (په دغه درے معانیو سره) نشی راتلے یا مراد دَ دے

نه تیر شوی واقعات او راتلونکے پیشګوئې دی او باطل نه مراد تکذیب دے

یا مراد دے نه مخکښ نازل کړے شوے کتابونه دی او روستو کتاب نازل کیدل

دی یعنی تیر شوے کتابونو کښ دَ دے قرآن تکذیب نیشته او روستو هم دَ دے

نه منسوخ کوونکے نشی راتلے او دا دلیل دے چه دا آخری کتاب دے چه په

آخری نبی باندے نازل شویدے. (سوال) په اوله معنٰی باندے سوال دا

واریدیګی چه ډیرو باطل پرستو خلقو دَ دے قرآن تکذیب کړے دے او

تحریف ئې پکښ کړیدے؟ (جواب) مراد دادے چه تکذیب او تحریف پکښ نه

چلیږی یعنی که خوک او کړی نو الله تعالٰی دَ هغوی په مقابله کښ دلسے اهلِ علم

پیدا کړی چه دَ هغے تردید او کړی لکه چه حدیث کښ وارد دی يَنْفُوْنَ عَنْهُ تَحْرِيفَ

الْغَالِينَ وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِينَ وَتَاوِيلَ الْجَاهِلِينَ.

۴۳ :- دا تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته روستو دَ ذکر دَ ملحدینو نه

او دَ آیت دوه تفسیرونه دی اول دا چه مَا قَدْ قِيلَ لِلرُّسُلِ نه مراد نسبت دَ

ساحر، کذاب، مجنون، ګمراه وغیره طعنونه کول دی. دویم دا چه مراد هغه

وحی دَ توحید ده چه مخکښ رسولانو ته رالیږلے شویوه نو په اوله معنٰی

کښ قِيلَ دَ خلقو دَ طرف نه دے او په دویمه معنی کښ رپاتے په بل مخ)

قُرْاٰنًا اَعْجَمِيًّا لَّقَالُوْا لَوْلَا فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ ؕ

دا قرآن په ژبه عجمی خامخا دوی به ویل چه ولے نه دی جُدا جُدا ایاتونه دده

ءَاَعْجَمِيٌّ وَّعَرَبِيٌّ ؕ قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ

او ایا کتاب عجمی دے او پیغمبر عربی دے. ته اوایه دا دَ

اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ ؕ وَالَّذِيْنَ

مؤمنانو دپاره هدایت او شفاء ده او هغه کسان

لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ

چه ایمان نه راوړی په غوږونو دَ هغوی کښ دردونوالے دے او دا قرآن

عَلَيْهِمْ عَمًى ؕ اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍۭ

په هغوی باندے حجت دے دغه کسان داسے دی لکه چه آواز ورکیدے شی دوئ ته دځائے

بَعِيْدٍ ﴿۴۴﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ

لرے نه. او یقینًا ورکړے دے موږ موسٰی علیه السّلام ته کتاب (تورات)

قِيلَ دَ الله تعالیٰ دَطرف نه دے. اِنَّ رَبَّكَ اه مستقل کلام دے تسلّی او بشارت دے مؤمنانو لره او تخویف دے منکرینو لره یا دا تفسیر دَما قبل دپاره دے یعنی بشارت وانذار دَ ټولو رسولانو وحی ده.

ﷺ :. دَ دے نه تر اخره پورے دریم باب دے په دے کښ جواب دَ دریمے شبهے دے بیا سبب دَ عذاب ئے ذکر کړے چه هغه اختلاف فی الکتاب دے بیا دلیل عقلی دے سره دَ تخویف اخروی نه بیا خلور زجرونه دی او اخر کښ اتم دلیل عقلی دے. په دے (ﷺ) کښ جواب دَ شبهے دَ مشرکانو دے هر کله چه دَ قرآن او دَ رسول صداقت ذکر شو نو منکرینو بل اعتراض اوکړو چه دا قرآن په عجمی ژبے سره ولے نه راوړے خو معلومیږی چه دا تا دَ ځان نه جوړ کړے دے نو جواب اوشو حاصل جواب دا دے چه اوس خو تاسو بوه شبهه کوئے او که په عجمی ژبے باندے نازل شوے وے نو بیا به تاسو دوه اعتراضونه کولے یو دا لَوْلَا فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ ځکه چه کوم تفصیل او وضاحت په لغتِ عربیه کښ دے هغسے په نورو لغتونو کښ نیشته دویم دا ءَاَعْجَمِيٌّ وَّعَرَبِيٌّ ایا کتاب عجمی دے او رسول عربی دے. فرق په مینځ دَ اعجمی او عجمی کښ دا دے اعجمی هغه

فَاخْتُلِفَ فِيْهِ ؕ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ

نو اختلاف کړے شویدے په هغې کښ او که چرے نه وے نیټه د عذاب چه مخکښ مقرر شوې ده ستا د

رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ؕ وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ

رب د طرف نه نو اوس به فیصله کړے شوے وے په مینځ د دوی کښ او یقیناً دوی خامخا په شک کښ دی

مِّنْهُ مُرِيْبٍ ﴿۴۵﴾ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ

د دے نه پوخ شک . چا چه عمل کړے وی برابر د سنت سره نو خپلے فائدے د پاره دے

وَمَنْ اَسَآءَ فَعَلَيْهَا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۴۶﴾

او چا چه بد عمل کړے وی نو ضرر به ئے په هغه باندے وی او نه دے ستا رب هیڅ ظلم کوونکے په بندګانو باندے .

دے چه هیڅ وضاحت نشی کولے برابره خبره ده که عربی وی او که غیر عربی وی او عجمی هغه دے چه د عربی نسب نه ئے وی اګر چه هغه هم کله فصیح و بلیغ وی پښتان د عربو. قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا الخ دا بیان د فوائدو د قرآن دے لیکن په شرط سره چه هغه انابت یعنی طلب د ایمان دے او هر کله چه دا شرط نه وی چه هغه مراد دے په لَا يُؤْمِنُوْنَ سره نو بیا د هغوی د پاره نقصان دے. عَمًى دا مصدر دے او مضاف ئے پټ دے یعنی ذُوْ عَمًى. اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ دا اشاره ده بل مثال د دوی ته یعنی دوی چه قرآن نه اوری نو مثال ئے د هغه سړی دے چه هغه ډیر لرے وی او خوک ورته آواز ونه کوی نو هغه ئے نه اوری او نه پو هیږی نو عبارت کښ تقدیر دے اولئك مثل الذین ینادون. بعض مفسرینو ویلے دی چه دا به په قیامت کښ وی چه د دوی د شرمنده کولو د پاره به دوی ته د لرے نه په ناکاره نومونو سره آواز ورکیدے شی نو بیا تقدیر د عبارت ته حاجت نیشته دے.

ف۴۵ :. دا تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته لکه چه ستا کتاب قرآن کښ د دے خلقو اختلاف دے نو دا رنګ په کتاب د موسٰی علیه السلام کښ اختلاف کړے شوے وو.

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ دا جواب د سوال دے هر کله چه قرآن حق دے او دا خلق ئے انکار کوی نو په دوی باندے عذاب ولے نه راځی حاصل د جواب دا دے چه د دوی عذاب الله تعالٰی په حکم تقدیری سره روستو کړے دے او دا احسان د الله تعالٰی دے.

لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ضمیر راجع دے تقدیر او قضاء ته یا راجع دے قرآن ته.

ف۴۶ :. دا ذکر د فریقینو دے په وخت د اختلاف او د شك کښ او هر یو حال ئے ذکر کړے دے. بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ دا صیغه د نسبت ده لکه حداد قصاب په دے کښ ذو مقدار دے یعنی ذو ظلم دا صیغه د مبالغے نه ده.

إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَمَا تَخْرُجُ مِن
خاص الله تعالىٰ ته گرځولے شي علم دَ قيامت او نه راوځي هيڅ

ثَمَرَاتٍ مِّنْ أَكْمَامِهَا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ
ميوے دَ خپلو كسوړونه او حمل نه اخلي هيڅ

أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ ۚ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ
زنانه او نه زيګوي حمل مګر په علم دَ الله تعالىٰ سره او په كومه ورځ چه اواز به وركړي دوی ته

أَيْنَ شُرَكَائِي قَالُوا آذَنَّاكَ مَا مِنَّا
خه شو شريكان زما (ستاسو په ګمان كښ) دوی به اُوائي خبر دركوو مونږ تاته نيشته زمونږ نه

مِن شَهِيدٍ ﴿٤٧﴾ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا
هيڅ ګواهي كوونكے (په شريک بانديے). او ورك به شي دَ دوی نه هغه (معبودان) چه

۴۷ :. دا دليل دے په نفي دَ علم غيب سره دَ غيرالله نه په دريے مثالونو سره يو ذكر دَ علم دَ قيامت دويم علم دَ پيدا كيدلو دَ ميوؤ دريم علم دَ حمل دَ زنانو او علم مستلزم دے قدرت لره نو دا رد دے په مشركانو بانديے چه ستاسو شركاء په دے كښ يو علم هم نه لري نو ولے دَ الله تعالىٰ سره شريک ګرځوئے او مناسبت دَ دے ايت دَ ماقبل سره په طريقه دَ علت دے دَ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ دَ پاره يعني ظلم خو هغه څوک كوي چه علم او قدرت ئے نقصاني وی او الله تعالىٰ په هر غيب بانديے عالم او قادر دے. إِلَيْهِ دائے دَ حصر دَ پاره مخكښ راوړيے دے. يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ يعني دَ هر چا نه چه تپوس اوكړيے شي دَ قيامت په باره كښ كه پيغمبر وی او كه جبريل وی او كه ولي وی نو هغه جواب كوي چه والله اعلم نو دغه علم الله تعالىٰ ته اوګرځوي ځكه چه پخپله پريے علم نه لري. أَكْمَامِهَا جمع دَ كُم ده يعني كسوړيے او پوستكي دَ ميوؤ چه اوسيړدلے شي نو ميوه تريے ښكاره شي. وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَائِي دا نتيجه ده دَ دے دليل چه قيامت كښ به مشركانو ته معلومه شي چه زمونږ شركاء عالم الغيب او قادر په نفع وضرر بانديے نه وو نو دَ دے وجے نه به دَ هغوی نه انكار اوكړي. شُرَكَائِي يعني چه ستاسو په ګمان كښ زما شريكان وو. آذَنَّاكَ ماضي ئے دَ تاكيد دَ پاره راوړيے ده مراد تريے نه اوس خبر وركول دی شَهِيدٍ شهادت كوونكے په وجود دَ شريک دَ الله تعالىٰ.

يَدْعُوْنَ مِنْ قَبْلُ وَظَنُّوْا مَا لَهُمْ

بلل به دوی مخکښ دَ دے ته او دوی به ګمان اوکړی چه نیشته دوی لره

مِّنْ مَّحِيْصٍ ﴿۴۸﴾ لَا يَسْـَٔمُ الْاِنْسَانُ مِنْ

دَ تختیدلو ځائے . نه ستړے کیږی انسان (بعض) دَ

دُعَآءِ الْخَيْرِ وَاِنْ مَّسَّهُ الشَّرُّ فَيَئُوْسٌ

دُعا غوختلو دَ خیر نه او که چرے اورسی هغه ته مصیبت نو نا اُمیدی کوونکے

قَنُوْطٌ ﴿۴۹﴾ وَلَئِنْ اَذَقْنٰهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِنْ بَعْدِ

تندے تریو هونکی وی. او که چرے اوڅکو مونږ انسان ته رحمت زمونږ روستو

ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُوْلَنَّ هٰذَا لِيْ وَمَآ اَظُنُّ

دَ تکلیف نه چه رسیدلے وی دهٔ ته خامخا وائی دے دا زما حق دے او ګمان نه کوم

۴۸:. دا یو علت دے دَ انکار دَ شرک نه یعنی دَ دوی معبودان به دَ دوی نه غائب شی یعنی امداد له به نشی راتللے که بزرګان وی نو جنت ته به لاړ شی او که ناکاره خلق وی نو هم به دَ خپلو عابدانو نه په دَوزخ کښې جدا شی او بل علت دا دے چه دَ تختے طرف ئے نیشته نو مجبورًا به دَ شرکاء نه انکار کوی. مَا لَهُمْ مَا حرف نفی دے منع کوونکے دَ فعل دَ ظنوا لره دَ عمل کولو نه.

۴۹:. دا اول زجر دے یعنی لکه چه په قیامت کښې دَ دے مشرکانو حال به بدل شی نو دا رنګ دَ دوی حال په دنیا کښې ګډوډ وؤ. یعنی انسان په حال دَ طلب دَ خیر کښې هر وخت زیاتے غواړی نه ستړے کیږی او نه مړیږی مالونه او اولاد مرتبے دَ دنیا غواړی. او په حال دَ تکلیف کښې یعنی که چرے یو دُعا دَ خیر او تمنا دَ دنیا ئے پوره نشی نو دَ الله تعالیٰ نه نا امیدی ښکاره کوی نو الله تعالیٰ سره مخالفت او دشمنی شورو کړی.

یَئُوْسٌ قَنُوْطٌ فرق دَ دے دواړو دا دے چه یَئُوْسٌ دَ زړه سره تعلق لری او قَنُوْطٌ دَ ظاهر سره تعلق لری او اول حال دَ کافر دے لکه په سوره یوسف ۸۷ کښې او دویم حال دَ ګمراه دے لکه په سورة حجر ۵۶ کښې.

السَّاعَةَ قَآئِمَةً ۙ وَّلَئِنْ رُّجِعْتُ اِلٰى رَبِّيْٓ

په قیامت باندے قائمیدونکے او که چرے اوګرځولے شوم زه خپل رب ته

اِنَّ لِيْ عِنْدَهٗ لَلْحُسْنٰى ۚ فَلَنُنَبِّئَنَّ

یقینًا مالره دَ هغه سره خامخا خوشحالی ده نو ضرور خبر به ورکړو مونږ

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِمَا عَمِلُوْا ۫ وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ

کافرانو ته په هغه عملونو چه دوی کړیدی او خامخا او به څکوؤ مونږ دوی ته

مِّنْ عَذَابٍ غَلِيْظٍ ﴿۵۰﴾ وَاِذَآ اَنْعَمْنَا

دَ عذاب ډیر سخت نه. او کله چه نعمت اوکړو مونږ

عَلَى الْاِنْسَانِ اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَاِذَا

په انسان باندے نو مخ واړوی او لرے کړی خپله ډډه او کله چه

مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوْ دُعَآءٍ عَرِيْضٍ ﴿۵۱﴾ قُلْ

اورسیږی دهٔ ته مصیبت نو خاوند دَ دُعا پلنے وی. ته اُوایه

ف۵۰ :- دا دویم زجر دے په ناشکرئے کولو دَ نعمت دَ الله تعالیٰ په درے طریقو سره اول داچه لَيَقُوْلَنَّ هٰذَا لِيْ یعنی دا زما حق دے په الله تعالیٰ باندے بسبب دَ علم او دَ عمل زما یعنی دَ الله تعالیٰ په ما باندے هیڅ احسان نیشته دے یا مراد دا دے چه ما نذرونه دَ غیرالله ډیر ورکړیدی او دَ هغوی دَ قبرونو م خدمتونه کړیدی نو دَ هغوی دَ وجے نه زما نه دا تکلیف لرے کیدل زما حق دے. دویم وَمَآ اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً - دریم وَلَئِنْ رُّجِعْتُ اِلٰى رَبِّيْٓ الخ یعنی اول خو دَ قیامت نه انکار کوی او بیا وائی چه پرواه م نیشته چه ماله په دنیا کښ زما دَ حق دَ وجے نعمتونه ئے راکړے دی نو دا رنګ په آخرت کښ زما حق دے چه ماله به جنّت او خوشحالی راکوی. بیا دوه جملو سره دَ دوی تخویف ذکر کوی جمله اول کښ مطلب دا دے چه دَ دوی دَ مشرکانه عملو نو حقیقت باندے به ئے خبر کړم چه دا برباد دی او دویمه جمله کښ دَ هغه ناکاره اعمالو او اقوالو سخته سزا به وی.

ف۵۱ :- دا دریم زجر دے په ګمراه کارونو دَ انسان روستو دَ ذکر دَ اقوالو دَ دهٔ نه. اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ یعنی دَ حق منلو نه مخ اوګرځوی او لرے لرے ترینه ګرځی دَ تکبر دَ وجے نه یا دَ دے وجے نه چه دَ حق پرستو سره بدنام نشی.

أَرَءَيْتُمْ إِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ثُمَّ

خبر راکړئ ماته که چرے وی دا قرآن دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه بیا

كَفَرْتُمْ بِهٖ مَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ هُوَ فِيْ

کفر کوئ تاسو په دے باندے نو څوک لوئ ګمراه دے دَ هغه چا نه چه هغه په

شِقَاقٍۢ بَعِيْدٍ ﴿۵۲﴾ سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا فِي الْاٰفَاقِ

دشمنئ لرے کښ وی ۔ زر دے چه اوبه ښایو مونږ دوی ته دلیلونه خپل په غاړو دَ دُنیا کښ

وَفِيْ أَنْفُسِهِمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ

او په نفسونو دَ دوی کښ تر دے چه ښه ښکاره به شی دوی ته چه دا

فَذُوْ دُعَآءٍ عَرِيْضٍ هر کله چه عرض (پلنوالے) ئې ذکر کړو نو معلومه شوه چه طول به ئې ډیر وی ځکه چه دَ کوم څیز عرض وی نو طول ئې دَ هغه نه ډیر وی او مراد دَ دے نه کثرت دے ۔ عَرِيْضٍ کښ اشاره ده چه دغه یو حاجت بار بار ذکر کوی نور حاجتونه دَ الله تعالیٰ نه نه طلب کوی نو دَ یو څیز تکرار ته عرض ویلے کیږی او دَ ډیرو حاجتونو ذکر کولو ته طول ویلے کیږی او حاصل دَ دے ایت دا دے چه مشرک انسان په وخت دَ فراخ او دَ نعمتونو کښ خپل رب نه پیژنی او په وخت دَ سختئ کښ الله تعالیٰ ته اوازونه کوی او دا مضمون سورة یونس او سورة نحل او سورة اسراء او سورة عنکبوت او سورة روم او لقمان کښ تیر شوید ے۔ په ۴۹ کښ دَ یو نوع انسان ذکر وو چه هغه مرتد دے او دلته دَ بل نوع ذکر دے چه هغه عام مشرک دے ۔

۵۲ :۔ دا څلورم زجر دے په انکار دَ قرآن سره ۔ إِنْ كَانَ دا په معنیٰ دَ إِذَا دے لیکن اَنْ ئې ذکر کړے دے دَپاره دَ ارخاء عنان یعنی چه په وخت دَ دعوت او دَ مناظرے کښ مخاطب له دَ فکر کولو موقع ورکړی او واګے ورته سست کړی مَنْ أَضَلُّ دا په ځائے دَ جزاء دَ ان شرطیه کښ دے یعنی جزاء په حقیقت کښ پټه ده هغه داده الستم اضل الناس ۔

فِيْ شِقَاقٍۢ بَعِيْدٍ انکار کول دَ قرآن نه سره دَ علم نه چه دا حق دے دے ته شقاق ویلے کیږی ۔

الْحَقُّ ؕ اَوَلَمْ یَکْفِ بِرَبِّکَ اَنَّهٗ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ

حق دے ایا نه دے پوره رب ستا په دے صفت سره) چه هغه په هر څیز بانـدے

شَهِیْدٌ ﴿۵۳﴾ اَلَآ اِنَّهُمْ فِیْ مِرْیَةٍ مِّنْ لِّقَآءِ

حاضر ناظر دے . خبر شئ یقینًا دوی په شک کښ دی دَ پیښے

رَبِّهِمْ ؕ اَلَآ اِنَّهٗ بِکُلِّ شَیْءٍ مُّحِیْطٌ ﴿۵۴﴾

دَ رب خپل نه خبر شئ یقینًا هغه هر څیز لره راګیروونکے دے .

۵۳:- روستو دَ زجرونو نه ترغیب دے حق طرف ته او مراد دَ ایات نه دلیلونه عقلیه دی او هغه دوه قسمونه دی یو دلیلونه آفاقی دی او دویم انفسی دے یا داتخویف دے او مراد دَ ایات نه واقعات دَ قومونو مخکنو دی چه په مختلفو اطرافو دَ زمکه کښ دَ هغوی کهنډرات موجود دی او فی انفسهم نه مراد مرضونه او تکلیفونه بدنیه دی اِنَّهٗ ضمیر قرآن یا توحید یا رسول ته راجع دے .

اَوَلَمْ یَکْفِ بِرَبِّکَ دا اشاره ده دلیل وحی ته چه دَ الله تعالیٰ شهادت په حق بانـدے کافی دے نورو دلیلونو ته ضرورت نیشته که دا خلق پوهیـدلے . اِنَّهٗ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ شَهِیْدٌ دا بدل دے دَ بربک نه یعنی دَ رب شهادت په توحید او په صداقت دَ رسول او دَ قرآن بانـدے کافی شهادت دے لکه کفٰی بالله شهیدا . یا لام تعلیله مقدر دے یعنی رب ستا کافی دے دَ پاره دَ معبودیت او دَ حاجت روائی او دَ مصیبت نه دَ بچ کولو ځکه چه هغه په هر څیز بانـدے حاضر ناظر دے او غیب دان دے او دا آخری دلیل عقلی دے په سورت کښ .

۵۴:- روستو دَ اثبات دَ حق نه په دلیلونو سره په منکرینو بانـدے زجر دے او په لفظ دَ اَلَآ سره یئ ذکر کوی . اشاره ده چه دَ دے منکرینو شک کول ښکاره دی او دارنګ احاطه دَ الله تعالیٰ په هر څیز بانـدے ښکاره ده او محیط کښ اشاره ده وعید او عذاب ته دَ پاره دَ منکرینو او احاطه په قدرت او علم سره هم مراد ده ـ

ختم شو تفسیر دَ حٰمٓ السجدة په فضل دَ الله تعالیٰ سره۔

سورة الشورى ۴۲ مکیة ۶۲ | بسم الله الرحمن الرحیم | آیاتها ۵۳ رکوعاتها ۵

حٰمٓ ۞ عٓسٓقٓ ۞ كَذٰلِكَ يُوحِيٓ إِلَيْكَ

الله تعالیٰ پوهه دے په مراد د دے پاندے. دغه شان وحی رالیږی تا ته

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

## سورة شوریٰ اوبل نوم ئے سورة حٰمٓ عٓسٓقٓ دے

**ربط** د دے سورت د ماقبل سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه په تیرشوی سورت کښې نهه صفات وو د قرآن نو په دے سورت کښې نهه صفات دی د قرآن والو۔ دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې زجرونه معرضینو د قرآن ته او په دے سورت کښې دعوت دے فیصلے کولو ته په قرآن باندے۔ دریمه وجه دا ده چه سورة سجده کښې ترغیب وو د دعوت الی الله ته او په دے سورت کښې د دعوت کوونکی لس ذمه وارے ذکرکوی۔ څلورمه وجه دا ده چه په مخکنی سورت کښې رد وو په دریے اقسامو د شرک باندے نو په دے سورت کښې رد دے په شرک فی الولایة والتصرف باندے.

**دعویٰ د دے سورت** رد د شرک فی الولایة دے او د ولایت دوه معنے دی تصرف او اختیار په کائناتو کښې دویمه معنیٰ اختیار د تشریع ربدنی شرع جوړول) او دا دعویٰ په لفظ د ولایت او په مرادف د هغے سره نفیًا او اثباتًا په دے آیاتونو کښې ده ۴ ۹ ۱۱ ۱۲ ۱۹ ۲۸ ۲۹ ۳۲ ۴۹ ۵۳ دا اثباتًا دی او په ۶ ۸ ۹ ۳۱ ۴۴ ۴۶ کښې انفیًا دی۔ او په لفظ د حکم او تشریع او مرادف سره اثباتًا په ۳ ۷ ۱۰ ۱۳ ۱۷ ۴۷ ۵۱ ۵۲ کښې او نفیًا ۱۶ ۲۱ ۳۵ کښې. او دا رنګ په دے سورت کښې جوابونه دی د دریے شبهاتو ته.

**خلاصه د سورت** دا سورت تقسیم دے دریے بابونو ته اول باب تر ۱۵ پورے دے په دے باب کښې جواب دا دے شبهے دے په تاکید د امر د وحی سره او اثبات د ولایت دے الله تعالیٰ لره او اثبات د امن د عالم دے په توحید سره۔ بیا نفی د ولایت ده د غیرالله نه او ترغیب دے قرآن ته بیا هم نفی د ولایت ده د غیرالله تعالیٰ نه بیا جواب دے د دویمے شبهے او دوه عقلی دلیلونه دی د پاره د اثبات د ولایت لله تعالیٰ او اثبات د تشریع الٰهی دے او بیا جواب د دریمے شبهے دے.

وَإِلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكَ ۙ اللَّهُ الْعَزِيزُ

او هغه کسانو ته چه ستا نه مخکښ دی الله تعالیٰ چه زورآور

الْحَكِيمُ ﴿٣﴾ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۖ

او حکمت والا دے ۔ خاص دَ هغه په واک کښ دی هغه څه چه په اسمانونو کښ دی او هغه څه چه په زمکه کښ دی

وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ ﴿٤﴾ تَكَادُ السَّمَاوَاتُ

او هغه پورته او لوئے شان والا دے ۔ نزدے دی اسمانونه

# تفسیر

سا ۔ ۲ :۔ دا مقطعات دی په شان دَ کھٰیٰعص ، هغه هم خماسی وو او دا هم ۔ لیکن کھٰیٰعص پیوست لیکلے شوے دے او دا دَ ډیرو قاریانو په نیز جدا جدا دے یعنی حٰمٓ ، عسق ۔ دَ دے یو وجه دا ده چه هغه یو ایت دے او دا دوه ایاتونه دی ۔ دویمه وجه دا ده چه دَ دے سورت نور امثال مخکښ او روستو کښ حٰمٓ دے نو په دے کښ یې هم حٰم جدا اولیکلو ۔ دریمه وجه دا ده چه په کھٰیٰعص کښ اتفاق دے چه هغه حروف تهجی مقطعات دی او هرچه دا دے نو بعض اهلِ علمو دا دَ حروفونه شمارلے نه دی او حٰم یې فعل ګرځولے دے ۔ او دَ دے مفرداتو په مرکب ماخذونو مفسرینو ډیر اقوال نقل کړے دی غوره قول په دے کښ هم هغه دے چه په نورو مقطعاتو کښ ذکر شویدے ۔

س ۳ :۔ په دے ایت کښ ترغیب دے قرآن ته چه دا وحی ده دَ الله تعالیٰ پشان دَ وحی دَ انبیاء سابقینو او په دے کښ جواب دَ اولے شبے دے ۔ شبهه دَ منکرینو دا وه چه دے پیغمبر دَ داسے څیز دعویٰ کړے وه چه دَ دۀ نه پروانده ئے هیڅوک نه ده کړے مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ ۔ اوس هم چه څوک دعوت توحید ته ورکوی نو په هغه باندے هم داسے اعتراض کیږی ۔ حاصل جواب دا دے چه دا نوے څیز او نوے خبره نه ده بلکه مخکښ انبیاء علیهم السّلام ته هم داسے راغلے وه کَذَٰلِكَ اشاره ده هغه ایاتونو او سورتونو ته چه دَ دے سورت نه مخکښ نازل شویدی او یوحی په معنیٰ دَ ماضی دے ځکه چه مِن قَبْلِكَ ورپسے ذکر دے لیکن صیغه دَ مضارع ذکر کړه ځکه چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په ژوند کښ هغه ته وحی جاری وه ۔ بعض مفسرینو دَ ذَٰلِكَ مشار الیه حٰم عسق ګرځولے دے ۔

س ۴ :۔ په دے ایت کښ اثبات دَ تصرف او ولایت دے دَ الله تعالیٰ دَ پاره او رد

يَتَفَطَّرْنَ مِنْ فَوْقِهِنَّ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ

چه اوے چوی د بره طرف نه او ملائک تسبیح وائی

بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ فِي الْاَرْضِ ۗ

سره د حمد د رب خپل نه او بخنه غواړی هغه چالره چه په زمکه کښ دی

اَلَآ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ⑤

خبر شئ یقیناً الله تعالیٰ هغه بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔

د شرک فی التصرف دے او دا د هغه وحی خلاصه ده چه مخکښ ایت کښ کومه ذکر شوه نو د توله وحی حاصل توحید دے۔

ف :- په دے ایت کښ قباحت د شرک ذکر کوی چه هغه سبب د خرابے د عالم دے او عظمتِ شان د توحید چه هغه سبب د امن د دُنیا دے۔ مِنْ فَوْقِهِنَّ مِنْ د پاره د ابتداء دے یعنی دا انفطار په شوروشی د هر هغه اسمان نه چه اوچت دے په بل اسمان باندے نو ضمیر راجع دے اسمانونو ته یا ضمیر راجع دے زمکو ته یا راجع دے جماعتونو د مشرکینو ته او علت د انفطار ذکر دے په سورة مریم ۹۱ کښ۔ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ دا جواب د سوال دے چه هر کله سبب د انفطار موجود دے نو ولے انفطار نه دے واقع شوے حاصل جواب دا دے چه مانع د دے نه تسبیح او حمد او استغفار دے یعنی ذکر د الله تعالیٰ په توحید سره او هر کله چه صرف د اسمانونو ذکر شوے دے نو د هغے او سیدونکی صرف ملائک دی نو د دے وجے نه د ملائکو تسبیح ئے خاص ذکر کړه نو اشاره ده چه د زمکے د انشقاق نه د بچ کیدلو د پاره د انسانانو مؤحدینو ذکر د توحید دے او دیته یو حدیث کښ اشاره ده چه " لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى لَا يُقَالَ فِي الْاَرْضِ اللّٰهُ اللّٰهُ " یعنی قیامت به هله قائم کیږی چه د زمکے نه توحید د الله تعالیٰ ختم شی۔ لِمَنْ فِي الْاَرْضِ د دے نه مراد صرف مؤمنان دی لکه په سورة مؤمن ۷ کښ تیر شویدی لیکن هر کله چه بقا او امن د زمکے په سبب د مؤمنانو دے نو ګویا که زمکے والا صرف دوی دی یعنی ذکر د عام دے او مراد نرینه خاص دے یا مراد استغفار نه تاخیر د عذاب دے۔ اَلَآ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ دا اشاره ده استجابت د استغفار د ملائکو ته چه الله تعالیٰ ئے قبلوی په مغفرت سره د رحمت نه۔ او بعضو اهلِ لطائف ویلے دی چه د دے ایت په اول کښ ذکر د هیبت او د رعب دے او په اخر کښ ذکر د رحمت او د لطف دے۔

وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ اللَّهُ

او هغه کسان چه نیولی دی سوا د الله تعالیٰ نه مدد ګاران الله تعالیٰ

حَفِيظٌ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ

ساتنه کوونکے د دوی دے او ته نه یئے په دوی باندے

بِوَكِيلٍ ﴿٦﴾ وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ

ذمه وار . او د غه شان وحی کړیده مونږ تاته

قُرْآنًا عَرَبِيًّا لِتُنْذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ وَمَنْ

قرآن د عربے ژبے دے دے د پاره چه ویره ورکړے اصل د کلو ته او

حَوْلَهَا وَتُنْذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ لَا رَيْبَ فِيهِ ۚ

چاپیره د هغے نه او اوېروے خاتولره د ورځ د جمع کیدلو نه چه شک نیشته په هغے کښ

فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيقٌ فِي السَّعِيرِ ﴿٧﴾

یو ډله به په جنت کښ وی او بله ډله به په بل شوی اور کښ وی۔

ف ۶:۔ په دے ایت کښ زجر دے په شرک فی الولایته باندے او تسلی ده رسول الله صلی علیه وسلم ته چه الله تعالیٰ د دوی د حالاتو نه خبر دے که توفیق د توبے ورکوی او که نه ورکوی لیکن په تا باندے هیڅ ذمه واری نیشته۔ اَوْلِيَاءَ مراد د دے نه اختیارمند او واکدار د نفع وضرر دی او دارنګ اختیارمند د احکامو شرعیو ګنړل۔

ف ۷:۔ داهم تسلی ده چه ته وکیل نه یئے لیکن انذار کوونکے یئے په وحی سره او په د کښ صداقت د قرآن دے چه په دے کښ احکام شرعیه شته نورو اولیاؤ ته ضرورت نیشته۔ وَمَنْ حَوْلَهَا مراد د دے نه ټوله دُنیا ده دادلیل دے چه اخري نبی د ټولے دنیا د پاره پیغمبر دے نو د هغه نه روستو بل پیغمبر جوړیدلو ته ضرورت نیشته۔ وَتُنْذِرَ اول انذار نه مراد توحید ته دعوت دے او دویم انذار سره مراد د قیامت اثبات دے۔ فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ یعنی د انذار نه روستو به بعض خلق ایمان راوړی او بعض به انکار کوی او دارنګ د جمع کولو نه روستو به تقسیم شی جنت او جهنم ته یعنی همیشه به په یو ځائے کښ جمع نه وی۔

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَهُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً

او که چیرے غوښتے الله تعالیٰ نو گرځولے به یې دو دوی یوه ډله

وَّلٰكِنْ يُّدْخِلُ مَنْ يَّشَآءُ فِيْ رَحْمَتِهٖ ط

لیکن داخلوی چا لره چه اوغواړی په رحمت خپل کښ

وَالظّٰلِمُوْنَ مَا لَهُمْ مِّنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۸﴾

او ظالمان خلق نیشته دوی لره هیڅوک بچ کوونکے او نه مددګار۔

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ ج فَاللّٰهُ

آیا نیولے دی دوی سوا د الله تعالیٰ نه مددګاران نو الله تعالیٰ خاص

هُوَ الْوَلِيُّ وَهُوَ يُحْيِ الْمَوْتٰى ز وَهُوَ عَلٰى

هغه مددګار دے او هغه به ژوندی کوی مړی او هغه په

كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۹﴾ ع وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ

هر څیز باندے قدرت والا دے۔ او هغه چه اختلاف کوئے تاسو په هغے کښ

ع ۲ / ۱

ف ۸:۔ دا جواب دَ سوال دے چه هر کله قران پوره هدایت دے او نبی صلی الله علیه وسلم کامل انذار کوونکے دے نو دا خلق ټول ولے ایمان نه راوړی حاصل جواب دادے چه اختیار دَ هدایت دَ الله تعالیٰ سره دے۔ وَالظّٰلِمُوْنَ په دے کښ اشاره ده سبب ته چه کوم خلق یئے دَ هدایت نه محروم کړځولے دی دَ هغے سبب ظلم او عناد دَ هغه خلقو دے۔

ف ۹:۔ دا هم زجر دے په شرک فی الولایة باندے په اوله جمله کښ او حصر دَ ولایت دے دَ الله تعالیٰ دَپاره په دویمه جمله کښ او دا متعلق دے دَ "مَا لَهُمْ مِّنْ وَّلِيٍّ" سره چه په مخکښ ایت کښ ذکر شوید ے۔ فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِيُّ حرف دَ فَاءِ دلالت کوی په شرط مقدر باندے که چیرے دوی ولی برحق غواړی نو صرف الله تعالیٰ دے وَهُوَ يُحْيِ الْمَوْتٰى دا دلیل دَ ما قبل دے یعنی عجیبه لوئے تصرف چه بعث بعد الموت دے او قدرت په هر څیز باندے دا دَ الله تعالیٰ صفت دے دا صفتونه دَ دوی په اولیاؤ کښ نیشته نو دَ الله تعالیٰ سره شریک نشی کیدے۔

مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ

چه هر څه دي نو فیصله دَ هغې (راګرځوئ) الله تعالیٰ ته دغه ذات الله تعالیٰ

رَبِّي عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ ⑩

رب زما دے په هغه باندے ما ګان سپارلے دے او خاص هغه ته رجوع کوم۔

فَاطِرُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ جَعَلَ لَكُم مِّنْ

اول پیدا کوونکے دَ اسمانونو او دَ زمکے دے جوړ کړیدی تاسو لره

أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَمِنَ الْأَنْعَامِ أَزْوَاجًا

ستاسو دَ جنس نه جوړے او دَ څاروو نه هم جوړے

سا:۔ په دے کښ رد دے په شرک فی التحکیم باندے او عطف دے په رد دَ شرک فی الولایة باندے چه په مخکښ ایت کښ وو او دا جواب دے دَ دویمے شبهے هغه داده چه منکرین وائي چه دا ته چه کومے مسئلے دَ توحید کوے دا زمونږ دَ کتابونو نه مخالف دی زمونږ کتابونو کښ خو دَ شرک دَ جواز دَپاره ډیر جزئیات دی، دا اعتراض به یهود او نصاری په نبی صلی الله علیه وسلم باندے کوو او مشرکینِ عرب ته به یې خودلو او اوس هم باطل پرست خلق دا اعتراض کوی حاصل جواب دادے چه دَ تمامو اختلافاتو فیصله به په کتاب دَ الله تعالیٰ او په سنّت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره کوو۔ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ نیشاپوری په تفسیر کښ لیکلي دي چه دا حکم ټول امت ته شامل دے تر قیامته پورے یعنی (تحاکموا الی الله ورسوله) فیصلے الله تعالیٰ او دَ هغه رسول ته پیش کوئ او قرطبی وائي چه امور او احکام شرعیه اغستلے کیږی ټول دَ بیان دَ الله تعالیٰ نه۔ ایت کښ اشاره ده رد دَ تقلید باطل ته یعنی چه څوک دَ بو سړی یا دَ یو کتاب خبره کتاب دَ الله تعالیٰ او سنت دَ رسول ته نه پیش کوی او هسے بے دلیله یې منی او چه دلیل ورته ښکاره شی نو بیا هم هغه خبره نه پریږدی۔

ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبِّي دا علت دَ ماقبل دے په درے طریقو سره اوله داچه فیصله په الله تعالیٰ دَ دے وجے نه پیش کوو چه هغه زمونږ رب دے دویمه طریقه داچه توکل په ټولو امورو کښ په الله تعالیٰ باندے دے نو په احکامو کښ هم دَ هغه په فیصله باندے اعتماد دے دریمه طریقه داچه په هر وخت او کار کښ الله تعالیٰ ته زمونږ رجوع ده نو په هر حکم کښ به ضرور دَ هغه کتاب ته رجوع کوو۔

يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ ۚ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ۖ

خوره دی تاسو لره په دے انتظام کښ نیشته دَ هغه پشان هیڅ خیز

وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴿١١﴾ لَهُ مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ

او هغه هر څه اوری هر څه وینی - خاص هغه لره کنجیانے دَ اسمانونو

وَالْأَرْضِ ۖ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ

او دَ زمکے دی فراخوی روزی چه چا لره اوغواړی

وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٢﴾

او تنګوی یقیناً هغه په هر خیز بانده عالم دے .

ملا ۱۱ ملا ۱۲ :- دا عقلی دلیلونه دی په رد دَ شرک فی الولایة والحکم بانده په لس جملو سره اول ایت کښ شپږ جملے دی او په دویم کښ څلور جملے دی حاصل ئے دادے چه تصرف کوؤنکے په پیدائش دَ اسمانونو او زمکے او دَ ازواجو په انسانانو او څاروؤ کښ صرف الله تعالیٰ دے او بغیر دَ حاجت نه اسبابو ته او اختیار مَن دَ خزانو او دَ رزق په فراخولو او تنګولو سره او په هر خیز بانده علم لرونکے صرف الله تعالیٰ دے نو دَ هغهٔ سره په ولایت او حکم کښ شریک مه جوړوئے.
يَذْرَؤُكُمْ دا فائده دَ تزویج (نکاح کولو) ذکر کوی چه افزائش دَ نسل دے دا دلیل دے چه هر هغه منصوبه چه په هغے کښ نسل کشی کیږی دَ حکمت دَ تزویج نه مخالفت کول دی او دا نا جائز ده . فِيهِ ضمیر جعل مصدر ته راجع دے مراد ترینه دا تدبیر دَ زوجیت دے . لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ په دے کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ په دے تصرفاتو کښ اسبابو ته محتاج نه دے پشان دَ مخلوق او دا رنګ په مخلوق کښ هیڅوک دَ الله تعالیٰ سره په تصرفاتو دَ الوهیت کښ مشابه او مماثل نشی کیدے نو په دے جمله کښ نفی ده دَ تشبیه دَ الله تعالیٰ دَ مخلوق سره او نفی ده دَ اشراک دَ مخلوق دَ الله تعالیٰ سره او دا پوره مقصد دَ توحید دے . دَ دے وجے نه قرطبی دَ بعض علماؤ نه نقل کړیدی چه توحید اثبات دَ داسے ذات دے چه نه دے مشابه دَ نورو ذواتو سره او نه خالی دے دَ صفاتو نه او دَ واسطی نه ئے نقل کړیدی چه نیشته پشان دَ ذات دَ الله تعالیٰ بل ذات او نیشته پشان دَ نوموتو دَ هغه دَ بل چا نوم او نیشته پشان دَ فعل دَ هغه هیڅ فعل او نیشته پشان دَ صفت دَ هغه دَ بل چا صفت مګر که وی نو صرف موافقتِ لفظیه به وی او پاک دے رب زمونږ (مخ)

شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا

(مشکاره) مقرر کړیں ے تاسو لره د دین نه هغه چه ېوخ حکم ئے کړې وو په هغې سره نوح علیه السلام ته

وَالَّذِىْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ

او هغه چه وحی کړے ده موږ تاته او هغه چه ېوخ حکم کړے وو موږ په هغې سره

ذات دَ الله تعالیٰ دَ صفاتِ حادثه نه لکه چه دَ حادث دَ پاره صفتِ قدیمه محال دے او دا عقیده دَ اهل حق والسنة والجماعة ده.
معلومه شوه چه دا آیت رد دے په مشبّهو او مجسّمو باندے چه هغوی دَ الله تعالیٰ دَ پاره صفات دَ لاس او سترګے او پورته والے او په عرش باندے کیناستل وغیره ثابته وی او وائی چه دا صفتونه بالکل دَ مخلوق دَ صفتونو پشان دی او څوک ورله دَ دے تشبیه سره جسم هم دَ مخلوق پشان ثابته وی او دا باطله عقیده ده. او که څوک دَ الله تعالیٰ دَ دے صفتونو نه انکار کوی په طریقه دَ تاویل جهمیه او منکرین صفات نو هغه هم صریح ګمراه دے. صحیح مذاهب دَ سلف صالحین دے چه دَ الله تعالیٰ دَ پاره هغه صفتونه ثابتوی چه الله تعالیٰ ځان له په قرآن کریم کښ او نبی صلی الله علیه وسلم په احادیث صحیحه کښ هغه له ثابت کړے دی بغیر دَ تمثیل او تشبیه نه دَ مخلوق سره او بغیر دَ تاویل نه یعنی دَ هغې ظاهری حقیقی معانی مراد دی چه دَ ید معنیٰ لاس دَ عین معنیٰ سترګه ده او کیفیت دَ هغې موږ ته معلوم نه دے او تپوس دَ کیفیت دَ هغې بدعت دے. (سوال) مقصد خو دا دے چه دَ الله تعالیٰ مثل نیشته او دَ دے جملے معنیٰ دا ده چه دَ الله تعالیٰ دَ مثل مثل نیشته یعنی مثل ئے شته؟ (جواب) په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه ک زیات دَ پاره دَ تاکید دے یعنی دَ الله تعالیٰ مشابه نه په حرف سره ذکر کیدے شی او نه په اسم سره (حرف کاف او لفظ دَ مثل) دویمه وجه دا ده چه مثل په معنیٰ دَ ذات سره دے دریمه وجه دا ده چه مثل په معنیٰ دَ صفت سره دے څلورمه وجه دا ده چه په دے جملے سره نفی دَ مثل په طریقه دَ استدلال سره ده حاصل ئے دا دے که فرض کړے شی چه دَ الله تعالیٰ مثل شته نو الله تعالیٰ به دَ هغه مثل وی او قطعی فیصله دا ده (په دے جمله کښ) چه دَ الله دَ مثل مثل نیشته نو لازمًا معلومه شوه چه دَ هغه مثل خو هډو شته دے نه. لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ مقالید کنجیانے دی لیکن ظاهره خبره ده چه مالک دَ کنجیانو مالک دَ خزانو وی نو مراد تری نه کنجیانے دَ خزانو دی دا رنګ سورة زمر ۶۳ کښ تیر شوے دی.

إِبْرٰهِيمَ وَمُوسٰى وَعِيسٰى أَنْ أَقِيمُوا

ابراهیم او موسیٰ او عیسیٰ علیهم السّلام ته چه کلک او چلوئ

الدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ ۚ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ

دین لره او دلے مه جوړوئ په دے کښ گران دے په مشرکانو باندے

مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ ۚ اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ

هغه دین چه ته بلنه کوے دَ دوی هغې ته الله تعالیٰ راکاگی دین ته هغه چا لره

مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ يُنِيبُ ﴿١٣﴾

چه ا دغواړی او هدایت ورکوی دے ته هغه چالره چه حق ته ورګرځی .

<u>س۱۳</u> :- په دے کښ دلیل وحی دے په رد دَ شرک فی الولایۃ والحکم باندے یعنی اختیار دَ تشریع دَ احکامو صرف دَ الله تعالیٰ سره دے او دا متعلق دے دَ فحکمه الے الله سره او دا رنګ توحید شرع دَ الله تعالیٰ ده په ټولو امتونو کښ نو دَ هغې خلاف مه کوئ دا دلیل دے چه شارع دَ احکامو صرف الله تعالیٰ دے او انبیاء علیهم السّلام دَ شرع بیان کوؤنکی دی. شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّينِ مِنْ بیان دے دَ مَا روستنی دَپاره یعنی دین دَ سابقینو انبیاء علیهم السلامو ستاسو دَپاره الله تعالیٰ لاړ مقرر کړے ده په دے کښ اشاره ده چه زمونږ په دین کښ په ذریعه دَ قرآن او حدایث سره وضاحت او ظهور دَ مخکنو په نسبت سره ډیر دے دَ دے وجې نه زمونږ ملّت ته الملة البیضاء لیلها کنهارها (الحدیث) ویلے شوے دے مَا وَصّٰى بِهٖ نُوحًا اشاره ده چه اول تشریعی پیغمبر نوح علیه السّلام وو یعنی چه توحید او نور احکام شرعیه ئے راوړے دی سره دَ مقابلے کولو نه دَ مخالفینو سره او په حدیث دَ شفاعت کښ هم راغلی دی چه نوح علیه السّلام ته به په قیامت کښ دَ شفاعت طلبګاران وائی أَنْتَ أَوَّلُ رُسُولٍ بَعَثَهُ اللهُ إِلَى الْأَرْضِ او ادم علیه السّلام خو اول نبی دے لیکن په هغه وخت کښ مخالفین دَ توحید او دَ شرع موجود نه وو. وَالَّذِىٓ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ دا عطف دے په لفظ دَ مَا باندے. دین دَ نوح علیه السّلام ئے اول ذکر کړو اشاره ده چه دا زوړ دین دے بیا وروسته دین دَ اخری نبی صلّی الله علیه وسلّم ذکر کړو اشاره داده چه دا اخری دین دے نو اول او اخر ئے ړومبے ذکر کړل او بیا ئے دَ مینځ دینونه ذکر کړل نو معلومه شوه ( پاتے په بل مخ )

وَمَا تَفَرَّقُوٓا اِلَّا مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ

او ونه ډله دي جوړې کړي دوی مګر روستو د هغه نه چه راغی دوی ته

الْعِلْمُ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ؕ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ

علم د وجې د ضدکولو په مینځ خپل کښې او که چرې نه وې نیته چه مقرر شوې ده مخکښې

چه دا دین په اول او اخر او مینځ کښې یو شان دے. بیا هر کله چه دین د اخری نبی مقصودِ اصلی دے د دے وجې نه په اَلَّذِیٓ سره یې ذکر کړه چه هغه اصل د موصولاتو دے او په اوحینا سره یې د پاره د تاکید ذکر کړو چه د اخری نبی دین د وحی نه بهر نه دے او په وحی سره ثابت دے.

وَمَا وَصَّيْنَا اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى د دوی تخصیص د دې وجې نه او شو چه د دوی شرائع مشهور وو. اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ دا بدل دے د ماوصّٰی نه یا بدل دے د ضمیر د بهٖ نه یا د سر نه کلام دے یعنی هو اقامة الدین. اقامة نه مراد چلول د هغه دین دی په خپل ځان کښې په عمل سره او په نورو خلقو کښې په دعوت سره په دلیلونو او په دفع د شبهاتو سره. الدِّيْنَ مراد د دے نه هغه اصول دی چه په ټولو شرائعو کښې یو شان دی چه هغه توحید، مونځ، زکوٰة، روژے، حج، طاعت د احکامو د الله تعالیٰ، ایمانیات، تحریم د هر قسم، کفر او شرک او احکام د زنا او قتل دروغ، ظلم، خیانت وغیره دی. وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ دا تاکید د اقامتِ دین دے مراد ترینه منع د افتراق نه ده په اصول د دین کښې او هر چه فروع یعنی طریقے او جزئیات دی نو هغه په دینونو کښې جدا جدا دی لیکن هغه نه تفرق نه ویلے کیږی او دا رنګ هغه سبب د تفرق ګرځول نه دی جائز. كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ دا علت د اقامة الدین دے یعنی مشرکان دا دین نه غواړی او هغوی پکښې تفرق پیدا کول غواړی لیکن تاسو د هغے اقامت کوئې. په دے کښې اشاره ده چه څوک دین اسلام او توحید او د هغے نور اصول نه ید ګوری نو هغه مشرک دے. اَللّٰهُ يَجْتَبِىٓ اِلَيْهِ مَنْ يَّشَآءُ دا متعلق دے د اقیموا الدین سره یعنی ستاسو په ذمه باندې دعوت د دین دے او هدایت په اختیار د الله تعالیٰ کښې دے اجتباء او هدایت کښې یو فرق دا دے چه اجتباء نه مراد نبوّت ورکول دی او هدایت نه مراد توفیق د ایمان ورکول دی دویم دا چه اجتباء نه مراد توفیق د اقامتِ دین ورکول دی او د هدایت نه مراد توفیق د قبلولو دے او اجتباء صرف په اختیار د الله تعالیٰ سره ده په دے کښې د انسان دخل نیشته د دے وجې نه من یشاء یې اوویل او د هدایت د پاره اول انابت شرط دے د دے وجې نه ینیب یې ذکر کړو.

مِنْ رَّبِّكَ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى لَّقُضِيَ بَيْنَهُمْ ؕ

دَ طرف دَ رب ستا نه تر نیټې مقررې پورې نو فیصله به شوې وه په مینځ دَ دوی کښ

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْرِثُوا الْكِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

او یقیناً هغه کسان چه پاتې کړې شویدی دوی ته کتاب روستو دَ مشرانو نه

لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ⑭ فَلِذٰلِكَ فَادْعُ ۚ

خامخا په شک کښ دی دَ دې نه پوخ شک. نو دې دَ پاره ته دعوت کوه

سـ۱۴ :- په دې ایت کښ جواب دې دَ دریم شبهې هغه داده چه تاسو چه دعوت ورکوئ کوم دین ته دَ دې نه ډیر علماء مخالفت کوی نو معلومیږی چه دا دین صحیح نه دې؟ حاصل دَ جواب دادې چه مخالفت دَ دې علماء ته اعتبار نیشته ځکه چه دَ دوی تفرق او اختلاف دَ علم او دلیل نه مخالف هم دې او دا رنګ دَ دوی مخالفت په ضد او عناد باندې بنا دې. او په دې ایت کښ زجر دې تفرق پیدا کوونکو ته او هم دا رنګ په سورة بقره سـ۹ العمران سـ۱۹ او سورة بینه سـ۴ او جاثیه سـ۱۷ کښ دَ په قرینه دَ دغه ایاتونو سره معلومیږی چه متفرقین نه مراد اهل علم دی.

او دَ عوامو دینی اختلاف ته تفرق نه ویلې کیږی ځکه چه فرقې جوړول دَ علماء کار دې عوام خو صرف مخالفت کوی. وَلَوْلَا كَلِمَةٌ الخ دا جواب سوال دې چه دوی که چرې په باطله باندې وی نو عذاب ورباندې ولې نه راځی اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى دلته لفظ دَ بِتَاخِيْرِهِمْ پټ دې.

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْرِثُوا الْكِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ مراد دَ دې نه هغه عوام او نیمګړی ملایان دی چه دَ کتاب وارثان دی یعنی پوره علم ئې نه دې حاصل کړې لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ضمیر دَ مِنْهُ راجع دې دین دَ توحید ته چه مخکښ ایت کښ ذکر شویدې یا مِنْ اجلیه دې او ضمیر راجع دې تفرق دَ علماؤ دَ دوی ته، حاصل دادې چه غټو ملایانو دَ ضد او عناد دَ وجې نه دَ توحید او دَ حق دین مخالفت اوکړو او دَ هغې په مقابله کښ ئې دَ شرک کتابونه اولیکل روستو نیمګړی ملایانو او امیانو دَ غټو علماؤ موافقت ئې اوکړو او دَ کتابونو دَ شرک تقلید ئې اوکړو او دَ توحید نه ئې انکار اوکړو.

وَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ ۚ

او ټینګ شه لکه چه حکم کړے شوېدے تا ته او تابعداری مکوه د خواهشاتو د دوی

وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنْ كِتٰبٍ ۚ

او وایه چه ایمان راوړیے دے ما په هغه چه نازل کړے دے الله تعالیٰ چه هر کتاب وی

وَاُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَيْنَكُمْ ۖ اَللّٰهُ رَبُّنَا

او حکم کړے شوے دے ما ته چه انصاف اوکړم ستاسو په مینځ کښ الله تعالیٰ رب زمونږ

وَرَبُّكُمْ ۖ لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۖ

او رب ستاسو دے مونږ لره عملونه زمونږ دی او تاسو لره عملونه ستاسو دی

لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ۖ اَللّٰهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا ۚ

نیشته هیڅ جګړه په مینځ زمونږ او په مینځ ستاسو کښ الله تعالیٰ به جمع کوی په مینځ زمونږ کښ

وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿۱۵﴾ وَالَّذِيْنَ يُحَآجُّوْنَ

او خاص هغه ته ګرځیدل دی۔ او هغه کسان چه جګړه کوی

۱۵ : د دے ایت نه تر ۳۵ پورے دویم باب دے په دے کښ ترغیب دے د دعوت ته په لس جملو سره بیا زجر دے مقابله کوؤنکو ته او هغوی ته دعوت د قران دے سره د تخویف نه بیا دریم دلیل عقلی دے سره د تزهید فی الدنیا نه بیا یو زجر دے په شرک فی التحکیم سره او تخویف او بشارت دے او دویم زجر دے په انکار د رسول سره د ترغیب الی التوبه۔ بیا درے عقلی دلیلونه دی او بیا تخویف دنیوی دے او دلیل عقلی دے۔

په دے (۱۵) کښ ترغیب دے دعوت ته او دا علاج دے د پاره د دفع کولو د تفرق چه مخکښ ایت کښ تیر شو او په دے کښ د داعی د پاره لس جملے ذکر کوی او دا اداب د دعوت دی۔ فَلِذٰلِكَ فَادْعُ لام اجلیه دے او ذلك کښ اشاره ده تفرق او اختلاف ته او مراد ترینه دفع کول د هغے دی معنیٰ دا ده، "د وجے د دفع کولو د تفرق او اختلاف نه دعوت د حق کوه" یا لام په معنیٰ د الیٰ دے او ذلك اشاره ده دین د توحید ته چه په ۱۳ کښ ذکر شوے وؤ یا اشاره ده قران ته او فاء ئے دوه کرته ذکر کړه د پاره د تاکید چه په اصل کښ دوه جملے دی (ادع لذلك۔ لذلك ادع)۔ اَهْوَآءَهُمْ مراد ترینه بے دلیله مسئلے دی

فِي اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مَا اسْتُجِيبَ لَهٗ حُجَّتُهُمْ

په توحيد د الله تعالیٰ کښې روستو د هغې نه چه قبوليت کړے شو يدے د هغې نو دليل د دوی

دَاحِضَةٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ وَّلَهُمْ

باطل دے په نيز د رب د دوی او په دوی باندے غضب دے او دوی لره

عَذَابٌ شَدِيدٌ ﴿۱۶﴾ اَللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ

عذاب سخت دے۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه نازل کړے دے

الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ وَالْمِيزَانَ ؕ وَمَا يُدْرِيكَ

کتاب د حق د پاره او تله او څه خبر تا لره خبر در کوی په دے چه قيامت کښې

لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيبٌ ﴿۱۷﴾ يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ

يقيناً قيامت خو نزدے دے۔ په تلوارے غواړی دے لره هغه کسان

---

چه ملا يانو د ځان نه جوړے کړے دی وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ يعنی هر کله چه مخالفين استدلال کوی په نورو کتابونو د پاره د اثبات د شرک او بدعت نو ته جواب کښې اُوايه چه زه صرف منزّل کتاب باندے ايمان لرم۔ لِاَعْدِلَ بَيْنَكُمْ يعنی عدل طرف ته دعوت در کوؤم لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ حجة په معنیٰ د خصومت او جګړه کولو دے يعنی په ابتدا د دعوت کښې جګړه کول نيشته صرف دعوت کول دی توحيد ته په دليلونو سره۔

۱۶:- دا تسلّی ده دعوت کوؤنکی ته چه ستا د مخالفينو دليلونه باطل او بے کاره دی د هغې پرواه مکوه۔ اسْتُجِيبَ لَهٗ يعنی د يرو هوښيارو خلقو د الله تعالیٰ دعوت د توحيد قبول کړے دے، نو دا هم يو الزامی حجت دے په منکرينو باندے۔ حُجَّتُهُمْ دا حجت دے په ګمان د دوی کښې۔ وَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ الخ دا تخويف د عذاب د دُنيا او د آخرت دے۔

۱۷:- په دے کښې ترغيب دے حجت د الله تعالیٰ ته روستو د ابطال د حجت د مخالفينو نه۔ الْكِتٰبَ مراد ترينه جنس کتابونه مخکنی دی وَالْمِيزَانَ مراد د دے نه قرآن کريم دے يا مراد د دواړو نه قرآن دے او عطف د صفت دے په صفت باندے يا مراد د الميزان تحقيق د دليلونو دے د پاره د فرق د حق او باطل د دے د پاره چه طريقه د اهل جهل او تقليد نه بچ شی۔ "سراج المنير" (پاتے په بل مخ)

لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا ۚ وَالَّذِينَ آمَنُوا مُشْفِقُونَ

چه ایمان نه راوړی په دے باندے او هغه کسان چه ایمان راوړی او یریږی

مِنْهَا وَيَعْلَمُونَ أَنَّهَا الْحَقُّ ۗ أَلَا إِنَّ الَّذِينَ

د قیامت نه او یقین کوی چه یقیناً دا (قیامت) حق دے خبر شئ یقیناً هغه کسان

يُمَارُونَ فِي السَّاعَةِ لَفِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ ﴿١٨﴾

چه جګړه کوی په باره د قیامت کښں خامخا په ګمراهۍ لرے کښں دی۔

اللَّهُ لَطِيفٌ بِعِبَادِهِ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ ۖ

الله تعالیٰ پوره مهربانی کوی د بندګانو خپلو سره روزی ورکوی چاله چه اوغواړی

وَهُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيزُ ﴿١٩﴾ مَنْ كَانَ

او الله تعالیٰ قوت والا دے زور اور دے۔ څوک چه

اودا رنګ سورة حدید سه ۲۵ کښں هم شته، وَمَا يُدْرِيكَ په دے کښں اشاره ده تیزئ ورکولو ته په عمل کولو د قران باندے مخکښں د راتلو د قیامت نه چه ناګهانه به راځی وَمَا يُدْرِيكَ د دے دویم مفعول حذف دے (وقت الساعة) او ما استفهام انکاری دے اودا لفظ چه کوم ځائے ذکر وی نو په هغه ځائے کښں ئے علم نبی ته نه وی ورکړے نو د قیامت د قیام معیّن تاریخ ئے نبی صلی الله علیه وسلم ته نه دے خودلے. لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيبٌ دا مستقل کلام دے ساعة په معنیٰ د بعث دے یا وقت الساعة یا مجی الساعة د دے وجنے ئے قریب مذکر راوړو۔ اویا قریب په معنیٰ د ذو قرب سره دے۔

سه ۱۸:۔ په دے کښں ذکر د حال قیامت دے او زجر دے منکرینو ته په استعجال او مراء (جګړه کولو) سره او مدح د مؤمنانو ده اشفاق او یقین کولو باندے. الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا په دے لفظ کښں اشاره ده چه د دوی دا استعجال د وجے د محبّت نه نه دے بلکه د وجے د استهزاء نه دے مُشْفِقُونَ اشفاق هغه خوف د زړه دے چه اثر ئے په اندامونو باندے ښکاره شی۔ او اشفاق مستلزم دے عدم استعجال لره نو دا صفت مقابل دے د صفت د یستعجلون سره۔

سه ۱۹:۔ دا دلیل عقلی دے په رد د شرك فی الولایة والحکم باندے او لَطِيفٌ بِعِبَادِهِ کښں اشاره ده چه لوئے لطف او مهربانی انزال د قران دے۔

يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ ۚ

اراده کوی (په عمل خپل سره) کټه د آخرت زیات ورکوؤ موږ دهٔ لره په ګټه د هغه کښ

وَمَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ

او څوک چه اراده کوی په عمل خپل سره ګټه د دُنیا ورکوو موږ دهٔ ته

مِنْهَا وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ نَصِيبٍ ﴿٢٠﴾

د هغے نه او نه به وی دهٔ لره په اخرت کښ هیڅ برخه ۔

أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ

ایا شته دے د دوی شریکان (د الله تعالیٰ سره) چه جوړ کړے وی دوی لره د دین نه

تفسیر قرطبی کښ دَلطیف شلؓ معانی ذکر کړے دی او امام رازی وائی دی چه دا لفظ مشتمل دے په دے اوصافو دَ علم باندے په باریکو امورو سره او رحمتِ خاصه دے او رفق (مهربانی) ده ۔

يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ دَ رزق مختلف حالتونو ته اشاره ده که بسط سره وی یا په تنګسیا سره وی ۔

ف۲۰ :- روستو دَ ذکر کولو دَ رزق دَ دنیا نه ترهیب فی الدنیا او ترغیبِ اخرت ذکر کوی ۔ حَرْثَ کرونده کول دی مراد دَ دے نه جزاء ده او بِعَمَلِهِ پټ دے یعنی په نیک عمل کښ اراده دَ جزاء دَ اخرت کوی یا بِرِزْقِهِ پټ دے یعنی کوم مال چه الله تعالیٰ ورکړے دے نو په هغے سره اخرت ګټی ۔ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ په دنیا کښ زیادت دا دے چه مال کښ ورله برکت اچوی او دَ نیک اعمالو توفیق ورکوی ۔ وَمَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا یعنی مال ذریعه اوګرځوی دَ دنیا دَ رفعت او عزت حاصلولو دَپاره یا په نیک عمل کښ اراده دَ دنیا کوی یعنی عبادت او دَ دین کار قران لوستل وغیره دَ دنیا په نیت باندے کوی او دا رنګ په سورة اسراء ۱۸ – ۱۹ کښ تیر شویدی ۔ وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ نَصِيبٍ په دے کښ اشاره ده چه چا په یو نیک عمل سره دَ دنیا اقتدار یا اجرت اراده کړے وی نو هغه اجرت اغستل به یا جائز وی یا ناجائز لیکن اخرت کښ به ئے ثواب برباد وی او دَ دے ایت مطلب په حدیث صحیح کښ راغلے دے چه "انما الاعمال بالنیات وانما لکل امرئ مانوی" (هر عمل شرعی په نیت شرعی باندے موقوف دے او دَ هر چا دَپاره هغه فائده کوی چه څه نیت شرعی ئے کړے وی) نو حاصل دَ ایت دا دے چه خپل عملونه او مالونه دَ اخرت په نیت سره خرچ کړئے ۔

مَا لَمۡ یَاۡذَنۡۢ بِهِ اللّٰهُ ؕ وَلَوۡلَا کَلِمَةُ الۡفَصۡلِ

هغه خبرے چه اجازت نه ئے وركړے ده هغے الله تعالیٰ او كه چرے نه وے دا خبره لیكلے شوے د فیصلے

لَقُضِیَ بَیۡنَهُمۡ ؕ وَاِنَّ الظّٰلِمِیۡنَ لَهُمۡ

نو فیصله به (اوس) كړے شوے وے په مینځ د دوی كښ او یقیناً ظالمان دوی لره

عَذَابٌ اَلِیۡمٌ ﴿۲۱﴾ تَرَی الظّٰلِمِیۡنَ مُشۡفِقِیۡنَ

عذاب دردناك دے۔ وینے به ته ظالمان ویریدونكی

ف ۲۱:۔ دا زجر دے په شرك فی التشریع والحکم باندے متعلق دے د ف ۱۳ او ف ۱۰ سره یعنی په شرع او كتاب د الله تعالیٰ كښ خو شرك او دا كارونه مشركانه جائز نه دی نو آیا دا كارونه دوی لره نورو اِلٰهو جائز كرځولے دی او نور الِٰهه سوا د الله تعالیٰ نه خوشی كیدے نو معلومه شوه چه شرك كول په ټولو انواعو سره جائز نه دے۔ او د دے آیت نه ډیرے مسئلے معلومیږی اوله دا چه یو قسم د اقسامو د شرك نه شرك فی الحکم والتشریع دے او دے ته شرك فی الاطاعة او شرك فی التحلیل والتحریم هم ویلے كیږی۔ دویمه دا چه شارع په حقیقت كښ یو الله تعالیٰ دے كه چرے پیغمبر باندے اطلاق كړے شویوی نو هغه به په معنیٰ د شرع بیا نوونكے وی۔ دریمه مسئله ائمه مجتهدین شرع جوړوونكے نه دی بلكه د دلیل شرعی نه احكام راویستونكی دی۔ نو كله به صحیح وی او كله به خطا وی څلورمه مسئله یو امام مجتهد یا مفسر، استاد، پیر د تحلیل او تحریم اختیار منل او گنړل دا هم شرك دے پنځمه مسئله د كم یو عالم او پیر په كارونو د شرك او بدعاتو او فسق وفجور كښ تابعداری كول دا تقلید شركی دے شپږمه مسئله د یو امام مجتهد تقلید پیدا شے طریقه كول چه آیاتِ قرآنیه او حدیث صحیحه صریح نه قول د هغه مخالف ښكاره شی لیكن بیا هم په قول د هغه امام باندے عمل كوی په دے بهانے سره چه دے زمونږ نه ښه پوهیدلو دا تقلید هم گمراهی ده۔ او لفظ د مَا لَمۡ یَاۡذَنۡۢ بِهِ اللّٰهُ، دلالت كوی چه د یو امام او عالم او مقتدا په قول باندے دلیل د قرآن یا صحیح حدیث موجود وی نو د هغے تابعداری كول تابعداری د الله تعالیٰ ده او د رسول الله ده او مراد د اذن نه دلیل شرعی دے چه كتاب الله او سنت دے۔ وَلَوۡلَا کَلِمَةُ الۡفَصۡلِ دا جواب د سوال دے چه دا مذكوره كسان مشركان دی نو په دوی باندے عذاب ولے نه راځی؟ حاصل جواب دا دے چه وعده د فیصلے ورځ د قیامت ده یا په

مِمَّا كَسَبُوْا وَهُوَ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ؕ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
دَ هغه عملونو نه چه دوی کړې دی او (سزا) دَ هغې به راپریوځی په دوی باندې او هغه کسان چه ایمان ئې راوړی دی

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ ۚ لَهُمْ
او عملونه ئې کړې دی برابر دَ سنّت سره په باغچو دَ جنتونو کښې به وی دوی لره

مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ
به هغه څه وی چه دوی غواړی په نیز دَ رب دَ دوی دا فضل

الْكَبِيْرُ ۝٢٢ ذٰلِكَ الَّذِيْ يُبَشِّرُ اللّٰهُ عِبَادَهُ
ډیر لوی دے۔ دا هغه خیز دے چه زیرے ورکوی الله تعالیٰ بندګانو خپلو ته

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ؕ قُلْ لَّآ
دا هغه کسان دی چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړیدی په برابر دَ سنت سره ته اُوایه زه نه

---

تقدیر الٰهی کښې دَ دوی عذاب روستو دے۔ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ دا اجمالی فیصله ده ظالم دلته هغه څوک دے چه شرع الٰهی ئې پریښے وی او په مالم يأذن به الله پسې روان وی ځکه دا شرک دے او شرک ظلم عظیم دے لکه په سورة لقمان س۱۳ کښې چه دی۔

س۲۲ :۔ په دے ایت کښې دوه ډلے ذکر کوی یو شرک فی التشریع کوونکی نو هغوی ته تخویف اخروی ورکوی او دویمه ډله مؤحدین چه په دلیل شرعی پسې روان وی نو هغوی ته بشارت اخرویه ورکوی وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ صالح عملونه هغه دی چه دَ دلیل شرعی سره موافق وی فِيْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ روضة هغې ته وائی چه په هغې کښې ډیر ښینوالے او ډیر لذتونه وی نو معلومه شوه چه دَ جنّت په درجاتو کښې ډیر فرق دے او هر کله چه دَ اعلیٰ خلقو دَ پاره اعلیٰ درجات دی نو هغه مؤمنان چه په اعمالو کښې ئې قصور دے نو هغوی به هم په جنّت کښې وی اګرچه په لاندے درجاتو کښې به وی۔ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ فضل دلالت کوی چه دا جزا صرف په فضل دَ الله تعالیٰ سره ده نه په طریقه دَ وجوب او دَ استحقاق سره په الله تعالیٰ باندے لکه چه معتزله وائی۔ الْكَبِيْرُ هغه دے چه دَ هغې حقیقت او وصف ته دَ مخلوق تصوّر نه ور رسیږی۔

أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا إِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبَىٰ ؕ

غوارم ستاسو نه په دے باندے هیڅ بدله مګر چه مینه اوکړئ په نزدیکت د الله تعالیٰ کښ

وَمَن يَقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهُ فِيهَا حُسْنًا ؕ

او چاچه اوکړه نیکی زیاتوو موږ ده لره په هغے کښ خائست

إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴿۲۳﴾ أَمْ يَقُولُونَ

یقیناً الله تعالیٰ بخنه کوونکے قبلونکے د عملونو دے. آیا دوی وائی

۲۳ :- د آیت په اول کښ تاکید دے د تیر شوی بشارت، او تاکید په پنځه طریقو سره دے ۱ لفظ ذٰلك چه په اوچت والی د مرتبے د مشار الیه باندے دلالت کوی ۲ په بشارت سره مسمّٰی کول ۳ الله تعالیٰ بشارت ورکوونکے دے ۴ نوم د مبشر لهم په عباد الله سره ۵ صفت د هغوی په ایمان او په عمل صالح سره. قُل لَّا أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا هرکله چه په بشارت ورکولو کښ عادتاً خلق عوض غواړی او هغه د اخلاص نه خلاق ډنو اوبلے شو چه پیغمبر صلی الله علیه وسلم په دے باندے هیڅ عوض نه غواړی نه سوال حقیقتاً او نه سوال حکماً یعنی طمع لرل هم نه کوی. إِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبَىٰ، (سوال) د پنځه انبیاء علیهم السلام نه په سورة شعراء کښ نقل کړے دی چه وَمَا أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۱۰۹ ۱۲۷ ۱۴۵ ۱۶۴ ۱۸۰ او دارنګ زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم نه هم تصریح نقل کړے ده په سورة انعام ۹۰ سورة ص ۸۶ او سورة سبا ۴۷ کښ نو په دے آیت کښ په اجر کښ الا المودة فی القربی ولے مستثنیٰ کړو یعنی دا اجر غوارم؟

(جواب) اول داچه دا استثناء منقطع ده یعنی اجراً باندے جمله ختم شوه او عبارت کښ تقدیر دے لکن اذکرکم واسألکم. دویم جواب استثناء متصله ده په طریقه د ادعا او فرض کولو یعنی زه هیڅ قسم اجر نه غوارم او فرض کړئ که چرے مودة فی القربی اجر وی نو هغه غوارم لیکن هغه خو اجر نه دے ځکه اجر دنیوی هغه څیز ته ویلے کیږی چه په هغے سره دنیوی ترقی اجیر ته حاصلیږی او په مودة فی القربی سره خو فائده پیغمبر ته نه رسیږی او نه په هغے سره دنیوی ترقی د هغه حاصلیږی.

**فائده** :- المودة فی القربی کښ درے قولونه د مفسرینو دی اول قول د مجاهد او د حسن بصری دے او قول د مجاهد لره قرطبی په سند مرفوع سره

افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۚ فَإِنْ يَّشَإِ اللّٰهُ

چه جوړکړیدی دهٔ په الله تعالیٰ باندے دروغ نو که اوغواړی الله تعالیٰ

يَخْتِمْ عَلٰى قَلْبِكَ ۗ وَيَمْحُ اللّٰهُ الْبَاطِلَ

مهر په اولګوی زکه دروغ جوړ کړی وی) ستا په زړه باندے او ورانوی الله تعالیٰ باطل لره

نقل کړے دے هغه دادے "چه غواړم ستاسو نه داخبره چه مؤدت دَ الله تعالیٰ سره اوکړئ او هغه ته تقرب حاصل کړئ په طاعت سره" نو قربیٰ په معنیٰ دَ تقرب الی الله دے او دائے ظرف دَ مؤدت ګرځولے دَ پاره دَ تاکید او دَ مبالغ. دویم قول دَ شعبی دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه قربیٰ په معنیٰ دَ قرابت نسبی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دے چه دَ قریشو دَ ټولو خاندانونو سره دَ هغه خپلولی وه نو معنیٰ داده "چه زهٔ خو ستاسو نه هیڅ اجر نه غواړم لیکن غواړم چه تاسو لحاظ اوکړئ زما دَ قرابت او دَ خپلولے" یعنی نور خلق چه پردی دی په ما باندے ایمان نه راوړی لیکن تاسو لره خو ضرور پکار دی چه په ما باندے ایمان راوړئ دَ خپلولے دَ وجے نه. دریم قول دَ کلبی او سدی نه نقل دے چه مراد دَ قربیٰ نه ذوی القرابت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دی چه هغه اهل بیت دَ هغهٔ دی یعنی "زهٔ ستاسو نه هیڅ نه غواړم لیکن دا غواړم چه زما دَ اهل بیتو سره مؤدت او محبت کوئ هغوی ته اذیت مهٔ ورکوئ." او هغه دَ هغهٔ ازواج مطهرات او آل دی. نو احترام او محبت دَ آل دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ بیبیانو دَ هغهٔ سره لازم دے په امت باندے لیکن بغیر دَ افراط او تفریط نه. وَمَنْ يَّقْتَرِفْ داعطف دے په پټ لفظ باندے یعنی ومن یقترف سیئة فعلیه وزرها یعنی چا چه بدی اوکړه ( یعنی مودة فی القربیٰ ) ئے اونکړو نو په هغه باندے دَ هغے ګناه دے. حَسَنَةً مراد دَ دے نه اولاً مودة فی القربیٰ دے او نورے حسنے په کښ هم داخل دی. نَّزِدْ لَهٗ فِيْهَا حُسْنًا یو معنیٰ داده چه دَ هغه په زړه کښ دَ هغه نیکے حسن او محبت په دَ هغے سره زیات کړو دویمه دا چه ډیر ثواب به ورکوو. شَكُوْرٌ بشکاره کوی نیکے لره په ډیر اجر و ثواب ورکولو سره ځکه چه شکر په لغت کښ بښکاره کولو ته ویلے کیږی.

وَيُحِقُّ الْحَقَّ بِكَلِمَتِهِ ۚ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ

او ښکاره کوی حق لره په خپلو کلمو سره یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے په هغه خبرو

الصُّدُورِ ﴿٢٤﴾ وَهُوَ الَّذِي يَقْبَلُ التَّوْبَةَ

چه په سینو کښ دی. او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه قبلوی توبه

عَنْ عِبَادِهِ وَيَعْفُوا عَنِ السَّيِّئَاتِ وَيَعْلَمُ

د بندګانو خپلو نه او معافی کوی د بدو نه او پوهه دے

مَا تَفْعَلُونَ ﴿٢٥﴾ وَيَسْتَجِيبُ الَّذِينَ آمَنُوا

په هغه کارونو چه تاسو کوئے او قبلوی الله تعالیٰ (عملونه او دُعا) د هغه کسانو چه ایمان ئے راوړے دے

ف۲۴:- دا زجر دے په انکار د رسول یعنی هغه خوک چه مودة فی القربی نه کوی بلکه اُلټه هغه ته نسبت د افتراء کوی. فَإِنْ يَشَإِ اللَّهُ يَخْتِمْ عَلَىٰ قَلْبِكَ د قتاده په نیز معنیٰ دا ده "که اوغواړی الله تعالیٰ ربه هغه وخت چه په زړه ستا کښ اراده د افتراء راشی) نو ستا په زړه بانده به مهر اولګوی" بیا په هیڅ بانده به نه پوهیږے لیکن د نبی صلّی الله علیه وسلّم په زړه بانده مهر نیشته هغه افصح، ابلغ، اعقل دے د ټول مخلوق نه معلومه شوه چه افتراء ئے نه ده کړے دا سزا مختص وی په رسول برحق پورے یعنی رسول برحق که په الله تعالیٰ بانده بالغرض افتراء اوکړی نو په زړه بانده به ئے مهر راځی دا د دروغژن نبی په باره کښ ملازمه نیشته نو د مرزا غلام محمد کذاب د دے نه استدلال کول د ځان د رسالت د پاره غلط دے. او د مجاهد په نیز د یختم معنیٰ یربط او یصبر دے او آن په معنیٰ اذا سره دے یعنی الله تعالیٰ به ستا زړه کښ ربط او صبر پیدا کوی په وخت د انکار د دوی کښ. وَيَمْحُ اللَّهُ الْبَاطِلَ د مجاهد د معنیٰ په لحاظ دا عطف دے په یختم بانده او د قتاده د معنیٰ په لحاظ سره دا د سر نه کلام دے رد دے په منکرینو بانده الْبَاطِلَ نه مراد شبهات د متکرینو دی چه یوه شبه د هغې نه نسبت د افتراء کول دی پیغمبر صلّی الله علیه وسلّم ته.

ف۲۵:- دا حال د من یقترف حسنة ذکر کوی او ترغیب دے تو بے کولو ته د انکار د نبی صلّی الله علیه وسلّم نه. صحیح توبه دا ده چه په تیر شوی ګناه بانده په زړه کښ پښیمانه اوخفه شی او فی الحال هغه ګناه پریږدی او ائینده د پاره عزم اوکړی چه دا ګناه به بیا نه کووم. وَيَعْفُوا عَنِ السَّيِّئَاتِ، هر کله چه

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ط

او عملونه ئې کړې دي موافق دَ سنت سره او زياتي ورکوي دوی ته دَ فضل خپل نه

وَالْكٰفِرُوْنَ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ﴿۲۶﴾

او کافران چه دي دوی لره عذاب سخت دے۔

وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا

او که فراخه کړے وے الله تعالی روزی بندګانو خپلو لره خامخا سرکشي به ئې کړے وے

فِي الْاَرْضِ وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ ط

په ملک کښ لیکن رالیږی الله تعالی په اندازے سره څومره چه اوغواړی

اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌ بَصِيْرٌ ﴿۲۷﴾ وَهُوَ الَّذِيْ

یقیناً الله تعالی په بندګانو خپلو باندے خبردار لیدونکے دے۔ او الله تعالی هغه ذات دے

قبولیت دَ توبے کله دَ راتلونکے زمانے سره تعلق لری نو دَ تیر شوی ګناهونو ویره باقی وه نو دا جمله ئې دَ دے دَ پاره راوړه چه په تیر شوے ګناهونو باندے نیول نه کوی وَيَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ هغه کارونه که دَ خیر وی او که دَ شر وی که تیر شوے وی او که روستو زمانه کښ وی۔

ف ۲۶:۔ دا نور اکرام او بشارت دَ مؤمنانو ذکر کوی وَيَسْتَجِيْبُ دا عام دے دعاګانے قبولول او عبادتونه قبلول او سفارشونه دَ نورو روترو دَ پاره ټولو ته شامل دے او دَ زیات تاکید دَ پاره ئې یستجیب متعدی بالذات اوګرځوو۔ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ یعنی زیات دَ هغې نه چه دوی طلب کړے وی په خپل فضل سره ورکوی۔

ف ۲۷:۔ دا جواب دَ سوال دے چه هر کله الله تعالی دَ مؤمنانو دعاګانے قبلوی نو کله چه دوی فراخی دَ مال غواړی نو ولے نه ورکوی حاصل جواب دا دے چه فراخی دَ رزق سبب دَ بغاوت دے نو دا دُعا دَ دوی دَ پاره سبب دَ خیرنه دے دَ دے وجے نه ئې نه قبلوی (سوال) ډیر انبیاء، صحابه کرام، اولیاء شته چه دَ هغوی رزق فراخ وؤ لیکن بغی ئې خونه ده کړے (جواب) اول دا دے چه مراد دَ فراخ نه دَ ټولو دَ پاره یوشان فراخی ده یعنی که ټول بندګان مالدار شی نو یو بل ته به ئې حاجت پاتے نه شی نو دهریان به شی (پاتے په بل مخ)

يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوا وَيَنْشُرُ
راوروی باران روستو دَ نا اُمیده کیدلو دَ خلقو نه او خوره وی

رَحْمَتَهُ ۚ وَهُوَ الْوَلِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٢٨﴾ وَمِنْ آيَاتِهِ
رحمت خپل او هغه اختیار منډ ستائیلے شویدے. او بعض دَ دلیلونو دَ توحید نه

خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيهِمَا
پیدائش دَ اسمانونو او دَ زمکے دے او هغه چه خواره کړیدی په دواړو کښ

مِنْ دَابَّةٍ ۚ وَهُوَ عَلَىٰ جَمْعِهِمْ إِذَا يَشَاءُ
دَ ژوندو سرو نه. او الله تعالیٰ دَدوی په جمع کولو باندے کله چه او غواړی

قَدِيرٌ ﴿٢٩﴾ وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ
قدرت لرونکے دے. او هغه چه اورسیږی تاسو ته څه مصیبت

نظامِ عالم به خراب شی عباداتِ مالیه به دَ دنیا نه ختم شی نو دَدے وجے الله تعالیٰ بعض مالدار کړل او بعض فقیران. دویم جواب دادے چه مراد دَدے نه بعض خاص مؤمنان مراد دی چه الله تعالیٰ دَ هغوی دَ حال نه خبر دے که چرے هغوی له مالداری ورکړی نو فسادونه او ګناهونه به شورو کړی یا به زیاتی غواړی او په دنیا باندے به نه مړیږی.

س ۲۸ :- دا دلیل عقلی دے په توحید باندے او تفصیل دَ يُنَزِّلُ بِقَدَرٍ دے یعنی سبب دَ رزق باران دے هغه الله تعالیٰ په خپل حکمت سره نازلوی. الْغَيْثَ فائدہ منډ باران ته ویلے کیږی مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوا مراد دَدے نه مشرکان دی ځکه چه قنوط دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه دَ کافرانو صفت دے. یا قنوط نه مراد نا امیده کیدل دی دَ نورو اسبابو نه سِوا دَ الله تعالیٰ نه نو بیا مؤمنانو ته هم شامل دے. رَحْمَتَهُ دَدے نه مراد بوټی او فصلونه دی.

س ۲۹ :- دا بل دلیل عقلی دے په رد دَ شرک فی الولایة باندے او دا دلیل په ډیرو دلیلونو باندے مشتمل دے ځکه چه علوی او سفلی او وسطی نظام ئے پکښ ذکر کړے دے او دَ توحید سره دَ قیامت اثبات ئے هم پکښ ذکر کړے دے.

مِنْ دَابَّةٍ (سوال) دَابَّةٍ هغے ته وائی چه په زمکه ګرځی او هغه په عرف کښ خاروی دی بلکه اسونو ته ویلے کیږی نو په ملائکو باندے څه رنګ اطلاق

فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُوا عَنْ كَثِيرٍ ﴿۳۰﴾

نو په وجه د هغه عمل سره دے چه کړیدے لاسونو ستاسو او معافي کوي د ډیرو نه۔

وَمَا أَنْتُمْ بِمُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ ۚ وَمَا لَكُمْ

او نه یئ تاسو عاجزي کوونکي الله تعالیٰ لره په ټول ملک کښ او نیشته تاسو لره

مِنْ دُونِ اللَّهِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿۳۱﴾

سوا د الله تعالیٰ نه هیڅ بچ کوونکے او نه مددګار۔

صحیح کیږي اول جواب دا دے چه مراد د دابة نه هر ذي روح حرکت کوونکے دے نو ملائکو ته هم ویلے کیدے شي دویم جواب دا دے چه فیهما نه مراد یو دے یعني زمکه او د تثنیې ضمیر کله د یو د پاره استعمالیږي لکه یخرج منهما اللؤلؤ والمرجان لیکن دا په هغه څیز کښ ذکر کیږي چه دوؤ څیزونو نه یو شے پیدا شوے وي نو دا دابے په پیدا کیدلو کښ آسماني او ارضي اسباب د دواړو شرکت دے لکه چه د لؤلؤ مرجان په پیدا کیدلو کښ د دواړه قسمه او بو اختلاط دے۔ دریم جواب دا دے چه آسماني بعض ملائکو بانسے د اوعال (صحرائي پیسانو) اطلاق په یو حدیث کښ کړے شویدے چه د هغوي د زنګنانو نه تر سوؤ پورے دومره فاصله ده لکه په مینځ د آسمان او زمکے کښ۔

ښ ۳۰ ۳۱ : دا تخویف دنیوي دے یعني ګناهونه سبب د مصیبت او د عذاب دنیوي دي دا خطاب دے مؤمنانو ته چه د هغوي د بعض ګناهونو عقوبت په دنیا کښ ورکوي په ذریعه د مرضونو، غمونو، قرضونو وغیره سره او ډیر ګناهونه ورنه بغیر د عقوبت نه معاف کړي او دا متعلق دے د سا ۲۵ سره۔ یا دا خطاب دے کافرانو ته یعني هر کله چه دوي د توحید د دلائلو نه انکار کوي او په شرکیاتو کښ مشغول وي نو الله تعالیٰ به د بعض ګناهونو سزا په دنیا کښ ورکوي لکه سورة روم سا ۴۱ کښ ذکر کړدي او مراد یعفوا نه روستو کول د عذاب دي۔ وَمَا أَنْتُمْ بِمُعْجِزِينَ د عذاب نه د بچ کیدلو د پاره درے طریقے دي یو د انسان خپل قوت او زور د نوهغه یئ نفي کړو په دے جملے سره او دویمه طریقه په ذریعه د دوست سره او دریمه طریقه نفس مددګار اګر چه دوست نه وي نو هغه یئ رد کړو په روستو جملے سره۔

وَمِنْ اٰيٰتِهِ الْجَوَارِ فِي الْبَحْرِ كَالْاَعْلَامِ ﴿۳۲﴾

او بعض د دلیلونو د توحید د هغه نه روانے کشتئ دی په دریاب کښې پشان د غرونو .

اِنْ يَّشَاْ يُسْكِنِ الرِّيْحَ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ

که چرے او غواړی الله تعالی نو او به دروی هوا نو همیشه به دی کشتئ ولاړے

عَلٰى ظَهْرِهٖ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ

په شا د دریاب باندے یقیناً په دے کښې ډیر دلیلونه دی هر

صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿۳۳﴾ اَوْ يُوْبِقْهُنَّ بِمَا كَسَبُوْا

ډیر صبر ناک ډیر شکر کنار د پاره . یا به هلاک کړی کشتئ په وجه د عملونو

وَيَعْفُ عَنْ كَثِيْرٍ ﴿۳۴﴾ وَّيَعْلَمَ الَّذِيْنَ

او معافی کوی د ډیرو نه . او چه یقین اوکړی هغه کسان

۳۲ ۳۳ ۳۴ ۳۵ . دا یل دلیل عقلی دے په توحید باندے چه تعلق لری د تصرف سره په دریابونو کښې او ورسره تخویف د عذاب دے په دریاب کښې كَالْاَعْلَامِ جمع د علم ده مراد تری نه غر دے یالویه مانړے اِنْ يَّشَاْ يُسْكِنِ الرِّيْحَ الخ یعنی کشتئ جهازونه بغیر د هوا نه نه شی چلیدلے خو هغه هوا معتدله روانه وی لیکن کله چه د اعتدال نه بهر شی نو یا به او دریږی نو کشتئ به هم په دریاب باندے او دریږی نو بیا د هغې د چلیدلو د پاره هیڅ ذریعه نشی کیدے یا به ډیره تیزه شی نو د کشتئ د ډوبیدلو سبب به اوګرځی صَبَّارٍ شَكُوْرٍ صیغے د مبالغې د دے وجے نه ذکر کړے دی چه لږ صبر او شکر خو په کافرانو کښې هم شته دے نو مراد د صبار وشکور نه مؤمن دے او هر کله چه په سفر د دریاب کښې ډیر خطرات وی نو د هغې د پاره ډیر صبر پکار دے او د هغې نه په نجات موندلو کښې ډیر نعمتونه دی نو په هغې باندے ډیر شکر پکار دے د دے وجے نه په سورة لقمان ۳۱ کښې هم د سفر د دریاب سره دا صفت ذکر کړے دے . اَوْ يُوْبِقْهُنَّ د دے ذکر د يسكن الريح د لاندے صحیح نه دے ځکه چه ایباق (اهلاک اوغرق) په هوا او دریدلو سره نه راځی نو معلومه شوه چه دلته عبارت پټ دے وَاِنْ يَّشَاْ يَجْعَلِ الرِّيْحَ عَوَاصِفَ . یعنی چه هوا د اعتدال نه کله بهر شی او تیزه شی نو موجونه را اوچت شی او کشتئ غرقے شی . او دریدل د کشتو په دریاب کښې لږه

يُجَادِلُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا ؕ مَا لَهُمْ مِّنْ مَّحِيْصٍ ﴿۳۵﴾

چه جګړه کوی په ایاتونو زموږ کښ چه نیشته دوی لره هیڅ ځائے د تختیدلو .

فَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

نو هغه چه درکړے شویدے تاسو ته هر څیز چه دے نو سامان د مزے د ژوند دنیوی دے

وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او هغه چه د الله تعالیٰ سره دے غوره دے او همیشه دے د پاره د هغه چا چه ایمان لری

وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَالَّذِيْنَ

او په خپل رب باندے توکل کوی . او هغه کسان

ویره ده او غرقیدل ډیره ویره ده او عذاب دے . وَيَعْفُ عَنْ كَثِيْرٍ د ډیر ګناهونو یا د ډیر خلقو نه معاف کوی هر کله چه مؤمنان وی یا د عذاب نه مهلت ورکوی کله چه مشرکان وی . وَيَعْفُ عطف دے په یوبقهن باندے یعنی چه سیلئ تیزه شی نو بعض خلقو لره په لامبو وهلو یا د ځه تختے د پاسه الله تعالیٰ په خپل قدرت سره نجات ورکړی یا يَعْفُ د سره کلام دے او واؤ ترینه خلاف القیاس حذف شویدے . وَيَعْلَمَ دا عطق دے په پټ عبارت باندے یعنی يُغْرِقْهُمْ لِيَنْتَقِمَ مِنْهُمْ وَلِيَعْلَمَ نو په دے کښ ان پټ دے او دا متعلق دے د دواړه حالتونو سره یعنی هر کله چه کشتئ او دروی یا غرقه ئے کړی نو دغه وخت کافران مشرکان پوهه شی چه زموږ معبودان مونږ له نجات نشی را کولے بلکه صرف الله تعالیٰ ته څخ وهی لکه دا سورت یونس، عنکبوت، لقمان کښ تیر شویدی .

۳۶:۔ د دے ځائے نه دریم باب دے تر اخر د سورت پورے په دے کښ تزهید فی الدنیا او ترغیب دے اخرت ته په ذکر د نهه صفتونو د مؤمنانو سره بیا تخویف اخروی بیا ترغیب دے حکم د الله تعالیٰ ته سره د زجر نه منکرینو ته بیا عقلی دلیل دے بیا په اخر کښ صداقت د قرآن او تاکید د وحی دے . په دے ۳۶ کښ تزهید فی الدنیا دے یعنی چاله چه الله تعالیٰ کشتئ ورکړے وی او په معتدله هوا کانو کښ ګرځوی او د غرق نه بچ وی دا خو د دنیا لږه فائده ده نو په دے سره تکبر کول او شرک کول او توحید د الله تعالیٰ هیرول جائز نه دی . وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ دا ترغیب دے اخرت ته لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا د اخرت د نعمتونو رپاتے په بل مخ )

يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ وَاِذَا

چه ډډه کوی د غټو ګناهونو او د ښکاره بدکارو نه او کله چې

مَا غَضِبُوْا هُمْ يَغْفِرُوْنَ ﴿۳۷﴾ وَالَّذِيْنَ

دوی غصه شی نو دوی بخښنه کوی ۔ او هغه کسان

اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَمْرُهُمْ

چه قبلوی حکمونه د رب خپل او پابندی کوی د مونځ او کار د دوی

شُوْرٰى بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۳۸﴾

مشوره کول دی په مینځ د دوی کښ او د هغه مال نه چه مونږ ورکړے دے دوی ته خرچ کوی۔

د حصول د پاره ذریعه نهه صفتونه ذکر کوی او په دے ایت کښ دوه ذکر کړے دی، ایمان، توکل کول په الله تعالیٰ باندے۔ په اول صفت کښ اشاره ده د شرک جلی نه بیچ کیدلو ته او په دویم کښ اشاره ده ځان۔ بچ کول د شرک خفی ته ځکه چه په توکل کښ دا معنیٰ ده چه د الله تعالیٰ نه سوا بل هیڅ څیز ته التفات نه کوی۔

س۳۷:۔ په دے کښ دریم او څلورم صفت ذکر کوی۔ هغه دواړه ایجابی صفتونه وو او دا دواړه سلبی صفتونه دی كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ هر هغه ګناه چه د هغې عقوبت ډیر او سخت وی شرک، قتل، زنا، غلا د مور پلار نافرمانی، جادو، په دروغه قسم کول، بهتان وغیره داکبیره دی وَالْفَوَاحِشَ دا خاص دے پس د عام نه یعنی ګناهونو کښ هغه چه عقل او طبع ترینه هم نفرت کوی او د هغې قباحت هر عقل والا ته ښکاره وی لکه زنا، دروغ دهوکه خیانت وغیره په کښ داخل دی۔ وَاِذَا مَا غَضِبُوْا هُمْ يَغْفِرُوْنَ مخکښ حقوق الله ذکر وو او په دے کښ حقوق العباد ذکر کوی او دا صفت د اعتدال دے یعنی که څوک د ده بے عزتی کوی نو غصه کیږی د غیرت د وجے نه لیکن بیا بدله نه اخلی بلکه بخښش کوی۔ او په دے کښ اشاره ده چه تکبر په کښ نیشته ځکه چه صرف په غضب کیدلو سره خلق رانیول بغیر د معافی کولو نه دا تکبر دے۔

س۳۸:۔ په دے کښ پنځم، شپږم، اووم او اتم صفت ذکر کوی۔ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ په دے کښ پس د ایمان نه پوره انقیاد مراد دے۔ وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ په دے کښ اشاره ده اتفاق او اتحاد ته چه سبب د هغې

وَالَّذِيْنَ إِذَآ أَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ يَنْتَصِرُوْنَ ﴿٣٩﴾

او هغه کسان چه کله اورسیږی هغوی ته زیاتے د چانه نو دوی بدله اخلی.

وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۚ فَمَنْ

او بدله د بدئ بدی دی پشان د هغې نو چا چه

عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ۚ إِنَّهٗ لَا يُحِبُّ

معافی اوکړو او ښهٔ عمل ئے اوکړو نو ثواب د دهٔ دے په الله تعالیٰ باندے یقیناً الله تعالیٰ نه خوښوی

الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٠﴾ وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ

ظالمان ـ او خامخا چا چه بدله واغستله روستو د ظلم کیدلو نه په دهٔ باندے

مشوره کول دی د یو بل سره۔ او مشوره د پاره د احکامو جوړولو نه ده بلکه د پاره د چلولو د احکامو ده او دے ته اسلامی شوری ویلے کیږی او هرچه مغربی شوری او جمهوریت دے نو هغه د احکامو جوړولو د پاره وی او هغه شرک دے او په دے سورت کښ داصفت ئے د دے وجے نه ذکر کړو چه دعویٰ د دے سورت توحید په الحکم وۀ نو د هغې د جاری کولو د پاره شوری پکار ده بیا هر کله چه تیر شوی صفتونه مشورے ته محتاج نه دی بلکه روستو اعمالو کښ مشورے ته حاجت دے نو د دے وجے نه دا صفت ئے په مینځ کښ ذکر کړو۔ او امر د شوری سورة العمران ۱۵۹ کښ ذکر کړے دے۔

۳۹ :۔ په دے کښ تهم صفت ذکر کړے دے (سوال) د څلورم صفت او د دے صفت په مینځ کښ منافات دے (جواب) اول جواب دادے چه جنایت کوؤنکی دوه قسمه دی اول هغه دے چه په خپل جنایت کولو باندے نادم (پښیمانه) وی نو هغه ته معافی کول پکار دی او دویم هغه دے چه په جنایت باندے کلک دے او ظلم ته پریږدی نو د هغه نه انتقام اغستل دی۔ دویم جواب دادے چه اول په یاره د غضب کولو په وخت د دعوت کښ دے یعنی په وخت د دعوت او تبلیغ کښ چه څوک زیاتے اوکړی او تحمل اوکړی او داعی غصّه شی لیکن مغفرت کوی او دویم په یاره د دنیوی امورو کښ دے۔ او دریم جواب دادے چه په دے جملو کښ صیغه د امر نیشته بلکه اول ئے عزیمت ذکر کړے دے چه هغه ډیر غوره دے او دویم ئے رخصت ذکر کړے چه په دے باندے هم عمل کول جائز دی لیکن شرط ورسره دے۔

۴۰ :۔ په دے کښ طریقه د انتصار او شرط د بدل اغستلو ذکر کوی چه برابر والے دے او بیا ئے ترغیب ذکر کړے دے اعلیٰ وصف ته زیاتے په بل مخ

فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِّنْ سَبِيْلٍ ﴿۴۱﴾ اِنَّمَا

نو دغه کسان نیشته په دوی باندے هیڅ ملامتیا۔ یقیناً

السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ يَظْلِمُوْنَ النَّاسَ

ملامتیا په هغه کسانو باندے ده چه ظلم کوی په خلقو باندے

وَيَبْغُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۭ اُولٰٓئِكَ

او سرکشی کوی په ملک کښں په نا حقه سره دغه کسان

لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۴۲﴾ وَلَمَنْ صَبَرَ

دوی لره عذاب دردناک دے۔ او خامخا چه صبر اوکړو

وَغَفَرَ اِنَّ ذٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ﴿۴۳﴾

او بخنه ئے اوکړه یقیناً دا د فرض کړے شوے کارونو نه دی۔

چه عفوکول دی۔ او بدلے د بدے ته ئے بدی اوویله اگرچه هغه بدی نه ده د وجے د مشاکلت نه یعنی اگرچه دا بدله اغستل د بدے جائز دی د وجے د رخصت نه لیکن په اصل کښں خو بدی ده۔ وَاَصْلَحَ په دے کښں اشاره ده چه د معافی کولو نه بعد افساد او نه کړی یعنی عفو په طریقه د منافقت سره نه وی بلکه د پاره د اصلاح کولو وی۔

سا ۴۲ :۔ په دے کښں دفع د وهم ده چه هرکله یو مظلوم بدله د ظالم نه واخلی نو بعض ناپوهه خلق په دے مظلوم باندے ملامتیا وائی نو په دے ایت کښں په هغوی باندے رد دے۔ او دا بدله اغستل عام دی که په بدن کښں وی یا مال کښں یا په عزت کښں. او په دویم ایت کښں حقدار د ملامتیا ئے ذکر کړل او هغه دوه قسمه دی اول هغه دی چه په خلقو باندے ظلمونه کوی یعنی حقوق العباد برباد وی او دویم هغه دی چه حقوق الله برباد وی۔

سا ۴۳ :۔ دا عطف دے په وَلَمَنِ انْتَصَرَ باندے یعنی بدله نه اخلی د وجے د صبر نه او بخشش ورته اوکړی یعنی خفگان هم زائله کړی۔ عَزْمِ الْاُمُوْرِ هغه کارونه چه په شرع کښں په طریقه د عزیمت سره مطلوب دی اگرچه مقابل کښں رخصت باندے عمل جائز دے۔

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ وَّلِيٍّ مِّنْ

او هغه څوک چه الله تعالیٰ یې بې لارې کړي نو نیشته هغه لره هیڅوک هم کوونکې

بَعْدِهٖ ؕ وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ

روستو د بې لارې کولو ته او وینې به ته ظالمانو لره هر کله چه اُوینې دوی عذاب لره

يَقُوْلُوْنَ هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ مِّنْ سَبِيْلٍ ﴿۴۴﴾

وائي به دوی آیا شته دے واپسئ ته څه لار

وَتَرٰىهُمْ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا خٰشِعِيْنَ

او وینې به ته دوی لره چه پیش کولے به شي په اُور باندے سرکوځي به وی

مِنَ الذُّلِّ يَنْظُرُوْنَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ ؕ

د وجې د ذلت نه ګوری به په سترګو کمزورو سره

وَقَالَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ

او وائي به مؤمنان یقیناً پوره تاوانیان

الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ

هغه کسان دی چه تاوان کښې اچولے دی ځانونه او بال بچ خپل

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اَلَآ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ فِيْ عَذَابٍ

په ورځ د قیامت کښې خبر شئ یقیناً ظالمان به په عذاب

س۴۴:- په دے کښې تخویف اخروی دے هغه چالره چه د مخکښې صفتونو نه محروم وی۔ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ یعنی سرهٔ د صبر او د مغفرت کول د مظلوم نه بیا هم دغه ظالم خپل ضد او عناد نه پریږدی۔ وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ دویم مفعول د تَرَى پټ دے یعنی او به وینې ته بدحال د ظالمانو او يَقُوْلُوْنَ بیان د بدحال د دوی دے هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ مِّنْ سَبِيْلٍ جواب پټ دے چه نیشته او دا سے په سورة غافر س۱۱ او سورة انعام س۲۷ او سجده س۱۲ او سورة فاطر س۳۷ کښې هم ذکر شویدی۔

مُّقِيۡمٍ ﴿٤٥﴾ وَمَا كَانَ لَهُمۡ مِّنۡ اَوۡلِيَآءَ

همیشه کښې وي۔ او نه به وي دوی لره هیڅوک مددګاران

يَنۡصُرُوۡنَهُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ؕ وَمَنۡ يُّضۡلِلِ

چه مدد اوکړي د دوی سره سوا د الله تعالیٰ نه او هغه څوک چه بې لارې کړي هغه لره

اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنۡ سَبِيۡلٍ ﴿٤٦﴾ اِسۡتَجِيۡبُوۡا لِرَبِّكُمۡ

الله تعالیٰ نو نیشته دهٔ لره هیڅ لار د هدایت۔ قبول کړئ حکمونه د الله تعالیٰ

ف۴۵:۔ دا هم تخویف اخروی دے په شپږ طریقو سره من الذل متعلق دے په خاشعین پورے یعنی دا خشوع د وجې د عبادت نه نه ده بلکه د ذلت د وجې نه ده یا متعلق دے په ینظرون پورے مِنۡ طَرۡفٍ خَفِيٍّ مِنۡ د ابتداء دپاره دے یا په معنیٰ د باء دے ضعیف نظر دا دے چه سترګے به نشي اوچته ولے د شرم د وجې نه (سوال) بل ایت سره ثابت دي چه د دوی حشر به په حال د ړوند والی کښې کیږي؟ (جواب) اول دا دے چه دا مختلف وختونه دي بعض وخت کښې به ړانده او بعض وخت کښې به ئې نظر تیز وي فَبَصَرُكَ الۡيَوۡمَ حَدِيۡدٌ او بعض وخت به کمزورے نظر وي۔ دویم جواب دا دے چه دلته طرف خفي نه مراد په زړه سره نظر کول دي نه په سترګو باندے وَقَالَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا دا وینا دپاره د ملامته کولو د کافرانو ده نو دا هم یو قسم عذاب دے وَاَهۡلِيۡهِمۡ خسران د اهل دا دے چه هغوی ئې په ځان پسے تابع کړهٔ په شرک او کفر کښې او يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ئې د دے وجې نه اوویل چه خسران په دغه ورځ باندے ښکاره شو اګرچه هغه په دنیا کښې وو یا اَهۡلِيۡهِمۡ په معنیٰ د في اهليهم دے او مراد دا دے چه اهل د دوی نه جدا شول دوی ته هیڅ نفع نشي ورکولے یا خو هغوی جنت ته لاړل په سبب د خپل عمل سره یا په اور کښې دي په نورو طبقاتو کښې د دوی د حال نه خبر نه دي۔

ف۴۶:۔ دا هم تخویف اخروی کښې داخل دے او رد دے په شرک في الولایته باندے فَمَا لَهٗ مِنۡ سَبِيۡلٍ لار د حق په دنیا کښې او لار د جنت په اخرت کښې او یا جواب دے د هغه قول هل الی مرد من سبیل بهرحال د سبیل نه خاص سبیل مراد دے ذکر د عام مراد ترینه خاص۔

مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ ؕ

مخکښ د دے نه چه راشي یو ورځ نه به وي واپسي د هغې د طرف د الله تعالیٰ نه

مَا لَكُمْ مِّنْ مَّلْجَاٍ يَّوْمَئِذٍ وَّمَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِيْرٍ ﴿۴۷﴾

نه به وي تاسو لره ځائے د پناه په دغه ورځ کښ او نه به وي تاسو لره هیڅ انکار فائیده منو .

فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ؕ

نو که چرے دوی مخ واړه وو نو نه یئ لیږلے موږ ته په دوی باندے حفاظت کوونکے

اِنْ عَلَيْكَ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَاِنَّآ اِذَآ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ

نیشته په تا باندے مګر رسول دی او یقینًا موږ کله چه اوڅکوو موږ انسان ته

مِنَّا رَحْمَةً فَرِحَ بِهَا ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ ۢ بِمَا

د خپل طرف نه رحمت لوئي کوي په هغې باندے او که چرے اورسیږي دوی ته مصیبت په وجه د هغه عملو تو چه

قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ فَاِنَّ الْاِنْسَانَ كَفُوْرٌ ﴿۴۸﴾

مخکښ لیږلے دی لاسونو د دوی نو یقینًا انسان نا شُکره دے۔

ف۴۷ :۔ په دے ایت کښ دعوت دے هغه خبر ته چه په هغې سره نجات حاصلیږي د هغه عذابونو نه چه په مخکښ ایاتونو کښ ذکر شو۔ اِسْتَجِيْبُوْا مراد د دے نه استجابت د دعوے د سورت دے او پوره انقیا د احکامو د الله تعالیٰ ۔ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ یعنی چه الله تعالیٰ ئې نه واپس کوي نو بل څوک یئ هیڅ چرے نشي واپس کولے، نَّكِيْرٍ انکار کول د ګناهونو نه یعني انکار خو به کوي لیکن هغه انکار ورته فائیده نشي ورکولے ځکه چه په شهادتونو به ثابتیږي او د مجاهد په نیز مراد د نکیر نه مددګار دے یعني دفع کوونکے د عذاب۔

ف۴۸ :۔ دا مقابل د استجیبوا دے او زجر دے اعراض کوونکو ته او تسلّي ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته۔ فَاِنْ اَعْرَضُوْا جزا ئې پټه ده (یعني نیشته په تا باندے هیڅ حساب) فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ دا علت د جزاء دے۔ وَاِنَّآ اِذَآ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ دا زجر دے او بیان د حالت د اعراض کولو دے یعني په حال د نعمت کښ اعراض په طریقه د تکبر سره کوي او په حالت د مصیبت کښ اعراض په طریقه د کفران سره کوي۔

**فائده** :۔ د رحمت سره ئې اذقنا ذکر کړے دے او سیئة سره تصبهم، اشاره ده چه دے انسان ته لږ غوندے نعمت اورسي (رپاڅے په بل مخ)

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ يَخْلُقُ

خاص الله تعالیٰ لره بادشاهي دَ اسمانو او دَ زمکې ده پیدا کوي

مَا يَشَاۗءُ ۭ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ

هغه څه چه اوغواړي. بخشش درکوي چاته چه اوغواړي لونړه او بخشش درکوي

لِمَنْ يَّشَاۗءُ الذُّكُوْرَ ﴿۴۹﴾ اَوْ يُزَوِّجُهُمْ

چاته چه اوغواړي ځامن یا دوه قسمونه درکوي

ذُكْرَانًا وَّاِنَاثًا ۚ وَيَجْعَلُ مَنْ يَّشَاۗءُ

بعضوته ځامن او لونړه او جوړوي چا لره چه اوغواړي

عَقِيْمًا ۭ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ﴿۵۰﴾ وَمَا كَانَ

شنړ یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے قدرت والا دے. او نشي کیدلے

نو تکبر کوي یا دا چه دَ دنیا نعمتونه په مقابله دَ جنت کښې لږ دي دَ دے وجې نه ئې په ذوق سره تعبیر اوکړو او په سیئة کښې په لږ باندے غلے وي لیکن چه مصیبت ډیر شي نو کفران ښکاره کړي او اصابة په ډیر والي باندے دلالت کوي.

یله فائده: دَ اولے جملے په سر کښې ئې اذا او دَ دویمے په سر کښې ان راوړو اشاره ده چه نعمتونه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه اصل څیز دے او مصیبتونه عارضي څیز دے.

بله فائده: په حال دَ نعمت کښې ئې مفرد ذکر کړو او په حال دَ مصیبت کښې جمع ضمیر اګر چه انسان اسم جنس دے خو په دے کښې اشاره ده چه په حال دَ تکبر کښې انسان ځان لره دَ نورو خلقونه مستغني بے پرواه اوګنړي او په حال دَ مصیبت کښې نورو خلقو سره یو ځائے کیږي او هغوی ته فریادونه کوي او دَ الله تعالیٰ ناشکري کوي.

۴۹ ۵۰:- دا دلیل عقلي دے په توحید فی الولایة باندے کلّي بادشاهي او پیدائش او تقسیم دَ اولاد دا ټول الله تعالیٰ لره خاص دي ایت ئې په اثبات دَ مُلک سره شورو کړو اشاره ده چه دا روستو نظام دَ بادشاهۍ نظام دے بیا يَخْلُقُ مَا يَشَاۗءُ او يَهَبُ دواړه ئې ذکر کړه اشاره ده چه پیدا کول

وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَآئِ

هیڅ بشر لره چه خبرے اوکړی هغه سره الله تعالیٰ مګر په وحی سره زړهٔ ته د هغه یا روستو

حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِيَ بِإِذْنِهِ

د پردے نه یا او لیږی ملک نو وحی کوی په حکم د الله تعالیٰ سره

دوه قسمه دی اول دا چه د عدم نه وجود ته راولی بغیر د څه مادے نه دویم دا چه د یو څیز نه بل څیز پیدا کړی. بیائے د انسانانو د اولاد په لحاظ سره درے قسمونه ذکر کړل او اخری ئے بے اولاده ذکر کړو بیا د دے تقسیم علت ئے ذکر کړو علیم قدیر دا ډیر افصح ابلغ بهترین ترتیب دے. (فوائد)

**اوله فائده:-** دا چه اناثاً ئے مخکښ ذکر کړو اشاره ده کثرت د زنانو ته چه د قیامت د علاماتو نه ده او قرطبی د واثله نه نقل کړے دی چه برکت د زنانه دا دے چه اول ترینه لور پیدا شی بیا ورپسے ځوئے.

**دویمه فائده** اناثاً نکره او الذکور ئے معرفه راوړے ده اشاره ده چه زنانه په حالت د ناآشنائی پکار ده یعنی پرده نشینه چه نه پیژندے کیږی او نارینه خو ښکاره وی پیژندے کیږی.

**دریمه فائده**، یزوجهم لفظ عام دے چه په یو کرت نارینه او زنانه دواړه ورکړی چه هغوی ته توامین ویلے کیږی یا په جدا جدا وخت کښ ورکړی بیا اصل په تزویج کښ نارینه دے د دے وجے نه ذکر اناثاً ئے مخکښ کړو په اناثاً باندے.

**څلورمه فائده،** مفسرینو دا تقسیم په انبیاء علیهم السلام کښ ذکر کړے دے لوط علیه السّلام د اول قسم مصداق ابراهیم علیه السّلام د دویم قسم اخری نبی صلّی الله علیه وسلّم د دریم قسم او یحییٰ وعیسیٰ علیهما السّلام د څلورم قسم. لیکن دا په طریقه د تخصیص سره نه دے بلکه په طریقه د مثال سره دے او اشاره ده چه انبیاء علیهم السّلام هم په خپل اولاد کښ اختیار نه لری بلکه الله تعالیٰ ته محتاج دی نو اولیاء بزرګان به څه رنګه چاته اولاد ورکړی لکه چه مشرکان خلق اولاد د بزرګانو او د هغوی د قبرونو نه غواړی نو دا صریح شرک دے.

**پنځمه فائده**، دا قسمونه په اعتبار د غالب او اکثر سره دی نو په دے سره انکار د خنثیٰ نه نه شی کیدے ځکه چه لفظ د یخلق مایشاء او قدیر خنثیٰ پیدا کولو ته شامل دے.

مَا يَشَآءُ ۚ إِنَّهُ عَلِيٌّ حَكِيمٌ ﴿٥١﴾ وَكَذَٰلِكَ

خه چه اوغواړی یقیناً هغه پورته دے حکمتونو والا دے - او دغه شان

أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا ۚ مَا كُنتَ

وحی کړیده موږ تاته د روح (قرآن) د وجه د حکم زموږ نه نه وے ته

تَدْرِي مَا الْكِتَٰبُ وَلَا الْإِيمَٰنُ وَلَٰكِن

چه پوهیدلے چه څه دے کتاب او نه په تفصیل د ایمان کښ لیکن

سله :. مخکښ ایت کښ تقسیم د نعمتِ ظاهریه وو اوس په دے ایت کښ تقسیم د نعمت باطنیه دے چه وحی ده او په دے ایت کښ اثبات د عجز د انبیاء علیهم السلام دے د مرتبې د الوهیت نه - کلام د الله تعالیٰ د بشر سره، د دے درے طریقے دی په طریقه د حصر سره اول طریقه وحی ګډ دلته خاص معنیٰ مراد ده یعنی په زړه د نبی کښ واچوی بغیر د واسطے د ملک نه که په بیدارئے کښ وی او که په خوب کښ وی لکه په حدیث صحیح کښ وارد دی "القی الله فی روعی ان نفسا لن تموت حتیٰ تستکمل رزقها (الله تعالیٰ زما په زړه کښ واچوله چه هیڅ نفس به نه مرکیږی تر دے پورے چه خپله روزی پوره کړی) او هم دا سے خوب د ابراهیم علیه السلام په ذبح د ولد سره - دویمه طریقه أَوْ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ یعنی خبرے حقیقتاً وے بغیر د لیدلو د الله نه لکه په معراج کښ. دریمه طریقه أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا دا عطف دے په معنیٰ د وَحْيًا باندے هغه په تاویل د ان یوحی الیه و ان یرسل رسولا مراد د رسول نه جبرئیل علیه السلام دے او دا روستنے طریقه بیا په دوه قسمه ده لکه په دویم حدیث د بخاری کښ ذکر شویدی یو دا چه د جبرئیل اواز پیشان د صلصلة الجرس وی او دا په پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندے ډیر ګران وو لیکن هغه به ترینه ضروری وحی یاده کړه - دویمه طریقه چه جبرئیل به متشکل شو په شکل د یو سړی باندے او نبی صلی الله علیه وسلم سره به ئے ښکاره خبرے کولے او دا اسانه طریقه وه -

**فائده :-** د دے ایت نه دلیل نیولے شوے چه انبیاء علیهم السلام په دنیا کښ د الله تعالیٰ ملاقات نشی کولے صرف کلام الله اوریدل دی نو دا یو دلیل دے چه کلام صفت د الله تعالیٰ دے -

جَعَلْنٰهُ نُوْرًا نَّهْدِیْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ

(او کرځولو موږ دا قرآن رڼا چه هدایت کوو موږ په دے سره هغه چاته چه اوغواړو موږ دَ

عِبَادِنَا ؕ وَ اِنَّكَ لَتَهْدِیْۤ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ﴿۵۲﴾

بندګانو خپلو نه او یقینًا ته خامخا هدایت کوے لارے نیغ ته

۵۲:- دا ترغیب دے قرآن کریم ته او صداقت دَ قرآن دے متعلق دے دَ ابتداء دَ سورت سره او اشاره ده چه قرآن کریم په هغه طریقو سره نازل شوید ے کوم چه په مخکښ ایت کښ ذکر شوید ی. رُوْحًا مراد تربیه قرآن دے ځکه قرآن دَ حیات روحانیه دے لکه چه روح حیوانی سبب دَ حیات بدنیه دے او دَ دے وجے نه قرآن ته ربیع القلوب هم وائی (سپرلے دَ زړونو) مَا كُنْتَ تَدْرِیْ مَا الْكِتٰبُ مراد تربیه قرآن کریم دے یعنی مخکښ دَ نزول دَ قرآن نه نبی صلی الله علیه وسلم دَ قرآن نه ناخبره وو لکه په سورة یوسف سـ۳ او سورة یونس سـ۱۶ کښ یا مراد دَ کتاب نه جنس نازل کتابونه دی یعنی تورات، انجیل، زبور یا مراد دَ کتاب نه لیکل دی.

وَلَا الْاِیْمَانُ مراد دے نه ایمان تفصیلی دے یعنی تفصیلات او شرائع دَ ایمان مخکښ دَ نبوت نه نبی صلی الله علیه وسلم ته معلوم نه وو یا مراد تربیه طریقه دَ دعوت ده ایمان ته یا مراد تربیه اهلِ ایمان دی. او دا توجیهات دَ دے وجے نه لازم دی چه ایمان اجمالی په تمام انبیاء علیهم السلام کښ قبل النبوت موجود وی قاضی عیاض په شفاء کښ ویلی دی چه انبیاء علیهم السلام معصوم دی قبل النبوت دَ جهل با لله او صفات الله او دَ شک کولو نه په هغے کښ.

او خطیب شربینی ویلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم مخکښ دَ نبوت نه اقرار کوونکے وو په وحدانیت دَ الله تعالی او دَ هغه په عظمت باندے موځ او حج او عمره یې کوله او لات ومنات به یې بدګڼل او منا بوحه دَ نوم دَ غیرالله یې نه خوړله او دا رنګ لیکلے شوی دی چه صفاتِ الٰهیه دوه قسمونه دی یو قسم هغه دے چه په عقل سره معلومیږی او دویم هغه چه په صرف نقلی دلیلونو سره معلومیږی نو قبل دَ نبوت نه نبی په اوّل قسم باندے عقیده لری. او کوم روایت چه دلالت کوی چه انبیاء علیهم السلام او زمونږ اخری نبی قبل دَ نبوت نه شرک کوؤ نو هغه موضوع احادیث او روایات دی.

فائده:- دَ دے ایت نه معلومه شوه چه ایمان تفصیلی (یا تے په بل مخ)

صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا

لار د الله تعالیٰ هغه ذات چه خاص هغه لره هغه څیزونه دی چه په اسمانونو کښ دی او هغه څیزونه چه

فِی الْاَرْضِ ؕ اَلَآ اِلَی اللّٰهِ تَصِیْرُ الْاُمُوْرُ ﴿۵۳﴾

په زمکه کښ دی خبر شئ خاص الله تعالیٰ ته ورګرځی ټول کارونه.

بغیر د قرآن نه نه حاصلیږی نو هغه خبره چه ویلے کیږی چه ایمان د قرآن نه مخکښ دے نو مراد د هغې نه اجمالی ایمان دے. وَاِنَّكَ لَتَهْدِیْٓ په دے کښ اثبات د رسالت د رسول دے او هدایت نه مراد دعوت وارشاد دے.

۵۳:- دا ذکر د عظمتِ شان د صراط مستقیم دے الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ دا اشاره ده مقصد د صراط ته چه توحید دے او متعلق دے د ابتداء د سورت سره او رد د شرک فی الولایت دے اَلَآ اِلَی اللّٰهِ تَصِیْرُ الْاُمُوْرُ په دے سره دفع د وهم کوی که څوک وهم کوی چه په بعض څیزونو کښ خو د بندګانو ملکیت هم شته نو څه رنګ او یلے شو لهٗ ما فی السموات وما فی الارض؟ حاصل جواب دا دے چه په حقیقت او په عاقبت کښ د دے ټولو ملکیت الله تعالیٰ ته ورګرځی.

الحمد لله چه تفسیر د سورة شوریٰ ختم شو.

سُوْرَةُ الزُّخْرُف ۴۳ مَكِّيَّةٌ ۶۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اٰيَاتُهَا ۸۹ رُكُوْعَاتُهَا ۷

حٰمٓ ﴿۱﴾ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿۲﴾ اِنَّا جَعَلْنٰهُ

(الله تعالیٰ ښه پوهه دے ددے په مراد باندے. قسم دے په کتاب واضح بیان کوونکی باندے (ګواهی کوی) چه یقینًا رالیږلے دے مونږ دا

ع ۱۱

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة زخرف

**ربط** ددے سورت د شوریٰ سره په ډیرو وجوه سره دے اوله وجه داده چه په هغه سورة کښ امر وؤ په تحکیم د قرآن کریم چه هغه حجت د مؤحدینو دے نو په دے سورت کښ تردید دے په حجتونو د مشرکانو باندے. دویمه وجه داده چه مخکښ ردوؤ په بعض شبهاتو د مشرکینو باندے نو په دے سورت کښ رد دے په مشهوره شبهه د هغوی باندے چه هغه عقیده د شفاعت شرکیه قهریه ده. دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښ زجرونه وو په مشرکانو باندے نو په دے سورت کښ رد او زجرونه په اقسامو د شرک باندے دی څلورمه وجه داده چه په سورة شوریٰ کښ صداقت د قرآن او دعوت وؤ فیصلے د قرآن ته نو په دے سورت کښ زجر دے په اعراض د قرآن کریم باندے.

**دعویٰ د دے سورت** رد کول دی په حجتونو د مشرکانو باندے یو حجت د هغوی مشیت د الله تعالیٰ دے په شرک باندے او دویم حجت عقیدهٔ د شفاعت شرکیه او دریم حجت اتباع د اباؤ ده په ۲۰ سـ ۸۶ سـ ۲۲ کښ او ددے سره رد دے په اقسامو د شرک باندے شرک فی العبادة و فی الدعا و فی التصرف او په عقیدهٔ د اتخاذ الولد باندے په درے دلیلونو نقلیو او اته دلیلونو عقلیو سره.

**خلاصه د سورت** داده چه دا تقسیم دے درے بابونو ته اول باب تر ۳۶ پورے دے په دے کښ ذکر د صداقت د قرآن دے په تهه طریقو سره. بیا زجر او تخویف دنیوی دے. بیا څلور عقلی دلیلونه دی. بیا زجر دے په مشرکین بالملائکه باندے او د هغوی په دوه دلیلونو باندے او دلیل نقلی دے د ابراهیم علیه السّلام ته بیا دوه زجرونه دی او تزهید فی الدنیا ذکر کوی.

### تفسیر

سـ۱ سـ۲ په دے کښ قسم ذکر کوی په قرآن باندے راپاتے په بل مخ)

قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٣﴾ وَاِنَّهٗ

| دا قران | دَ عربی ژبې | دَ دې دَپاره | چه دَ عقل نه کار واخلئ | او یقیناً دې |
|---|---|---|---|---|

دَپاره دَ فائدې دَ شهادت پیش کولو او تفصیل دَ دې په ابتدا دَ سورة یٰسٓ کښې تیر شوې دې. اَلْمُبِيْنِ دا متعدی دې یعنی "ښکاره کوؤنکې لار دَ توحید او دَ حق لره دَ لارې دَ مشرکانو ته" نو په دې کښې اشاره ده چه دِې سورت کښې وضاحت دې په دفع کولو دَ شبهاتو سره او په دلیلونو نقلیو سره یا لفظ مبین لازمی دې یعنی واضح او صفا مضمون والا دې.

۳: دا جواب قسم دې حاصل دا دې چه دَ قران وضاحت چه اعلیٰ مرتبه کښې دې شاهد دې چه دا دَ الله تعالیٰ کتاب دې دَ بنده کتاب نه دې او دا رنګ دَ هر عقل والا دَ پوهیدلو کتاب دې (سوال) دَ جعلنا ظاهری معنیٰ خو پیدا کول دی نو دَ دې نه معلومه شوه چه قران کریم مخلوق دې او حال دا چه قران غیر مخلوق صفت دَ الله تعالیٰ دې او دا حق مذهب دې؟ (جواب) اول دا دې چه دلته مقصد توصیف دَ قران دې په عربیت سره دَ پاره دَ ترغیب مخاطبینو عربو ته او جعل په معنیٰ تصییر دې یعنی قران په لغت عربیه کښې راليږلې دې او مشرکینو دَ قران په خلق او عدم خلق کښې بحث نه دې کړې نو په هغې کښې یو جانب ثابتولو ته ضرورت نه وؤ او هغه په نورو دلیلونو سره ثابت شوې دې چه مخلوق نه دې. دویم جواب قرطبی ویلې دی چه جعلنا په معنیٰ دَ سَمَّيْنَاهُ (نوم مو ایخې دې) او وصفناه (صفت مو ورکړې دې) او انزلناه او بيّناه (نازل کړیدې او بیان کړې دې مونږ) او په معنیٰ دَ انزلناه غوره دې ځکه چه قران کښې په دې لفظ سره ډیر ذکر دې لکه سورة یوسف ۲ او ابن کثیر هم دا معنیٰ غوره کړې ده. دریم جواب جعل په معنیٰ دَ تقدیر او دَ کتابت سره دې یعنی لیکلې دې مونږ په تقدیر کښې قران عربی او هغه تقدیر لوح محفوظ دې او دَ دې تائید په روح المعانی کښې دَ طاؤس نه نقل کړې دې چه یو سړې دَ حضر موت مقام نه راغې او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه ئې تپوس اوکړو چه ماله خبر راکړه چه قران کلام الله دې او که خَلق دې دَ مخلوق دَ الله تعالیٰ نه هغه جواب ورکړو چه کلام الله دې دَ آیت ئې اولوستلو حتی یسمع کلام الله (توبه) نو بیا هغه سړی دا آیت ذکر کړو انا جعلناه قرانًا عربیًّا نو ابن عباس رضی الله عنهما ورته اُوئیل چه دَ دې مطلب دا دې چه الله تعالیٰ لیکلې دې په لوح محفوظ کښې په عربی سره او آیت ئې اولوستلو بل هو قران مجید فی لوح محفوظ (بروج). او هغه جواب

فِيٓ أُمِّ الْكِتٰبِ لَدَيْنَا لَعَلِيٌّ حَكِيمٌ ﴿٤﴾

په اصل دَ کتابونو کښې دے زمونږ سره دے خامخا اوچت دے حکمتونو والا۔

أَفَنَضْرِبُ عَنكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَن كُنتُمْ

آیا نو واړوو مونږ ستاسو نه نصیحت په اړولو سره دَ دے وجے نه چه تاسو یئ

قَوْمًا مُّسْرِفِينَ ﴿٥﴾ وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِن نَّبِيٍّ

قوم مشرکان۔ او ډیر لیږلی دی مونږ پیغمبران

چه امام رازی او شربینی وغیرهما ذکر کړے دے چه مراد دَ دے نه کلام لفظی دے او هغه مخلوق دے دا قول غلط دے ځکه چه تقسیم دَ کلام ۂ لفظی او نفسی ته بدعت دے او قرآن کریم ښکاره دلیلونه دی چه مسموع مقروء متلو کلام الله دے او دا مذهب دَ امام ابوحنیفه رحمة الله ذکر کړے دے فقه اکبر کښې او شرح عقیدة الطحاویه په ص۱۸۸ کښې په تفصیل سره او امام ذهبی په کتاب العلو للعلی الغفار کښې دَ امام ابویوسف مناظرة دَ امام ابوحنیفه رحمهما الله تعالیٰ سره ذکر کړے ده چه امام صاحب رجوع اوکړه قول دَ امام ابویوسف ته او ویل ئے چه څوک وائی چه قرآن مخلوق دے نو هغه کافر دے۔ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ په دے کښې اشاره ده چه قرآن کریم کښې دَ احکامو او معانی او مقاصدو او حکمتونو حاصلولو دَپاره تعقل تدبر کول ضروری دی ځکه چه دا ئے مقصد دَ انزال کړځولے دے۔

ف۴:۔ دا هم دَ قرآن صفات دی دَپاره دَ تصدیق او ترغیب ورکولو وَإِنَّهُ فِيٓ أُمِّ الْكِتٰبِ دا رنګ سورة بروج ۲۲ او سورة واقعه ۷۸ کښې دی او دا دلیل دے چه دا قرآن په دے خاص ترتیب سره په لوح محفوظ کښې په اصل ترتیب سره دے هاں په نازلولو کښې ترتیب په سبب دَ واقعاتو سره په بله طریقه سره دے۔ حَكِيمٌ خاوند دَ حکمتونو دے یا محکم دے۔

ف۵:۔ دا زجر دے په اعراض سره دَ قرآن نه په طریقه دَ استفهام انکاری سره یعنی که چرے مشرکان وائی چه مونږ خو توجه نه متو نو مونږ نه دا قرآن ولے بیانوئے او مونږ وربانде تنګوئے نو دَ هغوی جواب دا دے چه ستاسو دَ شرک او دَ انکار دَ وجے نه قرآن نازلول او قرآن بیانول نه پریږدو۔ صَفْحًا دا مفعول مطلق دے بغیر دَ لفظ دَ فعل نه لیکن معنیٰ یوه ده۔ أَن كُنتُمْ په تقدیر ( پاتے په بل مخ )

فِي الْأَوَّلِينَ ﴿٦﴾ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن نَّبِيٍّ

په مخکنو خلقو کښې۔ او نه راتلو هغوی ته هیڅ پیغمبر

إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٧﴾ فَأَهْلَكْنَا

مګر دوی به په هغه پورې ټوقې کولې۔ نو هلاک کړل مونږ

أَشَدَّ مِنْهُم بَطْشًا وَمَضَىٰ مَثَلُ الْأَوَّلِينَ ﴿٨﴾

ډیر سخت د دوی نه په نیولو کښې او تیرے شویدی نمونې د زړو خلقو۔

وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ

او که چرے ته تپوس اوکړے د دوی نه چا پیدا کړیدی اسمانونه

وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ

او زمکه خامخا دوی به وائی۔ پیدا کړیدی دا زور اور

الْعَلِيمُ ﴿٩﴾ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ

ډیر علم والا هغه ذات دے چه جوړه کړے ده تاسو لره زمکه

د لام سره علت دے د افنضرب د پاره یا علت دے انکار د پاره یعنی لا نضرب عنکم مونږ قران ځکه ستاسو نه اړوو چه تاسو مشرکان یئ ورته محتاج یئ۔

سـ۶ سـ۸ په دے ایاتونو کښې تسلی ده رسول الله صلی علیه وسلم ته او تخویف دنیوی دے منکرینو ته روستو د زجر ورکولو نه۔ کم خبریه دے په معنی د ډیر والی دے۔ په اول ایت کښې ارسال د رسولانو ذکر دے او په دویم ایت کښې استهزاء د منکرینو ذکر ده چه سبب د عذاب دے او په دریم ایت کښې مسبّب ذکر دے چه عذاب دے مِنْهُمْ ضمیر هغه مشرکینو ته راجع دے چه هغوی مخاطب وو په تیر شوی ایت کښې۔ أَشَدَّ مِنْهُم بَطْشًا طاقت په سبب د ډیر مالونو او غټو بدنونو او د ګنړو لښکرو د هغوی۔ مَثَلُ صفت او حالات او خبر ته ویلې کیږی۔

سـ۹ :۔ دا دلیل عقلی اعترافی دے په مسئله د توحید باندے او دا اقرار د دوی په سورة عنکبوت سـ۶۱ لقمان سـ۲۵ کښې ذکر دے۔ او په دے ایت کښې په جواب کښې لفظ د خلقهن د تاکید د اقرار د پاره ذکر کړے دے۔

مَهْدًا وَّجَعَلَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا لَّعَلَّكُمْ

بستره دَ آرام او جوړے کړیدی تاسو لره په هغې کښې لارے دَ دے دَپاره چه تاسو

تَهْتَدُونَ ⑩ وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ

هدایت او مومے۔ او هغه ذات دے چه رادرولی دی دَ آسمان دَ طرف نه

مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَأَنْشَرْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا

اوبه په اندازه تو تازه کړیده موږ په هغې سره زمکه دَ چه

كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ⑪ وَالَّذِي خَلَقَ

دغه شان به تاسو راویستلے کیږے۔ او هغه ذات دے چه پیدا کړیدی

الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْفُلْكِ

جوړے ټول او جوړے کړیدی ستاسو دَپاره دَ کشتو

سنا :- دا دویم دلیل دے په دے کښې اقرار نیشته ځکه چه لکم ئے ویلے دے لنا ئے نه دے ویلے نو دا دَ تیرشوی سره په طریقه دَ تنویر (ډیر وضاحت) سره ذکر کړے دے یعنی هر کله چه خالق آسمانونو او زمکو لره منے تو دا روستو قدرتونه دَ هغه په ضرور منلو په دے آیت کښې دوه نمونے دَ قدرتِ الٰهیه ذکر کړے دی۔ مهد او مهاد زانګو او غیګه دَ مور دَ پاره دَ بچی ځائے دَ آرام وی نو دا رنګ زمکه کښې دَ اوسیدلو دَ پاره بے شماره نعمتونه او اسباب دَ آرام شته دے۔ سُبُلًا لارے دَ سفر کولو یا اسباب دَ روزئے دَ ګټوند۔ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ رسید ل مقصد ته مراد دی که مقصد دَ دنیاوی اوکه دَ دین وی۔

سلا :- دا دریم دلیل دے په دے کښې هم دوه عظیم قدرتونه ذکر کوی بارانونه ورول او بوټی او فصلونه پیدا کول۔ بِقَدَرٍ په دے کښې اشاره ده چه کوم باران دَ قدر نه بهرشی نو هغه دَ عذاب باران وی لکه دَ قوم نوح علیه السّلام۔ بَلْدَةً مَّيْتًا بلده په معنیٰ دَ هغه مکان دے چه خلق پکښې جمع او ډیره وی دَ ژوند تیرولو دَپاره۔ او مکان مذکر دے نو میتًا ئے دَ دے وجې نه مذکر راوړو۔ كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ اشاره ده چه څه رنګه دا دلیل دَ توحید دَ الله تعالیٰ دے نو دا رنګ دلیل دَ بعث بعد الموت هم دے او دا سے دَ دے جملے په ذکر کولو سره یاداشت دَ آخرت دے دَپاره دَ دے چه په وخت دَ لیدلو دَ فصلونو او باغونو دَ دُنیا کښې دَ آخرت نه غفلت رانشی۔

وَالْاَنْعَامِ مَا تَرْكَبُوْنَ ﴿۱۲﴾ لِتَسْتَوٗا عَلٰى

او خاروؤ نه هغه چه تاسو پرے سورلی کوئ دَ پاره دَ دے چه برابر شئ په

ظُهُوْرِهٖ ثُمَّ تَذْكُرُوْا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ

شاګانو دَ هغے باندے بیا په یاد کړئ نعمت دَ رب ستاسو

اِذَا اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ وَتَقُوْلُوْا سُبْحٰنَ الَّذِىْ

کله چه برابر کینئ په هغے باندے او اوبه وائی پاکی ده هغه ذات لره

سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ ﴿۱۳﴾

چه تابع کړئ دے موږ دَ پاره دا او نهوو موږ دے لره قابو کوؤنکی ۔

ف ۱۲ :۔ دا خلورم دلیل عقلی دے په دے کښ دوه انعامات عامه ذکر کړے دی۔ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا دا لفظ شامل دے حیواناتو او نباتاتو او اوصافو او اطرافو او زمانیانو او مکاناتو ټولو ته مذکر مؤنث، خوګ تریخ، سپین تور، بره ښکته، خ طرف کس طرف، اسمان زمکه، ماضی او مستقبل، اوږے او ژمے، سیرلے او خزان، شپه او ورځ، رنړا او تیاره، جنّت او دوزخ، خیر او شر، فقر او غنا، ایمان او کفر وغیره۔ زوج په اصل کښ هغه شے دے چه دَ بل سره یو وجه سره مناسبت لری دَ پاره دَ تکمیل نو دَ دے وجے نه الله تعالیٰ دَ زوجیت نه منزّه دے او هم دا سے په سورة یٰس ف ۳۶ او ذاریات ف ۴۹ کښ شته۔ مِنَ الْفُلْكِ وَالْاَنْعَامِ مِن بعضیه دے ځکه بعضے کشتئ او خاروی دَ سورلے دَ پاره لائق نه وی یا مِن بیانیه دے دَ مَا روستنی دَ پاره۔

ف ۱۳ ۱۴ :۔ په دے کښ ادب دَ سورلے دے دَ پاره دَ دے چه انسان په هیڅ وخت کښ او خاص دَ سورلے په وخت (چه هغه اکثر دَ هلاکت وخت وی یا سبب دَ تکبر او دَ لوئی وی) الله تعالیٰ لره هیر نه کړی او دَ هغه توحید او دَ هغه نعمتونه او قدرتونه هر وخت یاد اوساتی او حالت دَ مرګ لره هم یاد لری۔ او دا ادب په ژبه سره هم په حدیث سره ثابت دے او په زړه کښ هم دا عقیده ساتل فرض دی. سنت طریقه دا ده چه په رکاب کښ خپه کیدی نو اول به بسم الله اُوائی بیا به الله اکبر اُوائی او چه سورلے باندے کیښی نو الحمد لله به اُوائی دینه اشاره ده په دے قول کښ ثم تذکروا نعمة ربکم اذا استویتم علیه، او بیا به سبحان الذی اه اُوائی۔ ضمیر په ظهوره کښ راجع دے مَا ترکبون ته او هغه جنس دے او عَلَيْهِ ضمیر هم

وَاِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ ﴿۱۴﴾ وَجَعَلُوْا لَهٗ

او یقینًا مونږ خپل رب طرف ته خامخا به واپس ورګرځو ۔ او ګرځولې دوی الله تعالیٰ لره

مِنْ عِبَادِهٖ جُزْءًا ۭ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَكَفُوْرٌ

دَ بندګانو دَ هغه نه ټکړے یقینًا دا انسان خامخا ناشکره

مُّبِيْنٌ ﴿۱۵﴾ اَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنٰتٍ وَّ

ښکاره دے ۔ ایا نیولے دی الله تعالیٰ دَ هغه چانه چه پیدا کړیدی لونړه او

اَصْفٰىكُمْ بِالْبَنِيْنَ ﴿۱۶﴾ وَاِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ

غوره یئے کړے تاسو په ځامنو سره ۔ او کله چه زیرے ورکړیشی یو کس دَ دوی ته

---

ماترکبون ته راجع دے یا ظهر ته راجع دے چه په ضمن دَ ظهور کښ دے . الَّذِیْ سَخَّرَ لَنَا په دے کښ عظمة دَ الله دے وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ په دے کښ ذکر دَ عجز دَ انسان دے وَاِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ په دے جمله کښ یاد داشت دَ مرګ دے په طریقه دَ قیاس سره په حالت دَ سورلے باندے یعنی لکه چه اوس دا انسان په سورلے باندے سور دے او یو طرف ته روان دے نو داسے به یو وخت دَ خلقو په اوګو باندے سور وی او دَ مقبرے په طرف به روان وی ۔

سـ۱۵ :- دا متعلق دے دَ لئن سألتهم سره او زجر دے په شرک باندے یعنی چه دا اومنی چه الله تعالیٰ خالق او قادر دے نو بیا دَ هغه اولاد ته او شریک ته څه حاجت دے چه مشرکان عقیده ساتی چه فلان بزرګ دَ الله تعالیٰ ولد دے او ملائک دَ الله تعالیٰ بنات دی او فلانے ولی دَ الله تعالیٰ نازولے او دَ برخے خاوند دے ۔ جُزْءًا اولاد هم ټکړه ده او شریک هم یو قسم ټکړه وی دَ دے وجے نه دَ قتاده نه نقل دے چه جزء هر معبود من دون الله ته شامل دے او اکثر مفسرینو دلته بنات (لونړه) مراد کړے دی۔

سـ۱۶ :- دا رد په مشرکین بالملائکه باندے دے چه دوی عقیده لری چه دا ملائک دَ الله تعالیٰ لونړه دی یعنی دا خبره په عقل او عرف کښ ډیره عجیبه ده چه الله تعالیٰ قادر دے په اولاد ورکولو نو تاسو ته ئے ځامن درکوی او الله تعالیٰ ځان له لونړه نیسی او معلومه ده چه جنس دَ تارینه اشرف دے دَ جنس دَ زنانه نه۔ او هم دغسے په سورة نجم سـ۲۱ سـ۲۲ کښ دی۔

ع ۵

بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمٰنِ مَثَلًا ظَلَّ وَجْهُهٗ

په هغه څیز چه بیانوی | دَ رحمان دَپاره | په صفت کښی نو شی | مخ دَ هغه

مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ ﴿١٧﴾ اَوَمَنْ يُّنَشَّؤُا

تک تور | او | دے دَ غم نه ډک وی - | ایا اودوی نسبت کوی الله تعالیٰ ته) دَ هغه چا چه پالنه ئے کیږی کښی

فِي الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِيْنٍ ﴿١٨﴾

په | کالو کښی | او حال دا چه هغه په حالت دَ جګړه کښی صفا خبره نشی کولے.

س۱۷:. په دے کښی رد او زجر دے په بله طریقه سره چه هغه مخلوق چه تاسو ئې طبعًا دَځان دَپاره بد ګڼړئے نو دَ هغے الله تعالیٰ ته نسبت کوئے نو دا ختو بے عزتی دَ الله تعالیٰ ده په ډیره بے عزتی سره او دا سے سورۃ نحل ۵۸ کښی تیر شوے دی۔ مَثَلًا په معنیٰ دَ وصف دے یعنی لور کیدل یا په معنیٰ دَ مشابه دے ځکه چه ولد شبه دَ والد وی۔ ظَلَّ دا مستعملیږی دَ ورځے دَپاره یعنی ټوله ورځ دَ دهٔ مخ تور وی او دا تخصیص ئې په دے وجه سره او کړو چه دَ شپے خو تور رنګ نه ښکاره کیږی۔ كَظِيْمٌ چه دَ غم نه ډک وی او دَ هغے وجه نه خبرے هم نشی کولے۔

س۱۸:. په دے کښی زجر دے په بله طریقه سره یعنی زنانه ضعیف جنس دے په نسبت دَ نارینه نو څه رنګ هغے ضعیف جنس هغه ذات ته نسبت کوئے چه علیم او قدیر دے۔ او ضعف ئې په دوه طریقے سره ذکر دے یو ضعف دَ زینت دَ زنانه دے ځکه چه زنانه بغیر دَ کالو نه بے ډوله ښکاریږی او نارینه خپل زینت کښی کالو ته محتاج نه دے دویم ضعف دَ کلام او دَ مقابلے کولو په خبرو کښی چه دَ حیا دَ وجے نه خپل مقصد او دلیل پوره نه شی ښکاره کولے۔ اَوَمَنْ يُّنَشَّؤُا فِي الْحِلْيَةِ دا دلیل دے چه دَ زنانه دَپاره کالی دَ سپینو او سرو جائز دی او احادیث په دے کښی ډیر وارد دی او کوم احادیث چه دَ سرو زرو دَ استعمال دَ منع په باره کښی راغلی دی هغه دَ بعض محدثینو په نیز په هغه حالت حمل دی چه زکوٰة ئې نه ادا کوی او دَ بعض په نیز حمل دی په خلاف اولے او په حالت دَ اسراف باندے۔ اَوَمَنْ دا لفظ یا منصوب دے په فعل پټ سره یعنی تسبوا لله الله او عبدوا من ینشأ۔ یا مرفوع مبتدا ده او خبر ئې په دغه عبارات سره پټ دے۔

وَجَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ الَّذِيْنَ هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ

او گرځوي دوي ملائک هغه چه بندګان د رحمان دي

اِنَاثًا ؕ اَشَهِدُوْا خَلْقَهُمْ ؕ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ

زنانه ایا دوي لیدلي دي پیدائیش د هغوي خامخا لیکلے کیږي بیان د دوي

وَيُسْئَلُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَقَالُوْا لَوْ شَآءَ الرَّحْمٰنُ

او تپوس ترینه کیدیشي - او دوي وائي که چرے غوښتے رحمان

مَا عَبَدْنٰهُمْ ؕ مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۗ

موږ به بندګي نه وه کړے د دوي نیشته دوي لره په دے باندے هیڅ دلیل

اِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ﴿۲۰﴾ اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا

نه دي دوي مګر په توک خبرے کوي - ایا ورکړے دے موږ دوي ته کتاب

۱۹ :- مخکښ زجر وؤ په دے خبره چه ملائکو ته ئے بنات د الله تعالیٰ ویل اوس زجر دے چه ملائکو ته مؤنث وائي او د هغوي صفتونه په تانیث سره کوي لکه په سورة نجم ۲۷ او صافات ۱۵۰ کښ د الَّذِيْنَ هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ دا صحیح عقیده ده په باره د ملائکو کښ په جواب د هغه چا چه تپوس اوکړي چه ملائک مذکر دي او که مؤنث دي او دارد دے په هغه کسانو چه ملائک معبود ګرځي.
اِنَاثًا لکه چه فارسئ کښ یو ملك ته فرشته وائي او په پښتو کښ ورته فرېښته یا ملائک وائي نو دا الفاظ هم مؤنث دي د دے لفظونو استعمال جائز نه دے. صحیح داده چه هغوي بندګان د الله تعالیٰ دي- اَشَهِدُوْا خَلْقَهُمْ یعني نارینه زنانه صفت خو په لیدلو سره معلومیږي نو دوي خو ملائک نه دي لیدلي -
سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ یعني دوي په ویل چه موږ خو لیدلي نه دي لیکن موږ د مشرانو نه اوریدلي دي چه دا زنانه دي او مشران خو دروغ نه وائي نو موږ د دے وجے نه شهادت کوو چه دوي زنانه دي نو د هغے تردید ئے اوکړو په زجر سره چه دا شهادت د دوي په عملنامو کښ لیکلے کیږي. وَيُسْئَلُوْنَ یعني د دوي نه به د دے د دلیل تپوس کیدے شي چه تاسو په څه وجه بے دلیله خبرے پسے روان وے. شربیني ویلي دي دا دلیل دے چه قول بے دلیله منکر کار دے او تقلید حرام دے سبب د ډیرے بدے دے.
۲۰ :- دا یل زجر دے د دوي په عمل د شرک باندے چه د ملائکو (بانے په بل مخ)

مِنْ قَبْلِهٖ فَهُمْ بِهٖ مُسْتَمْسِكُوْنَ ﴿٢١﴾ بَلْ

مخکښ د دے نه نو دوی په هغے باندے دلیل نیوونکی دی . بلکه

قَالُوْٓا اِنَّا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا عَلٰٓى اُمَّةٍ وَّاِنَّا عَلٰٓى

دوی وائی یقیناً موندلے دی مونږ مشران خپل په یو طریقه باندے او یقیناً مونږ په

اٰثٰرِهِمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿٢٢﴾ وَكَذٰلِكَ مَآ اَرْسَلْنَا

قدمونو د هغوی باندے هدایت والا یو . دغه شان نه دی لیږلی مونږ

عبادت کوی او دا رنګ باطل دلیل ذکر کوی چه مشیّت (رضا) د الله تعالیٰ ده په دے شرک باندے او دا هم زوړ دلیل دے د مشرکانو لکه سورة انعام ۱۴۸ او سورة نحل ۳۵ کښ ذکر شوے دے. د دے دلیل تردید ذکر کوی په دے قول سره مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ یعنی د دوی څه دلیل دے په اثبات د رضا د الله تعالیٰ په شرک د دوی باندے ځکه رضا خو صفتِ باطنه دے د هغے د پاره دلیل پکار دے او هر چه خَلْق او وجود د کار و تو دے نو دا خو دلیل په اراده د الله تعالیٰ باندے دے نه په رضا باندے. تر دے ځائے پورے معلومه شوه چه مشرکینو بالملائکه پنځه قسمه کفر کړے دے اوّل دا چه الله تعالیٰ لره ئې د جزء (ولد) عقیده لرله ده. دویم دا چه ملائک بنات الله ګڼړی. دریم دا چه ملائکو ته زنانه وائی څلورم دا چه د هغوی عبادت کوی او پنځم دا چه د دے نسبت مشیت د الله تعالیٰ ته کوی یعنی بنه کار ئې ګڼړی.

۲۱:- دا هم زجر دے چه په دے کفریاتو باندے چه د دوی سره دلیل د کتاب الله نه نیشته یعنی د دوی دا عقیده لکه چه د عقل نه خلاف ده نو دا سے دا د نقل او وحی نه هم خلاف ده. اٰتَیْنٰهُمْ دا لفظ دلالت کوی چه هر کتاب د شرع دلیل نه دے بلکه هغه کتاب دلیل دے چه د طرف د الله تعالیٰ نه وی وحی جلی یا وحی خفی.

۲۲:- دا یل زجر دے او رد دے په دویم دلیل د مشرکانو باندے چه هغه اتباع د اباؤ او تقلید محض دے. عَلٰٓى اُمَّةٍ دلته په معنیٰ د طریقے او د دین ده ځکه چه امّة هغه څیز ته ویلے کیږی چه د هغے قصد او اقتداء کیدے شی نو هغه لار او دین دے مُّهْتَدُوْنَ یعنی په اتباع د مشرانو کښ د پوره اهتداء دعویٰ کوی چه په دے تقلید کښ مونږ هیڅ خطائی نه ده کړے او نه زمونږ مشران غلط شوے دی.

مِنْ قَبْلِكَ فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ اِلَّا قَالَ

ستا نه مخکښ په هیڅ کلی کښ ویره ورکوونکے مګر وئیل به

مُتْرَفُوْهَآ ۙ اِنَّا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا عَلٰٓى اُمَّةٍ وَّاِنَّا

بے حده مالدارو دَ هغې یقیناً موندلے دی موږ مشران خپل په یو طریقه باندے او یقیناً موږ

عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ مُّقْتَدُوْنَ ﴿۲۳﴾ قٰلَ اَوَلَوْ جِئْتُكُمْ

په قدمونو دَ هغوی باندے اقتداء کوونکی یو ۔ او ویل پیغمبر ایا اګرچه راوړے دَما تاسو ته

بِاَهْدٰى مِمَّا وَجَدْتُّمْ عَلَيْهِ اٰبَآءَكُمْ ۭ

ښهٔ هدایت دَ هغې نه چه موندلے دی تاسو په هغې باندے مشران ستاسو (خپل)

قَالُوْٓا اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۲۴﴾

دوی به اُوئیل یقیناً موږ په هغه څیز چه تاسو پرے رالیږلے شوی یئے کفر کوو ۔

۲۳ :۔ دا تردید دے په دلیل دَ هغوی باندے چه اتباع اٰباء ده چه دا استدلال خو دَ تیرشوؤ قومونو (مشرکانو) هم وؤ نو هغوی باندے عذابونه راغلے وو نو معلومه شوه چه دا دلیل باطل دے اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَا هغه کسان چه دَ دنیا په نعمتونو کښ اومزو کښ دَحد نه ورتیر شوی دی۔ او صیغه دَ مفعول کښ اشاره ده چه دَ ډیرے مستئ دَوجے نه بے اختیاره شوے دی ۔ مُقْتَدُوْنَ په اقتداء کښ معنیٰ دَ لزوم او دوام ده او اقرار دَ خپلے تابوهے دے ۔

۲۴ :۔ دا تردید دے دَ طرف دَ ځکنو رسولانو نه په دغه دلیل باندے چه تاسو به یا تابعداری دَ هدایت کوئے یا نه که دَ هدایت تابعداریے نو ما تاسو ته دَ بوره هدایت خبرے راوړے دی نو هغه ولے نه منئ اَهْدٰى دا صیغه یئے صرف الزامی طور سره ویلے ده یعنی بالفرض که ستاسو دَ مشرانو په لار کښ هدایت شته لیکن ماچه کوم څیز دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه راوړے نو په هغې کښ خو ډیر هدایت دے تو که دَ دُنیا په کارونو کښ تاسو ته معلومه شی چه زموږ په طریقه کښ دَ مشرانو دَ طریقے په نسبت ډیره فائده وه نو بیا خو تاسو دَ مشرانو طریقه پریګدئے نو دَ دین په باره کښ هم داسے اوکړئے کٰفِرُوْنَ معلومه شوه چه دوی ضد او عناد کښ پریوتل ۔

فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ

نو بدله واخستله موږ د دوی نه نو اوګوره چه څه رنګ شو

عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٢٥﴾ وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ

انجام د تکذیب کوونکو . او کله چه اوویل ابراهیم علیه السلام

لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖۤ اِنَّنِيْ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ ﴿٢٦﴾

پلار خپل او قوم خپل ته یقیناً زه ویزاره یم د هغه څه نه چه تاسو یې بندګی کوئ

اِلَّا الَّذِيْ فَطَرَنِيْ فَاِنَّهٗ سَيَهْدِيْنِ ﴿٢٧﴾

مګر هغه ذات چه زه یې پیدا کړے یم نو هغه به ماته لار ښائی .

وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِيْ عَقِبِهٖ لَعَلَّهُمْ

او پاتے کړه الله تعالیٰ دا کلمه باقی په اولاد د هغه کښ د دے دپاره چه دوی

ع ۸ النصف ۲

س ۲۵:. دا تخویف دے منکرینو ته او تسلّی ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته او قاء فَانْتَقَمْنَا کښ دپاره د دے ده چه د دوی هیڅ دلیل او عذر پاتے نه شو سِوا د ضد او عناد نه نو دا سبب شو د عذاب د دُنیا.

س ۲۶ - ۲۷ دا دلیل نقلی دے د ابراهیم علیه السّلام نه په رد د شرک کښ او په رد کولو د دلیل د مشرکانو کښ په اتباع د اباؤ سره حاصل دا دے چه اتباع د مشرانو که شرعی دلیل وے نو ابراهیم علیه السّلام د خپل پلار او د مشرانو د قوم نه په څه وجه مخالفت کوؤ؟ او دا رنګ ستاسو مشر ابراهیم علیه السّلام هم دے تو چه تاسو د مشرانو په اتباع باندے دلیل نیسے نو د ابراهیم علیه السّلام د اتباع نه ولے انکار کوئے.

اِنَّنِيْ بَرَآءٌ دا لفظ د واحد او د جمع دواړو دپاره استعمالیږی ځکه چه دا مصدر دے او د وصف دپاره راځی په معنیٰ د ذو براءت دے. اِلَّا الَّذِيْ فَطَرَنِيْ دا استثناء متصل ده ځکه چه دوی د الله تعالیٰ عبادت هم کاوۀ دوی به ویل الله تعالیٰ زموږ رب دے او دا نور معبودات زموږ شفعاء دی یا اِلَّا صفتی دے په معنیٰ د غیر سره دے او دا کلمه پشان د کلمے د لا اله الا الله ده. سَيَهْدِيْنِ مراد تربیه استقامت دے ځکه چه په سبب د اعلان د دے کلمے سره ډیر مصیبتونه راځی او په هغے کښ استقامت ته ضرورت دے.

يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۸﴾ بَلْ مَتَّعْتُ هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ

او کرځی رد گمراهئ نه). بلکه مزے د دنیا ورکړیدی ما دوی ته او مشرانو د دوی ته

حَتّٰى جَآءَهُمُ الْحَقُّ وَرَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ ﴿۲۹﴾

تر دے پورے چه راغے دوی ته حق او رسول ښکاره بیان کوونکے.

وَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ وَّاِنَّا

او هر کله چه راغے دوی ته حق اوویل دوی دا جادو دے او یقینًا مونږ

بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا

په دے یاندے کفر کوونکی یو. او اُویل دوی ولے نازل نه کړے شو دا

۲۸:- په دے کښ وضاحت دے چه دا کلمه په ابراهیم علیه السلام پورے خاص نه ده ډیاره د دے چه مشرکین مکه او نه وائی چه دا کلمه زمونږ ډیاره نه ده. وَجَعَلَهَا ضمیر د فاعل الله تعالیٰ ته راجع دے او ضمیر د ها راجع دے ماقبل کلمے ته چه کلمه د توحید ده. یعنی دا کلمه د توحید او د براءة عن الشرك الله تعالیٰ په ټول اولاد د ابراهیم علیه السلام کښ جاری اوساتله په سبب د دے چه روستو د ابراهیم علیه السلام نه ټول انبیاء علیهم السلام ئے د دهٔ په اولاد کښ پیدا کړل او هغوی توحید ته دعوت ورکړیدے. عقبه ټول اولاد ته ویلے کیږی تو یهودیان، نصاری، او مشرکین عرب پکښ ټول داخل دی او دا اجراء د نبوت او د توحید د دهٔ په اولاد کښ په سبب د دُعا د دهٔ سره وه چه هغه په سورة بقره ۱۲۴ تا ۱۲۹ کښ ذکر ده او قبولیت د دے دُعا په سورة عنکبوت ۲۷ کښ هم ذکر دے.

۲۹ تا ۳۰:- په دے ایاتونو کښ زجر دے په انکار د رسول او د قران په ذکر د اول سبب د انکار کولو او په دے کښ جواب د یو سوال دے هغه دا دے چه هر کله حجتونه د دوی خو باطل دی او د ابراهیم علیه السلام کلمه د براءت دوی ته معلومه شویده نو بیا په څه وجه سره انکار کوی نو په جواب کښ هغه سبب ذکر کوی چه هغه مَتَّعْتُ هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ دے یعنی سرهٔ د شرک کولو نه الله تعالیٰ دوی ته مالونه او صحت وعافیت او د دنیا ترقیٔ ورکړے دی نو دوی دا خیال اوکړو چه مونږ او زمونږ طریقه الله تعالیٰ ته خوښه ده نو چه رسول او قران راغے او توحید ئے ورته واضح کړو نو دوی انکار اوکړو او دا ﴿ سورة فرقان ۱۸ کښ تیر شویدی

( پاتے په بل مخ )

الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ ﴿۳۱﴾

قرآن په یو سړي باندې دَ دوؤ کلو نه چه لوے دے۔

اَهُمْ يَقْسِمُوْنَ رَحْمَتَ رَبِّكَ ؕ نَحْنُ

آیا دوی تقسیموی رحمت دَ رب ستا موږ

قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَّعِيْشَتَهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

تقسیم کړیدی دَ دوی په مینځ کښې سامان دَ ژوند دَ دوی په ژوند دنیوی کښې

وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ

او پورته کړے دے موږ بعض دَ دوی نه دَ بعضو دَ پاسه په درجو کښې

لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا سُخْرِيًّا ؕ وَرَحْمَتُ

دَ پاره دَ دے چه اونیسی بعضے دَ دوی بعضو لره خدمتګاران او رحمت

رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ﴿۳۲﴾ وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ

دَ رب ستا غوره دے دَ هغه نه چه دوی جمع کوی۔ او که چرے نه جوړیدل ے

اول الحق نه مراد قرآن دے او دویم الحق نه مراد توحید دے چه په قرآن کښې بیان شویدے۔

۳۱:۔ دا بل زجر دے او دویم سبب دَ انکار ذکر کوی هغه دا دے چه سبب دَ عظمت په نیز دَ متکبرینو مالداری ده او نبوت ئې حق دَ مالدار کټرلے دے لکه چه دا عقیده دَ سرمایه دارو وی نو دوی اویل چه په مکه او طائف کښې لوئې لوئې مالداران شته نو دا وحی هغوی ته ولے نه نازلیږی۔ مِنَ الْقَرْيَتَيْنِ یو سړے خو دَ دوؤ کلو نشی کیدلے نو عبارت کښې تقدیر دے یعنی من احدی القریتین۔

۳۲:۔ په دے کښې رد دے دَ هغوی په باطله نظریه باندے چه حاصل دَ هغې دا وؤ چه تقسیم دَ نبوت دوی په خپل اختیار او دَ خپلے رائې موافق ګنړلو هر کله چه دَ دوی دَ رائې نه خلاف اوشو نو دوی انکار کوی حاصل دَ رد دا دے چه نبوت او رسالت خو دَ الله تعالیٰ خاص رحمت دے چه په هغې کښې دَ هیچا اختیار نه رسی نو دوی پرته وے سره دَ هغې تقسیم په خپله رائې سره کوی نَحْنُ قَسَمْنَا الخ دا تاکید دَ رد دَ هغوی دے یعنی هغه دنیا چه یو ذلیل څیز دے دَ هغې تقسیم هم په اختیار دَ دوی کښې نیشته نو دَ عظیم نعمت چه نبوت دے هغه به څنګه دَ دوی په اختیار کښې شي۔

النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً لَّجَعَلْنَا لِمَنْ يَّكْفُرُ
خلق يو ډله (په كفر باندے) خلقاً جوړ كړے به وو مونږ هغه چا لره چه كفر كوى

مَعِيْشَتَهُمْ مراد دَ دے نه اسباب دَ ژوند دَ دنيادى او هر كله چه دا تقسيم په اختيار دَ الله تعالىٰ كښ دے دَ دے وجے نه يو بے عقله ساده انسان به وى او هغه به مالدار وى او بل هوښيار به وى ليكن فقير به وى دا رنګ كله يو انسان دَ مال ګټلو دَ پاره ډيرے طريقے او حيلے استعمال كړى ليكن مال ورته حاصل نشى او كله يو انسان ته بغير دَ تكليف نه ډير مال حاصل شى نو معلومه شوه چه دا اختيار او تصرف دَ الله تعالىٰ دے. او دليل دَ تقسيم دا دے چه وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ يعنى څوك غنى او څوك فقير او څوك حر (ازاد) او څوك مريے او څوك بادشاه او څوك رعيت او څوك هوښيار او څوك كم عقل دا ټول په اختيار دَ الله تعالىٰ كښ دى لِيَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا سُخْرِيًّا دا حكمت دَ تفاوت دَ درجاتو دے هغه دا دے چه بعض خادم او نوكر او مزدور شى دَ بعض نورو دَ پاره نو نظام دَ دُنيا به چليږى په دے معنى سُخْرِيًّا دَ مسخر كولو نه ماخوذ دے - دويمه معنىٰ دا ده چه لام دَ عاقبت دے او سخريا معنىٰ دا چه "وريورے مسخرے كيدے شى" يعنى دَ دغه تفاوت نتيجه او اثر دا دے چه مالدار به غريب پورے مسخرے كوى -

فائده: په دے ايت كښ رد په نظريه دَ مساوات (سوشلزم) باندے دے چه بعض خلق وائى چه ټول خلق دِ په مال كښ برابر وى دَ غنى او فقير مرتبے دِ يكښ نه وى او دا ښه نظام دے - او څوك وائى چه دا مالدارى غريبى دا دَ ظالمانو نظام دے دا تقسيم خو الله تعالىٰ ته دے كړے نو په دے ايت كښ الله تعالىٰ واضح كړه چه دا تقسيم په تفاوت سره زما نظام دے او دَ هغے حكمت ئے هم ذكر كړو - كه چرے ټول خلق په مال كښ مساوى شى نو بيا هيڅوك دَ بل خدمت نوكرى نشى كولے او كور نئ كښ به الفت او محبت او همدردى وغيره اخلاق ختم شى نو دَ دنيا نظام به خراب شى. او په كوموملكونو كښ چه دَ مساوات دعوى كوى هغه بالكل دهوكه ده ځكه چه په هغے كښ څوك دَ دنيا دَ عزت په كار باندے مشغول دے لكه بادشاه او افسر دے مخدوم دے او څوك دَ ذلت په كار مشغول دے نو دعوىٰ دَ مساوات ئے باطله ده. وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ اشاره ده چه نبوت اعلىٰ او اشرف دے دَ دُنيا دَ خيزونو نه نو دَ هغے اختيار هم دَ الله تعالىٰ سره دے -

بِالرَّحۡمٰنِ لِبُیُوۡتِهِمۡ سُقُفًا مِّنۡ فِضَّةٍ

په رحمان باندے د پاره د کورو د هغوی چتونه د سپینو زرو

وَّمَعَارِجَ عَلَیۡهَا یَظۡهَرُوۡنَ ﴿۳۳﴾ وَلِبُیُوۡتِهِمۡ

او پاوړے چه په هغے باندے دوی ورختلے. او د پاره د کورو د دوی

اَبۡوَابًا وَّسُرُرًا عَلَیۡهَا یَتَّکِـُٔوۡنَ ﴿۳۴﴾ وَزُخۡرُفًا ط

دروازے او کټونه چه په هغے باندے آرام کوی راو ورکړے به (وو) سره زر

سـ۳۳ سـ۳۴ سـ۳۵:. په دے آیاتونوکښ ذلت د دُنیا ذکرکوی متعلق دے د خَیۡرٌ مِّمَّا یَجۡمَعُوۡنَ سره او دا رنګ متعلق دے د سـ۳۱ سره یعنی بل رد د هغوی په قول باندے چه هغوی سبب د عظمت مالداری ګنړی نو الله تعالیٰ د هغے ذلت ذکرکوی. حاصل دا دے چه د دنیا مالونه د الله تعالیٰ په نیز دومره ذلیل دی چه د مؤمن د شان سره هیڅ مناسبت نه لری بلکه د کافرانو سره پوره مناسبت دے نو پکار خو دا وه چه الله تعالیٰ دا ټول مالونه کافرانو له ورکړے وے او مؤمنانو ته په کښ هیڅ نه ورکولے لیکن بو حکمتِ الٰهیه د دے نه مانع دے هغه دا دے چه بیا به ټول خلق کافر شی مؤمن به پکښ هیڅوک نه وی نو معلومه شوه چه کله یو شے فی نفسه قبیح وی خو د یو سبب په وجه سره هغه حسن لغیره اوګرځی او تائید د دے هغه حدیث دے که د دنیا وزن (عزت) د الله تعالیٰ په نیز د ماشی د وزر په مقدار وے نو کافر ته به یے ترینه یو ګوټ هم نه وے ورکړے. وَلَوۡلَاۤ اَنۡ یَّکُوۡنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً لولا شرطیه دے په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه وجود د شرط سبب د نفی د جزا وی او که وجود حقیقی وی یا نفی د جزا سبب وی د پاره د نفی د شرط کله چه وجود فرضی وی دلته رو ستنے معنیٰ ده او مراد د امة واحدة نه د ټولو خلقو کافر کیدل دی یا ګرځیدل د ټولو طلب ګارے د دُنیا ته دی معنیٰ دا ده که چرے نه وے د ټولو خلقو کافر کیدل د الله تعالیٰ خوښ نه دی نو د دے وجے نه کافرانو ته یے ټول مالونه نه دی ورکړے او برعکس مطلب یے دا دے چه ټول مالونه الله تعالیٰ کافرانو له نه دی ورکړی د پاره د دے چه ټول خلق کافران یا دنیا پرست نه شی. لِمَنۡ یَّکۡفُرُ بِالرَّحۡمٰنِ یعنی صفت د رحمانیت خو تقاضا کوی چه ټول نعمتونه لوئے او واړه د الله تعالیٰ د طرف نه دی او دوی یے د هغه سره شریک یا ولد جوړوی سُقُفًا مِّنۡ فِضَّةٍ چهتونه او پاتوړے او دروازے او کټونه دا خلور یے د دے وجے نه خاص ذکر کړل چه عادت دا دے

یا دنیا پرست کیدل نو هماغه ټول سره او سپین کافرانو له ورکړے وے لیکن د ټولو خلقو کافر کیدل

وَإِن كُلُّ ذَٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ۚ
او نه دی دا ټول مګر لږ مزے دَژوند دنیوی دی

وَالْآخِرَةُ عِندَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٣٥﴾ وَمَن
او آخرت په نیز دَ رب ستا دَپاره دَ تقویٰ والو دے. او چاچه

يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ نُقَيِّضْ لَهُ
لږے سترګے پټے کړے دَ ذکر دَ رحمٰن نه جوخت به او نګوؤ په دهٔ پسے

شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ ﴿٣٦﴾ وَإِنَّهُمْ
شیطان نو هغه به دَدهٔ ملګرے وی. او یقیناً دوی

چه دا جوړیږی دَ لرګو نه یا دَ او سپینے نه او نورِ آبادی سیمنټو خښتو ګټو نه کیږی نو چه کوم دَ او سپینے یا لرګو نه جوړیږی نو هغه به ئے دَ سپینو زرو نه جوړ کړے وے او سپین زر ئے دَ دے وجے نه خاص کړل چه دَ هغے سره په مکان کښ رڼا هم وی. اول خو دَ کمرے چهت ضروری وی نو بیا چهت ته دَ ختلو ذریعه چه معارج دی نو بیا دروازے پکاروی نو روستو کټو نه دَ کیناستلو او آرام کولو دَپاره پکاروی دَ دے وجے نه په دے ترتیب سره ئے ذکر کړل. وَزُخْرُفًا عطف دے په محل دَ من فضة نو معنیٰ دا چه چهتونه به دَ سپینو او سرو زرو وے یا مفعول دے دَ فعل پټ دَپاره یعنی ویجعل لهم زخرفا او زخرف سرو زرو ته ویلے کیږی لکه او یکون لك بیت من زخرف (اسراء) او دارنګ زینت او ښائست ته هم ویلے کیږی لکه حتیٰ اذا اخذت الارض زخرفها (یونس). (سوال) هر کله چه ډیر مالونه کافرانو ته ورکول سبب ګرځیدلے شی دَپاره دَ کفر دَ عامو خلقو نو مؤمنانو له به ئے ډیر مالونه ورکړے وے نو ټول خلق به مؤمنان ګرځیدلے وے؟ (جواب) دغه ایمان چه دَ دنیا دَپاره وی نو هغه ایمان په شرع کښ اعتبار نه لری دَ دے وجے نه دَ هغه جانب ذکر ئے او نکړو.

۳۶:. دَ دے آیت نه تر ۷۶ پورے دویم باب دے په دے کښ زجر او تخویف دے معرضینو دَ قرآن نه بیا تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او صداقت دَ قرآن دے بیا دلیل نقلی اجمالی دے بیا دلیل نقلی تفصیلی دے دَ موسیٰ علیه السلام نه بیا زجر دے منکرینو ته او دلیل نقلی تفصیلی دے دَ عیسیٰ علیه السلام نه. په دے (۳۶) کښ ذکر دے په اعراض کولو سره (پاتے په بل مخ)

لَيَصُدُّوْنَهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ

خامخا اړوي دوی لره د لارے (د حق) نه او دوی گمان کوی چه دوی

مُّهْتَدُوْنَ ﴿۳۷﴾ حَتّٰۤى اِذَا جَآءَنَا قَالَ يٰلَيْتَ

هدایت والا دی - تر دے پورے چه کله راشی مونږ ته وائی به هائے ارمان دے

دَ قرآن نه چه داپیدا کیږی په سبب دَ محبت دَ دنیا سره چه مخکښ ایت کښ دَ هغے ذلت بیان شو. وَمَنْ يَّعْشُ دا دَ عشا یعشو نه اغستلے شوے دے اعشٰی کمزوری نظر والا ته ویلے کیږی او هغه څوک چه دَ شپے ئے نظر نه لګی او دَ ورځے لګی او دَ چا چه نظر صحیح وی لیکن قصدًا ځان ړوند کړی نو دَ هغه دَ پاره عشٰی یعشٰی استعمالیږی او دلته اکثر قراءة په پیښ دَ شین سره دے یعنی اوله معنٰی مراد ده او په دے کښ لطیفه اشاره ده چه دَ قرآن نه معمولی (لږ) اعراض او کړی نو سبب دَ عذاب دے نو چه پوره اعراض ئے کړے وی نو هغه په طریقه اولٰے سره هلاک او تباه دے. نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطَانًا. تقییض په اصل کښ پیوست کیدل دَ پوستکی دَ اګیٔ دی په اګی پورے او دَ پاتړو دَ پیازو دی په یو بل پورے نو دا کنایه ده دَ پوره مسلّط کیدلو نه. شیطان عام دے که انسی وی او که جنّی وی فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ یعنی هیڅ وخت تری نه جدا کیږی یعنی باطلے عقیدے عملونه اخلاق معاملات وغیره ورته ښائسته کړی او دَ حلالو ئے منع کوی او دَ طاعت نه منع کوی او حرام او معصیت ورته ښائسته کړی. په دے ایت کښ دلیل دے چه چا قرآن پریخودلو او دَ هغے نه ئے معمولی غفلت او کړو نو شیطانانو ته دَ داسے سړی ګمراه کول اسان شی نو قرآن مضبوطه قلعه ده دَ شیطان نه دَ بچ کیدلو دَ پاره. بو خو دَ دے وجے نه چه په قرآن کښ دَ شیطانی شبها تو پوره جوابونه دی او بل دا چه په قرآن کښ الله تعالٰی برکت اچولے دے چه شیطان دَ هغه دَ مقابلے نه عاجز دے

۳۷:- وَاِنَّهُمْ لَيَصُدُّوْنَهُمْ ضمیرونه دَ جمع ئے ځکه راوړل چه من او شیطان په معنٰی دَ جمع کښ دی السَّبِيْلِ مراد تری نه سبیل الله ده چه هغه قرآن دے او ذکر الرحمان دے وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ اشاره ده چه ګمراهی دوه قسمه ده یو دا چه ګناه ورته ګناه ښکاری لیکن دَ بے پروائے دَ وجے ئے کوی نو دا خو مرتبه دَ فسق ده او دویم قسم دا چه ګناه ورته ثواب ښکاری او په هغے کښ فائدے ګڼړی نو دا مرتبه دَ بدعت ده که په عقیده کښ وی او که په عمل کښ وی او دا درجه ډیره خطرناکه ده ځکه چه انسان دَ دے نه توبه نه او باسی په دے وجه چه ښه کار ئے ګڼړی نو دلته دا دویمه مرتبه مراد ده لکه په سورة کهف ۱۰۴ او فاطر ۸ کښ دی او په دے کښ اشاره ده چه

بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ
په مینځ زما او ستا کښې لرې والے دَ مشرق مغرب وے نو ته ناکاره

الْقَرِيْنُ ﴿۳۸﴾ وَلَنْ يَّنْفَعَكُمُ الْيَوْمَ اِذْ ظَّلَمْتُمْ
ملګرے وے. او هیچرے به نفع درنکړی تاسو ته نن ورځ کله چه تاسو ظلم (شرک) کړے دے

اَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ﴿۳۹﴾ اَفَاَنْتَ
دا خبره چه تاسو په عذاب کښې شریک یئ. ایا تو ته

تُسْمِعُ الصُّمَّ اَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ وَمَنْ كَانَ
اوروړل کولے شے کونړ ته یا هدایت ورکولے شے روند ته او هغه چاته چه دی

دَ ښهٔ او بد تمیز په قرآن سره کیږی او دے انسان خو دهغې نه اعراض کړے دے ددے وجے نه بدکار ته ښهٔ کاروائی.

۳۸:. په دے کښې تخویف اخروی دے. اِذَا جَآءَنَا ضمیر من یعش ته راجع دے او عبادت کښې پټ والے دے یعنی فعلم ضلالهٔ (پخپله ګمراهئ باندے عالم شی) نو ارمان به اوکړی. بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ یعنی چه ستا نه دومره لرے وے لکه چه مشرق دَ مغرب نه لرے دے یا مشرق دَ ژمی او دَ اوړی چه ډیر بل نه لرے دی.

۳۹:. داهم تخویف کښې داخل دے او جواب دَ سوال دے هغه داد ے چه کله بلاء عامه وی نو اسانه وی نو چه په عذاب کښې ډیر خلق شریک وی نو اسان به وی ؟ جواب اوشو چه عذاب دَ جهنم دَ خلقو په ډیروالی سره نه اسانیږی یا دا سوال دے چه افسوس نه او ارمانو ته ډیر شی نو څه غم به سپک شی نو جواب اوشو چه داهم نفع نه ورکوی وَلَنْ يَّنْفَعَكُمْ ضمیر راجع دے تمنی کښې قول ته چه یالیت بینی و بینك الخ او اَنَّكُمْ کښې لام اجلیه پټ دے یا فاعل دَ لن ینفعکم اَنَّكُمْ دے. اِذْ ظَّلَمْتُمْ اذ دَپاره دَ علت دے او مراد ترینه شرک دے. دَ ظرف دَپاره نه دے ځکه دَ ظلم زمانه هم دنیا ده او الیوم نه مراد اخرت دے نو ظرفیت نه صحیح کیږی.

فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۴۰﴾ فَاِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ

په گمراهۍ ښکاره کښې . نو که چرے بوځو مونږ تا

فَاِنَّا مِنْهُمْ مُّنْتَقِمُوْنَ ﴿۴۱﴾ اَوْ نُرِیَنَّكَ

نو یقینًا مونږ دَ دوی نه بدله اغستونکی یو یا به اوخایو تاته

الَّذِیْ وَعَدْنٰهُمْ فَاِنَّا عَلَیْهِمْ مُّقْتَدِرُوْنَ ﴿۴۲﴾

هغه عذاب چه وعده کړیده مونږ دَ دوی سره نو یقینًا مونږ دَ دوی په عذاب باندے ښه قدرت لرو.

فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِیْٓ اُوْحِیَ اِلَیْكَ ۚ اِنَّكَ

نو کلک اونیسه هغه چه وحی کړے شویده تاته یقینًا ته

سـ۴۰ :- په دے ایاتونو کښې تسلّی ده نبی صلّی الله علیه وسلّم ته په مختلفو طریقو سره په دے ایت کښې اوله طریقه ده چه که چرے داخلق دَ قران نه اعراض کوی او ایمان نه راوړی نو په تا باندے هیڅ وبال نیشته ځکه چه مانع دَ دوی دَ طرف نه دے چه دَ قران نه کاڼه او ړانده دی. فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ فی دَ انغماس (ډوبیدلو) دَپاره راغئ یعنی چه په گمراهۍ کښې دَ هر طرف نه ډوب او راگیر وی لارے دَ هدایت ورته بندے وی.

سـ۴۱ سـ۴۲ :- په دے کښې دویمه طریقه دَ تسلّئ ده یعنی مونږ به دے منکرینو ته ضرور عذاب ورکوو یا په ستا دَ هجرت یا وفات نه روستو عذاب ورکړو یا په ستا په حضور کښې عذاب راولو نو ته هیڅ پرواه مکوه او دا رنگ په سوره یونس سـ۴۶ او سورة رعد سـ۴۰ او سورة غافر سـ۷۷ کښې تیر شویدی. فَاِمَّا نَذْهَبَنَّ اذهاب نه مراد یا هجرت کول دی دَ مکے نه یا وفات کیدل دی. اَوْ نُرِیَنَّكَ په دویمه معنیٰ دَ اذهاب کښې دلیل دے چه اراءة (لیدل) مقابل دَ وفات دے یعنی روستو دَ وفات نه دَ دنیاوالو حالات نشی لیدلے او دَ حسن او قتاده په روایت کښې دَ دے ایاتونو مصداق واقع کیدل دَ فتنو دی په مسلمانانو کښې روستو دَ وفات دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم نه نو الله تعالیٰ دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په ژوند کښې هغه ته هغه حالات اوخودل په امت کښې چه هغه پرے خوشحاله شو او روستو دَ وفات نه فتنے شروع شوے او دا اکرام دے زمونږ دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ځکه چه دَ نورو انبیاء علیهم السلام په ژوند کښې دَ هغوی په امتونو به عذابونه راتلل.

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٤٣﴾ وَاِنَّهٗ لَذِكْرٌ لَّكَ

په لار نیغه باندے یے. او یقیناً دا قرآن ذکر ستا دے

وَلِقَوْمِكَ ۚ وَسَوْفَ تُسْـَٔلُوْنَ ﴿٤٤﴾ وَسْـَٔلْ مَنْ

او ستا دَ قوم دے او زر ده چه تاسو نه په تپوس اوکړیشی. او تپوس اوکړه دَ هغه چانه

اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ

چه لیږلے دی مونږ ستانه مخکښ رسولان زمونږ چه آیا جوړ کړیدی مونږ

دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً يُّعْبَدُوْنَ ﴿٤٥﴾ وَلَقَدْ

سِوا دَ رحمان نه نور واکداران دَ نفع او ضرر چه دَ هغوی عبادت کیدیشی. او یقیناً

۴۳ :- په دے کښ تشجیع ده نبی صلی الله علیه وسلم ته روستو دَ تسلیٔ نه یعنی که دا خلق منی او که نه منی خو ته په کتاب دَ الله تعالیٰ باندے کلک شه په بیان کولو او عمل کولو او دلیل نیولو کښ اِنَّكَ دا اول علت دے دَ ماقبل یعنی ځوک چه په صراط المستقیم باندے وی نو په هغه باندے تمسّك په کتاب الله سره لازم دے او دا دلیل دے چه لار دَ نبی صلی الله علیه وسلم صراط مستقیم ده.

۴۴ :- دا دویم علت دے دَ فاستمسك دَپاره. لَذِكْرٌ په معنیٰ دَ شرافت او عزت دے او قوم نه مراد قریش او عرب دی یعنی دَ دوی په لغت کښ نازلیدل دَ قرآن دَ دوی شرافت دے یا ذکر په معنیٰ دَ وعظ او تذکره دے او دَ قوم نه مراد ټول امت دے وَسَوْفَ تُسْـَٔلُوْنَ تپوس به کیدیشی په باره دَ نعمت دَ قرآن کښ دَ لوستلو او دَ عمل کولو او دَ بیان کولو په باره کښ- په آیت کښ اشاره ده چه قرآن دَ نعمتونو دَ الله تعالیٰ نه یو ډیر لوئے نعمت دے.

۴۵ :- دا دلیل نقلی اجمالی دے دَ ټولو انبیاؤ علیهم السّلامُ نه لکه چه په سورة نحل ۳۶ او سورة انبیا ۲۵ کښ دے او مخکښ سره ربط ئے دا دے لکه چه په قرآن کریم کښ ذکر دَ توحید دے نو دا سے دَ انبیاؤ دعوت هم دَ توحید دَپاره وؤ نو دعوت دَ قرآن موافق دے دَ دعوت دَ ټولو رسولانو سره- وَاسْأَلْ مَنْ اَرْسَلْنَا (سوال) زمونږ دَ رسول صلی الله علیه وسلم زمانه دَ پیدائیش او دَ ژوند کښ خو نور پیغمبران نه وو نو هغه ته څه رنګ امر اوشو چه دَ هغوی نه تپوس اوکړه؟ (جواب) اول جواب دا دے چه دا حکایت دَ شپے دَ اسراء دے چه په دغه شپه دَ بعضو انبیاو سره ملاقات اوشو نو ورته امر اوکړے شو چه اوس دَ دوی نه تپوس اوکړه لکه چه دا روایت

(پاتے په بل مخ)

أَرْسَلْنَا مُوسٰى بِاٰيٰتِنَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ

لیږلے وو موږ موسٰی علیه السلام په معجزاتو زموږ سره فرعون ته

وَمَلَا۟ئِهٖ فَقَالَ اِنِّیْ رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۴۶﴾

او غټانو دَ قوم دَ هغه ته نو اُوئیل هغه یقیناً زهٔ رسول دَ رب دَ عالمینو یم۔

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِاٰيٰتِنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا

نو هر کله چه راغے دوی ته په معجزاتو زموږ سره دغه وخت دوی په هغه پورے

قرطبی ابن کثیر وغیره نقل کړے دے بیا پکښ دوه روایتونه دی اول دا چه هغه ترے تپوس اوکړو نو هغوی ورته جواب اوکړو چه موږ په توحید باندے رالیږلے شوے یو دویم روایت دا دے چه هغه تپوس نه دے کړے اُوئیل ئے چه زما یقین دے نو تپوس ته حاجت نیشته او امر دَ وَاسْئَلْ دَ پاره دَ وجوب نه وُو بلکه دَ پاره دَ الزام وؤ په مشرکانو باندے. دویم جواب دا دے چه په عبارت کښ حذف دے یعنی امم من ارسلنا ، یا من ارسلنا الیهم او مراد ترینه یهود او نصارٰی وو چه موجود وو په زمانه دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښ او مقصود په دے کښ الزام وؤ په مشرکین عرب باندے. دریم جواب دا دے چه عبارت کښ حذف دے یعنی کتب من ارسلنا او دَ سوال نه مراد نظر کول دَ هغوی په کتابونو او دیتو نو کښ دے لکه تورات او انجیل او دَ دے وجے نه دَ دے نه روستو آیاتو نو کښ حال دَ موسٰی او دَ عیسٰی علیهما السلام ئے ذکر کړے دے. اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً په دے لفظ جعلنا کښ اشاره ده چه دَ مشرکانو سره اختلاف دَ مؤحدینو په مجعول الهو کښ دے لکه چه اوس بعض خلق هغوی ته عطائی والی او عوام تعبیر کوی چه اولیاؤ بزرګانو ته الله تعالی برخه ورکړے دی چا ته ئے اختیار ورکړے دے دَ اولاد ورکولو چا ته ئے اختیار ورکړے دَ مال ارکولو چا ته دَ ګوزن لرکولو چا ته دَ باد و لرکولو چا له دَ دانو جوړولو او چا له ئے مطلق واک ورکړے دے او چا ته ئے علم غیب عطائی ورکړے دے. یعنی دوی دَ الله تعالی نه سوا مستقل الهه نه دی ګڼرلی او دا حقیقت دَ شرک دے يُعْبَدُوْنَ دَ عقیدے دَ الوهیت سره عبادت کول لازم دی او اَجَعَلْنَا کښ همزه دَ استفهام انکاری دے لکه چه سورة نحل ۳۶ او انبیاء ۲۵ پرے ګواه دی.

۴۶ تا ۴۷ :- دا دلیل نقلی تفصیلی دے دَ موسٰی علیه السلام نه او عاقبت دَ تکذیب کوونکو ذکر کوی په واقعه دَ فرعونیانو سره او دَ ۳۱ سره هم تعلق لری یعنی لکه

يَضْحَكُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَمَا نُرِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ اِلَّا

خندا کوله۔ او نه خودله مونږ دوی ته هیڅ معجزه مګر

هِيَ اَكْبَرُ مِنْ اُخْتِهَا وَاَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ

هغه به غټه وه د ملګرے د هغې نه او نیولے وو مونږ دوی لره په عذاب سره

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَقَالُوْا يٰۤاَيُّهَ السّٰحِرُ ادْعُ لَنَا

دے د پاره چه اوګرځي د ګمراهئ نه۔ او دوی اُوئیل اے جادوګره دُعا اُوغواړه مونږ لره

چه آخری رسول باندے مشرکین مکه طعن کوؤ چه دے مسکین او غریب دے نو داسے فرعون هم د موسیٰ علیه السّلام په باره کښ اعتراض کړے وؤ یعنی د فرعون په مقابله کښ موسیٰ علیه السّلام فقیر مسکین وؤ بِاٰيٰتِنَا مراد د دے نه نهه معجزات دی چه سورة اعراف ۱۰۷، ۱۰۸، ۱۳۰، ۱۳۳ او سورة اسراء ۱۰۱ کښ ذکر شوی دی رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ په دے کښ اثبات د رسالت او ذکر د مرسِل دے او اشاره ده مرسَل به ته چه هغه مسئله د توحید د ربوبیت ده چه فرعون د هغې نه منکر وؤ يَضْحَكُوْنَ مراد د خندا کولو نه استهزاء او مسخرے کول دی په دے وصف راوړلو کښ اشاره وه د هغوی ډیرے سرکشئ کولو ته ځکه چه خندا کوونکے سوچ او فکر نه کوی۔ ۴۸ اشاره ده چه د دوی خندا کول بے ځایه وو ځکه چه دغه آیات واړه او معمولی نه وو۔ (سوال) مِنْ اٰيَةٍ اِلَّا وَهِيَ اَكْبَرُ دا لفظ خو تقاضا کوی چه هره یوه معجزه د بلے نه لویه وه نو اوله د دویمے نه لویه وه نو دویمه د اولے نه لویه وه او دا خو د حقیقت نه مخالفه خبره ده چه اکبریت (یه تفضیل سره) په دواړه جانبانو کښ ثشی کیدلے (اول جواب) دا دے چه دا اکبریت د هریو په زعم د لیدونکے کښ دے د دے وجے نه چه هغه ټول آیات په لوے والی کښ شریک وو، (دویم جواب) دا دے چه په آیت کښ تخصیص دے یعنی ما نریهم من اٰیة (متاخرة) الا هی اکبر من اختها (السابقة) هره یو روستنے د مخکښ نه لویه وه۔ ځکه په اول آیت سره یو علم حاصل شو نو په دویم آیت کښ د مخکنی علم نه علاوه بل علم حاصل شو نو دوه علمونه شول علیٰ هذا القیاس تر دے چه په نهم آیت کښ نهه علمونه حاصل شول۔ وَاَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ په دے کښ اشاره وه چه بعض آیات په شکل د عذابونو کښ وه۔

رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِندَكَ ۚ إِنَّنَا لَمُهْتَدُونَ ﴿٤٩﴾

دَ رب خپل نه په دے وجه چه وعده ئے کړیده ستا سره یقیناً موږ به هدایت قبول کړو -

فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ ﴿٥٠﴾

نو هرکله چه لرے کړو موږ دَ دوی نه عذاب دغه وخت دوی وعده به ماتوله -

وَنَادَىٰ فِرْعَوْنُ فِي قَوْمِهِ قَالَ يَا قَوْمِ

او آواز اوکړو فرعون په قوم خپل کښ اُوئیل ئے اے قومه

أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَٰذِهِ الْأَنْهَارُ

آیا نیشته مالره بادشاهی دَ مصر او دا ولے هم

تَجْرِي مِن تَحْتِي ۖ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴿٥١﴾

بهیږی لاندے دَ حکم زما نه آیا نو تاسو نه وینئے -

۴۹ تا ۵۰ :- دا دَ مشرکانو عادت دے چه په سختئ کښ دَ خپلو معبودان باطله نه نا امیده شی او دَ الله تعالیٰ نه مدد غواړی نو دا سے فرعونیانو هم په دُعا دَ موسیٰ علیه السّلام سره وسیله اونیوله الله تعالیٰ ته او دا دلیل وؤ چه دَ دوی کفر عناداً وؤ -- يَا أَيُّهَ السَّاحِرُ (سوال) هرکله چه دوی مجبوره شو دِ دے دُعا ته نو دَ موسیٰ علیه السّلام بے عزتی په وصف دَ ساحر سره ولے کوله ؟ اول جواب چه دَ دوی په اصطلاح کښ عالم ته به ساحر ویلے کیدلو دویم دا دے چه دا دَ نهایت جهل دَ وجے نه چه دوی خپل عادتی خبره نه پریږدی - بِمَا عَهِدَ عِندَكَ عهد نه مراد امن ورکول دی دَ عذاب نه په سبب دَ ایمان راوړلو او دا ذکر ده په طه ۴۷ کښ او هرکله چه دا دَ سورة اعراف په تفصیلی واقعاتو ذکر کولو باندے وه نو هلته بعض کلمات ئے په نسبت دَ دے سورت سره زیات ذکر کړے دی - او په دے سورت کښ اختصار مقصد دے -

۵۱ :- هرکله چه فرعون سره دَ آیاتو دَ موسیٰ علیه السّلام او دَ استجابت دَ دُعا دَ هغه نه ویره پیدا شوه چه زما قوم به زما نه مخالفت اوکړی او دَ موسیٰ علیه السّلام سره به ملګری شی نو دَ خپل قوت مظاهره کوی او تکبر کوی په دنیوی بادشاهئ باندے او دَ موسیٰ علیه السّلام توهین او تذلیل کوی او په دے کښ اشاره ده عذر دَ نقض عهد ته هم چه زهٔ دَ موسیٰ علیه السّلام سره لوظ دَ دے وجے نه پوره کوؤم نه

أَمْ أَنَا خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِي هُوَ مَهِينٌ ۵

ايا زهٔ غوره يم دَ دے سړی نه چه دے ذليل دے

وَّلَا يَكَادُ يُبِينُ ۵۲ فَلَوْلَآ أُلْقِيَ عَلَيْهِ

او نه دے نزدے چه ښكاره خبره اوكړی. نو ولے نه شی راغورځيدلے په دهٔ باندے

چه زهٔ خاوند دَ قوت يم. وَنَادٰى فِرْعَوْنُ اعلان دَ حكومت په طريقه دَ منادی سره وی دَ دے وجے نه تعبير ئے په نادٰی سره اوكړو اَلَيْسَ لِيْ مُلْكُ مِصْرَ لفظ دَ لِيْ ئے مخكښ كړو اشاره ده حصر او تخصيص ته يعنی بادشاهی دَ مصر خاص زما ده ما سره پكښ هيڅوك شريک نيشته باقی خلق خو زما رعيت دے. وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِيْ اول جمله كښ نظام قانون ته اشاره وه او په دے جمله كښ معاشی نظام ته اشاره ده چه دا دواړه زما په اختيار كښ دی. دَ رودِ نيل نه ئے ډير نهرونه جدا كړے وو چه دَ هغے نه څلور غټ نهرونه وو او په كورونو، محلاتو او باغاتو كښ چلولے وو. دَ هغه څلورو تومونه دا دی ۱ نهر الملِک، ۲ نهر طولون، ۳ نهر تنّيس، ۴ نهر دمياط. او بعض مفسرينو ويلی دی چه مراد دَ انهار نه دَ ملک مشران سرمايه داران وغيره دی او بعضو ويلی دی چه مراد ترينه مطلق مالونه دی.

۵۲: په دے كښ دَ موسٰی عليه السّلام تحقير او سپكوالے كوی. هُوَ مَهِيْنٌ يعنی قوت دَ ملكيّت او بادشاهی ئے او مال ئے نيشته نهرونه ئے نيشته كارونه پخپله كوی وَلَا يَكَادُ يُبِيْنُ يعنی فصاحت بلاغت ئے نيشته خپل مقصد صاف نشی بيانولے. او دا دواړه خبرے دَ دهٔ ښكاره دروغ وو ځكه چه موسٰی عليه السّلام خو ډير عزت مند شريف اخلاقو والا خائسته صورت والا وو حديث دَ بخاری او مسلم كښ راغلی دی نبی صلّی الله عليه وسلّم فرمائيلی دی "چه ما دَ اسراء په شپه كښ موسٰی عليه السّلام لره اوليدو چه سړے سُور رنګ ته مائل غنم رنګی دنګ قد والا ګنګوچ ويښتو والا وو ګويا كه دے دَ سړو دَ شنوءَ قبيلے نه وو."

او دَ موسٰی عليه السّلام رعب وو په فرعون باندے او دا رنګ موسٰی عليه السّلام ډير فصيح او بليغ وو كه چرے دَ هغه په ژبه كښ غوټه وه ورو كوالی كښ نو په دُعا (واحلل عقدة من لسانی) سره ختم شوے وه. ليكن دا دَ متكبرينو عادات دی چه په دروغو او صافو سره حق پرست خلق موصوف كوی.

أَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ أَوْ جَآءَ مَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ

کړے | د | سرو زرو | یا | نه راغلی | د ده سره | ملائیک

مُقْتَرِنِيْنَ ﴿۵۳﴾ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَأَطَاعُوْهُ ط

چه صفونه ئې تړلے دی۔ | نو دهوکه ئې کړه | قوم خپل | نو هغوی ده تابعداری اوکړه

إِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۵۴﴾ فَلَمَّآ

یقینا هغوی | وو | قوم | نافرمان۔ | نو هر کله چه دوی

۵۳:۔ داهم تحقیر او تکذیب د موسٰی علیه السّلام کوی په طریقه د قیاس د رسولانو د الله تعالٰی په قاصدانو د بادشاهانو د دنیا په هغه زمانه کښ چه هغوی به قاصدان خپل ته چه هغه به ډیر مقرب وو په لاسو کښ د سرو زرو بنګړی او کنګن اچول او د هغه په ملګرتیا کښ به ئې ډیر خدمتګاران روانول د دے وجے نه فرعون په موسٰی علیه السّلام باندے دا دواړه اعتراضونه اوکړل او ثابتول ئې چه د ے رسول نه دے، لیکن دا قیاس د دوی باطل دے بلکه رسولان د الله تعالٰی چه دی نو په غیبی قوتونو سره د هغوی امداد کیږی او دنیوی زیب وزینت ته د هغوی حاجت نه وی۔

فائده :۔ فرعون په اوبو سره ځان له عزت حاصلوؤ نو الله تعالٰی ده له په اوبو سره هلاک کړو اشاره ده چه چا بغیر د الله تعالٰی نه په بل څیز سره تعزز او مدد حاصلوؤ نو الله تعالٰی به ده له هغه سبب د هلاکت اوګرځوی۔ او دارنګ فرعون موسٰی علیه السّلام ته سپک کتل او د فقیرے او د عدم فصاحت عیبونه په هغه باندے ویل نو الله تعالٰی هغه له په فرعون باندے مسلّط کړو۔

۵۴:۔ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ دا مخکښ دعوی د فرعون او سپکوالے د موسٰی علیه السّلام سبب اوګرځید د جهل د قوم فرعون د پاره او دغه جهل سبب شو د اطاعت د هغوی فرعون له فَأَطَاعُوْهُ او دغه خبرے د فرعون سبب د جهل د قوم په دے وجه سره اوګرځیدو چه دوی پوره فاسق او نافرمان وو إِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ۔

فائده :۔ طریقه د پیرانو او عالمانو باطل پرستو هم د فرعون پشان ده چه دوی خپل مریدان شاګردان د علم د قرآن او سنّت او د تحقیق نه منع کوی د پاره د دے چه جاهلان پاتے شی نو د دوی اطاعت به کوی۔

فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۵۵﴾

خفه کړو مونږه بیاله مونږ واغستلو بدله ددوی نه نو غرق کړل مونږ دا ټول

فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّمَثَلًا لِّلْاٰخِرِيْنَ ﴿۵۶﴾

نو اوګرځول مونږ دوی تیر شوی نمونه او عبرت د پاره د روستنو .

وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا اِذَا قَوْمُكَ

او هرکله چه ذکر کړے شي ځوئے د مریم د مثال په طور باندے دغه وخت ستا قوم

ف۵۵ :- په دے ایت کښ د فرعونیانو عذاب ذکر کړی د پاره د تخویف د نورو منکرینو. فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا اسف په معنیٰ د غضب دے او دا هم صفت د الله تعالیٰ دے خو مشابه د مخلوق سره نه دے او اشاره ده غضب غیر دے د انتقام نه ځکه چه انتقام ئے روستو ذکر کړے دے .د عمر بن ذر نه قرطبی نقل کړیدی هغه به ویل " اے ګناه کوونکو خلقو د الله تعالیٰ په ډیر حلم باندے مه مغرور کیږئ بلکه د هغه د غضب نه ویره کوئ او دا ایت ئے اولوستلو" . او ابن جریج رض یو کرته غصه شو توچا ورته اُویل چه اے ابو خالده ته هم غصه کوے نو هغه اُویل "چه خالق د احلامو ( جمع د حلم ده صبر ته ویلے کیږی ) هم غصه کیږی او دا ایت ئے اولوستلو".

ف۵۶ :- سَلَفًا دا جمع د سالف ده لکه خدم جمع د خادم ده یا دا مصدر دے اطلاق ئے په جماعت باندے هم کیږی او سلف مطلق متقدمینو ته ویلے کیږی که خیر وی او که شر وی د دے وجے نه د مدح په وخت کښ د دے سره قید د صالح او صالحین لګیدلے شی ـ او فرق په مینځ د سلف او مثل کښ یو څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه سلف تیر شوے نمونه د عذاب او مثل واقعه د عبرت حاصلولو د پاره دویمه وجه سلف مقتدا د هغځ چا د پاره ده چه علو او فساد کوونکی دی او مثل خبره عجیبه شان والا دریمه وجه سلف د هغه چا د پاره چه د دوی پشان عمل ئے کړے وُو په زمانه د دوی کښ او مثل د هغه چا د پاره چه روستو د هغوی پشان عمل کوی. څلورمه وجه سلف مخکښ تلونکی اور ته او مثل وعظ د پاره د روستنو خلقو. پنځمه وجه بنی اسرائیل سلف شو په نجات موندلو کښ د صالحانو د پاره او فرعونیان مثل شول د ناکاره خلقو د پاره . فَجَعَلْنٰهُمْ ضمیر دواړو ته په جمع سره راجع دے .

مِنْهُ يَصِدُّوْنَ ﴿۵۷﴾ وَقَالُوْٓا ءَاٰلِهَتُنَا خَيْرٌ

دَ دے دجه نه شور کوی۔ او وائی آیا زمونږ معبودان غوره دی

اَمْ هُوَ ۗ مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ اِلَّا جَدَلًا ۗ بَلْ هُمْ

یا دے. نه ذکر کوی دوی تاته دا خبر مګر دَ ضد دَپاره بلکه دوی

قَوْمٌ خَصِمُوْنَ ﴿۵۸﴾ اِنْ هُوَ اِلَّا عَبْدٌ اَنْعَمْنَا

قوم دے جګړه مار۔ نه دے دِے مګر یو بنده چه نعمت کړے وؤ مونږ

۵۷ ۵۸:- دا زجر دے او تمهید دے واقعے دَ عیسیٰ علیه السلام دَپاره۔ دَ دے په ربط کښ دَ ماقبل سره دوه احتمالونه دی اول دا چه مخکښ جدال او عناد دَ فرعونیانو دَ موسیٰ علیه السلام په مقابله کښ ذکر کړے شو تو اوس ضد او عناد دَ مشرکین مکه ذکر کوی په مقابله دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم کښ حاصل ئے دا دے چه نبی صلّی الله علیه وسلّم ذکر دَ احوالو دَ عیسیٰ علیه السّلام په وخت په وخت کاوؤ دَ اثبات دَ توحید او دَ رد دَ مشرکینو دَپاره نو مشرکینو په شور کاوؤ چه دے هر وخت دَ عیسیٰ علیه السّلام ذکر مونږ ته کوی نو دَ دهٔ مقصد دا دے چه زمانه اِله جوړ کړے لکه چه نصاریٰ دَ عیسیٰ علیه السلام نه اِله جوړ کړے وؤ نو معنیٰ دَ اٰلِهَتُنَا خَيْرٌ اَمْ هُوَ چه زمونږ اِلهه غوره دی او که دَ محمد صلّی الله علیه وسلّم! بلکه زمونږ الهه غوره دی. دویم احتمال دا دے چه دَ دے ربط دے ایت ۴۵ سره حاصل ئے دا دے چه هر کله اُویلے چه دَ هیڅ رسول په دین کښ دَ مجعول اِله اجازت نیشته۔ نو هر کله چه دوی په قران کښ دَ عیسیٰ علیه السلام ذکر واؤریدلو نو دوی شور اوکړو چه ولے عیسیٰ علیه السّلام ته الوهیت ته وؤ ورکړے شوے؟ او هر کله چه عیسیٰ علیه السّلام مجعول اِله دے نو زمونږ اِلهه دَ دهٔ نه غوره دی نو هغوی هم مجعول اِلهه دی نو معنیٰ دَ اٰلِهَتُنَا خَيْرٌ اَمْ هُوَ زمونږ اِلهه غوره دی او که عیسیٰ علیه السّلام! بلکه زمونږ الهه غوره دی۔ دریم قول په دے ایت کښ دا دے چه سورة انبیاء کښ ذکر شوه چه یقیناً تاسو او ستاسو معبودان ماسوی الله به دَ جهنم خاشاک وی. نو هر کله چه دَ عیسیٰ علیه السّلام په قران کښ ذکر راغ اورد اوکړے شو په نصاریٰ باندے نو مشرکینو دغه وخت کښ شور اوکړو چه په معبودان من دون الله کښ عیسیٰ علیه السلام داخل دے نو چه هغه جهنم ته داخلیږی نو زمونږ اِلهه دِ ورته هم داخل شی هیڅ پرواه نیشته او مقصد

عَلَيْهِ وَجَعَلْنٰهُ مَثَلًا لِّبَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۵۹﴾

په هغه باندې او ګرځولے دے مونږ هغه نمونه دپاره د بنی اسرائیلو۔

د دوی اعتراض کول وو په نبی صلی الله علیه وسلم باندے چه دے عیسٰی علیه السلام ته جهنمی وائی نو معنٰی د "ءَاٰلِهَتُنَا خَيْرٌ اَمْ هُوَ" داده چه زمونږ الهه غوره دی او که عیسٰی علیه السلام لیکن عیسٰی علیه السلام خو غوره دے نو چه هغه اور ته داخلیږی نو زمونږ الهه دِ هم داخل شی۔ لیکن د دے قول د ماقبل سره ښکاره ربط نیشته سِوا د دے نه چه دا هم زجر دے د مشرکینو په بے ځایه اعتراض او شور کولو ځکه چه سورة انبیاء کښ د بزرګانو (چه خلقو ترینه معبودان جوړ کړے دی) ذکر په وړپسے ایت کښ کړے شوے دے (ان الذین سبقت لهم منا الحسنی) نو د دوی اعتراض باطل دے بل داده چه سورة انبیاء او د دے سورت په نزول کښ ډیره زمانه فاصله ده نو د هغوی د سوال جواب ئے ولے دومره زمانه روستو کړے وو۔

وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا یعنی هرکله په قرآن کښ د مشرکانو په رد کښ عجز او عبدیت د عیسٰی علیه السلام په طریقه د مثال سره ذکر کړے شی۔

مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ اِلَّا جَدَلًا یعنی دے مشرکانو چه د معبود من دون الله دپاره په طور د مثال سره د عیسٰی علیه السلام نوم ذکر کړے دے نو دا صرف د ضد او د عناد په طریقه دے ځکه چه دوی ښهٔ پوهیږی چه هغه اِلٰه نه وؤ او په حدیث د ترمذی کښ وارد دی چه نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل "هرکله چه یو قوم سره د علم نه بے لارے شی نو هغوی ته جدال ورکړے شی (یعنی په ضد او عناد کښ اخته شی) او دا ایت ئے تلاوت کړو"۔

س۵۹:۔ روستو د زجر نه جواب دے د دوی جدال ته په ذکر د حقیقت حال د عیسٰی سره او په نفی د الوهیت سره د هغه نه۔ اِنْ هُوَ اِلَّا عَبْدٌ دارد دے په نصارٰی او په هغه چاچه عیسٰی علیه السلام لره د الوهیت عقیده لری اَنْعَمْنَا عَلَيْهِ دارد دے په یهودیانو او په هغه چاچه د عیسٰی علیه السلام د نبوت نه انکار کوی ځکه چه مراد د انعام نه نعمت د نبوت دے وَجَعَلْنٰهُ مَثَلًا لِّبَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ دارد دے د و هم د هغه چاچه دلیل نیسی د هغه د الوهیت دپاره په پیدائش د هغه بغیر د ناریته نه! حاصل داچه دا سے پیدائش د عیسٰی د بنی اسرائیلو دلیل او عبرت د قدرت د الله تعالٰی دے۔ او هرکله چه بنی اسرائیل د هغه په وخت کښ موجود وو او د هغه د حال نه ښهٔ خبر وو د دے وجے نه د هغوی تخصیص ئے اوکړو یا د مثال نه مراد دے قُدْوَة (هغه څوک چه د هغه اقتداء لازم وی)۔

وَلَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا مِنْكُمْ مَّلٰٓئِكَةً فِى الْاَرْضِ

اوکه چرے اوغواړو موږ نو پیدا به کړو ستاسو په بدله کښې ملائیک په زمکه کښې

يَخْلُفُوْنَ ﴿٦٠﴾ وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ

چه ستاسو په ځائے به اوسیږی ۔ او یقیناً (عیسیٰ علیه السّلام) نخه د قیامت ده

فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ

نو شک مه کوئے په قیامت کښې او تابعداری اوکړئے زما دا لار

مُّسْتَقِيْمٌ ﴿٦١﴾ وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ ۚ اِنَّهٗ

نیغه ده ۔ او دانه روی تاسو لره شیطان یقیناً دے

س۶۰ :۔ دا دویم رد دے په هغه چا چه دَ عیسیٰ علیه السّلام دَ عجیب پیدائش نه دلیل نیسی دَ هغه په الوهیت باندے حاصل دا دے چه حال دَ عیسیٰ علیه السّلام اگر چه عجیبه دے لیکن الله تعالیٰ دَ دینه په زیات عجیبه باندے قدرت لری هغه دا چه ستاسو نه ملائک پیدا کړی یا ستاسو په بدل کښې ملائک په زمکه کښې آباد کړی لیکن دا مستلزم نه دے چه ملائک دِ اِلٰهه شی ځکه په دے عجیبه طریقو سره څوک دَ مخلوقیت او دَ عبدیت نه نه اوځی ۔ مِنْكُمْ مِنْ په معنیٰ دَ بدلیت دے یا بخپله معنیٰ دے یعنی په طریقه دَ تولید سره ۔

س۶۱ س۶۲ :۔ په متعلق دَ عیسیٰ علیه السلام بله فائده ذکر کوی چه دلالت کوی دَ عیسیٰ علیه السّلام په عظمت باندے اِنَّهٗ ضمیر ابن مریم ته راجع دے او مراد تری نه نزول دَ هغه دے په وخت دَ خروج دَ دجال کښې نزدے قیامت نه چه تفصیل دَ هغے په احادیث صحیحه کښې راغلے دے لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ یعنی نزول دَ عیسیٰ علیه السّلام سبب دَ علم دَ قیامت دے یا عِلم په معنیٰ دَ علامة دے ۔ او دَ اِنَّهٗ په ضمیر کښې دویم احتمال دا دے چه قرآن ته راجع دے یعنی نصوص دَ قرآن سبب دَ علم دَ قیامت دے لیکن په دے احتمال سره دَ کلام ربط نه راځی دَ ماقبل سره ۔ وَاتَّبِعُوْنِ روستو دَ تفصیل دَ حال دَ عیسیٰ علیه السّلام او دَ دفع کولو دَ شبهاتو نه امر دے په اتباع دَ رسول الله صلّی علیه وسلّم په تقدیر دَ (قل) سره او دَ دے مناسبت لطیفه دا دے چه عیسیٰ علیه السلام روستو دَ نزول نه مکلف به وی په اتباع دَ محمد رسول الله صلّی الله علیه وسلّم سره ۔ او هر کله چه په باره دَ عیسیٰ علیه السلام او دَ اتباع دَ سنّت دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم کښې شیطان ډیر شبهات اچوی

لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۶۲﴾ وَلَمَّا جَآءَ عِيْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ

تاسو لره دشمن ښکاره دے ۔ او هر کله چه راغے عیسیٰ علیه السلام په ښکاره دلیلونو سره

قَالَ قَدْ جِئْتُكُمْ بِالْحِكْمَةِ وَلِاُبَيِّنَ لَكُمْ

اُوئیل هغه یقینًا راوړے دی ما تاسو ته ډیوهے خبرے او د دے دپاره چه وضاحت اوکړم تاسو ته

بَعْضَ الَّذِيْ تَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ ۚ فَاتَّقُوا

د بعضے هغه خبرو چه تاسو اختلاف کوئے په هغے کښ نو ویریږئے

اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿۶۳﴾ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ رَبِّيْ

د الله تعالیٰ نه او تابعداری کوئے زما ۔ یقینًا الله تعالیٰ هغه رب زما

نو تنبیه ئے ذکر کړه په دے قول سره وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ که شیطان جنی او که انسی وی لکه چه په دے زمانه کښ قادیانان (شیطانان انسیه) په باره د حیاتِ عیسیٰ او نزولِ عیسیٰ کښ شبهات پیدا کوی لیکن د هغے شبهاتو د ازالے دپاره د قرآن علم ضروری دے او په اتبعون باندے عمل پکار دے.

س۶۳ نا ۶۵ :. هر کله چه د عیسیٰ علیه السلام عظمتِ د شان او صداقت بیان شو نو اوس د هغه د طرف نه دعوت د توحید ذکر کوی په طریقه د دلیل نقلی سره او رد په یهودیانو نصاریٰ او مشرکینِ عرب باندے بِالْبَيِّنٰتِ مراد ترینه معجزات او انجیل دے . بِالْحِكْمَةِ مراد ترینه نبوت دے یا علم د رسالت چه هغه احادیث د عیسیٰ علیه السلام دی یا مصداق د حکمت دغه بینات دی چه مخکښ ئے ذکر کړل چه هغه محکم او مضبوط دی چه هیڅوک هم د هغے مقابله نشی کولے . وَلِاُبَيِّنَ لَكُمْ دا عطف دے په معنیٰ د بالحکمة باندے چه هغه لاظهار الحکمة دے بَعْضَ الَّذِيْ تَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ دا پیشان د لاحل لکم بعض الذی حرم علیکم (سورة العمران س۵۰) دے مراد دا دے چه تورات کښ بعضِ احکام او بعضِ محرمات وُو نو دا انجیل په راتللو سره هغه منسوخ شول او په هغے کښ تخفیف او اسانتیا وه په بنی اسرائیلو باندے ـ یا د دے مراد نه تحریفات د تورات دی او بعض په معنیٰ د کل سره دے یا مراد ترینه هغه مسائل دی چه احبارو د یهودو د ځان نه جوړ کړے وو نو بیا هم بعض په معنیٰ د کل سره دے یا مراد ترینه هغه مسائل د دین دی چه احبارو په هغے کښ اختلاف جوړ کړے وُو د هغے وضاحت عیسیٰ علیه السلام اوکړو او اختلافاتِ دنیویه ئے نه دی بیان کړی (پاتے په بل مخ)

وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٦٤﴾

او رب ستاسو دے نو بندگی دَ هغه خاص کړئے دا لار نیغه ده۔

فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ

نو مختلف شول ډلے په مینځ خپل کښی نو تباهی ده

ظَلَمُوا مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴿٦٥﴾ هَلْ يَنظُرُونَ

ظالمانو لره دَ عذاب دَ ورځے دردناکے نه۔ انتظار نه کوی دوی

نو بعض په خپله معنیٰ باندے دے۔ اولویه مسئله اختلافیه په دوی کښی توحید وه دَ دے وجے نه دَ هغے وضاحت ئے اوکړو په فاتقوالله، وان الله ربی اه سره۔ او دا جمله تیره شویده په سورة العمران سـ۵۱ او سورة مریم سـ۳۶ کښی۔

**فائده** :- سورة العمران او په دے سورت کښی فاتقوالله ذکر وؤ نو اِنَّ اللهَ دَ هغے علت دے دَ دے وجے واؤ ئے په اول کښی ذکر نه کړو او په سورة مریم کښی په ماقبل کلام باندے عطف وؤ دَ دے وجے نه حرف واو ئے ذکر کړے دے۔ بیا په دے ایاتونو کښی دَ عیسیٰ علیه السّلام په باره کښی ډیر شبهات دفع کول مقصد وو نو دا رنگ دَ دفع دَ شبهے دَ پاره اِنَّ اللهَ هُوَ رَبِّیْ په لفظ دَ هُوَ (چه دَ حصر او دَ تاکید دَ پاره دے) ذکر کړو۔

سـ۶۵ :- دا جواب دَ سوال دے سوال دا دے چه دَ عیسیٰ علیه السّلام دین که چرے توحید وے نو روستو خلقو ولے دَ هغے مخالفت اوکړو حاصل دَ جواب دا دے چه روستو دَ رفع دَ عیسیٰ علیه السلام نه په دوی کښی ډلے پیدا شوے او تحزب او تعصب کښی راغلل نو دا سبب دَ اختلاف شو لکه چه سورة مریم سـ۳۷ کښی تیر شویدی او بیا دے اختلاف جوړوؤنکو دَ پاره ئے تخویف ذکر کړے دے۔ هرکله چه په دے ایاتونو مخکښنو کښی دَ شبهانو ازاله کړے ده او سرهٔ دَ دے نه دے خلقو اختلاف جوړ کړو نو دا ظلم دے او په سورة مریم کښی صرف دعوة دَ عیسیٰ علیه السّلام ذکر کړو او مخالفینو دَ هغے انکار کړے دے نو هغه کفر دے په دے وجه په دے سورت کښی الذین ظلموا او په سورة مریم کښی الذین کفروا ذکر کړے دے۔

إِلَّا السَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً وَهُمْ

مګر دَ قیامت چه راشی دوی ته ناګهه او دوی به

لَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٦﴾ الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ

نه پوهیږی - دوستان به په دغه ورځ بعض دَ دوی

لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ ﴿٦٧﴾ يَا عِبَادِ

دَ بعضو دَپاره دشمنان شی مګر متقیان - (او به ویلے شی دوی ته) اے بندګانو زما

لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَا أَنتُمْ تَحْزَنُونَ ﴿٦٨﴾

نیشته ویره په تاسو باندے نن ورځ او نه به تاسو غمژن کیږئ.

سے۶۶:۔ داهم تخویف اخروی دے اختلاف کوونکو دَپاره. بَغْتَةً مراد دَ دے نه دادے چه وخت او تاریخ دَ هغے به معلوم نه وی وهم لا یشعرون عطف دے په معنیٰ دَ هل ینظرون باندے. یا تاکید دَ بغتةً دے یعنی دوی به غافل وی په وخت دَ راتللو دَ قیامت کښ.

سے۶۷:۔ دَ دے ایت نه تر اخره دَ سورت پورے دریم باب دے. په دے کښ بشارت تفصیلیه بیا تخویف تفصیلی سرهٔ دَ سبب عذاب نه ذکر کوی. بیا زجرونه دی او تفصیل دَ توحید دے سرهٔ دَ دلیلونو نه. نفی دَ ولد، نفی دَ شرک فی الالوهیة، نفی دَ شرک فی البرکات، نفی دَ شفاعتِ قهریه ده او په اخر کښ تسلّی ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته او امر دے په براءة سره دَ مشرکانو نه. په دے (سے۶۷) کښ دَ مشرکانو او دَ مؤحدینو دَ دوستانے دنیوی عاقبت ذکر کوی چه دَ مشرکانو دَ دوستانے عاقبت به په اخرت کښ دشمنی وی او دَ یو بل نه به براءت کوی چه هغه په مختلف سورتونو کښ ذکر کړے شویده لکه سورة اعراف، بقره، ابراهیم، سبا، ص، قصص (براءت دَ تابعینو او متبوعینو) او دَ دے ایت نه تر سے۷۳ پورے بشارت مشتمل دے په دولس امورو باندے او ورسره سبب دَ بشارت هم ذکر دے نو په دے ایت کښ دَ متقینو دَ دوستانے دوام ذکر کوی او دا اوّل بشارت دے.

سے۶۸:۔ په دے کښ دویم او دریم بشارت ذکر دے عدم خوف او عدم حزن، دَ یا عباد نه مخکښ یَقُولُ الله پټ دے یعنی الله تعالیٰ به اواز اوکړی په ورځ دَ قیامت نو خلق به سرونه اوچت کړی چه مونږ عباد الله یو نو الله تعالیٰ به اُوائی الذین امنوا.

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ﴿۶۹﴾

هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے په ایاتونو زمونږ او وو دوی مسلمانان.

اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ اَنْتُمْ وَاَزْوَاجُكُمْ

داخل شئ جنت ته تاسو او جوړے ستاسو

تُحْبَرُوْنَ ﴿۷۰﴾ يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِّنْ

نعمتونه به درکیدے شی. گرځولے به شی په دوی باندے کاسے د

ذَهَبٍ وَّاَكْوَابٍ ۚ وَفِيْهَا مَا تَشْتَهِيْهِ

سره زرو او ګلاسونه او په هغې کښې هغه څیزونه دی چه غواړی د دوی

الْاَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ ۚ وَاَنْتُمْ فِيْهَا

نفسونه او مزه پرے اخلی سترګے او تاسو به په هغې کښې

خٰلِدُوْنَ ﴿۷۱﴾ وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْٓ اُوْرِثْتُمُوْهَا

همیشه یئ. او دا هغه جنت دے چه درکړے شو تاسو ته

۶۹:. په دے ایت کښې دوه سببونه د بشارت ذکر کوی اول ایمان بالآیات او دویم اسلام یعنی پوره انقیاد ظاهری او باطنی.

۷۰:. دا جواب د نداء دے (یا عباد) او په دے کښې تور درے بشارتونه ذکر کوی دخول جنت سره د ازواجو نه او تحبیر. مراد د ازواجو نه هغه بیبیانے دی چه د خاوندانو سره ئې په توحید او سنت کښې موافقت کړے دے. حبرة په اصل کښې مبالغه ده په اکرام په ډیر خائسته طریقے سره نو په معنیٰ د کرامت او د فرح (خوشحالی) او ډیر نعمتونه او مزه اخستل په غنا سره په جنت کښې، دے ټولو ته تحبرون شامل دے.

۷۱:. په دے ایت کښې تور پنځه بشارتونه دی. يُطَافُ عَلَيْهِمْ د خوراک او څکاک د پاره دالوښی دی صحاف د خوراک د پاره او اکواب د څکاک د پاره دی. صحاف جمع د صحفة ده او صحفه هغه لوښے دے چه په اصطلاح د عربو کښې هغې کښې پنځه کسان مړیږی. وَاَكْوَابٍ جمع د کوب ده هغه ګلاسونه دی چه کړئ د نیولو او سنت ئې نه وی او د دے سره هم مِنْ ذَهَبٍ مراد دے یعنی دا دواړه قسمه لوښی به د سرو زرو وی. اهل جنت کښې مختلف قسمونه دی د چالوښی به د سرو زرو وی او د چا به د سپینو زرو وی لکه

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۷۲﴾ لَكُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ

په وجه دَهغه عملونو چه تاسو کول - تاسو لره په هغې کښ میوے

كَثِيْرَةٌ مِّنْهَا تَأْكُلُوْنَ ﴿۷۳﴾ اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ

ډیرے دی بعضِ دَهغې نه تاسو خورئ - یقیناً مجرمان به

فِیْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ﴿۷۴﴾ لَا يُفَتَّرُ

په عذاب دَ جهنم کښ همیشه وی - نه به شی کمیدلے

سورة دهر ۵ کښ. وَفِيْهَا دا ضمیر جنت ته راجع دے نو عام نعمتونه ترے مراد دی یا دغه لو بنو ته راجع دے نو دَخوراک څکاک اقسام ترینه مراد دی.

مَا تَشْتَهِيْهِ الْاَنْفُسُ مشتهیات دَنفس عام دی که دَجنس دَملموساتو نه وی او که دَ منذوقاتو نه وی او که دَمسموعاتو نه وی او که دَ مشموماتو نه وی او که دَمعقولاتو نه وی، وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ دا صرف مبصراتو ته شامل دے او دا هر کله چه دَ سیل او تفریح سره تعلق لری او په دے کښ لوئ خیز دیدار دَالله تعالیٰ دے نو دائے دَدے وجے نه جدا ذکر کړو. نیشاپوری دَ قفال نه روایت کړے دے چه په دے دواړه جملو کښ الله تعالیٰ هغه نعمتونه جمع کړے دی که ټول مخلوق دَ هغې په تفصیلاتو باندے شوروشی نو پوره کولے نشی.

۷۲: په دے ایت کښ ئے سبب دَ حصول دَجنّت ذکر کړے دے لکه چه سورة اعراف ۴۳ کښ تیر شوید ے . اُوْرِثْتُمُوْهَا میراث ئے په دے وجه سره اُوئیل چه میراث بے تکلیفه حاصلیږی نو دا سے دَجنت دَپاره چه کم عمل مؤمنانو کړے دے هغه په حقیقت کښ دَجنت دَنعمتونو نه ډیر کم دے گویا چه جنت هم بے تکلیفه حاصل شوید ے . بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ استحقاق دَجنّت په رحم دَالله تعالیٰ سره دے لکه چه حدیث کښ راغلی دی او درجات دَجنت په عمل سره حاصلیږی نو دلته ئے عمل سبب اوګرځوُ یا دا چه لوئ عمل ایمان او توحید دے او حدیث کښ چه رحمت ذکر دے هغه هم په معنیٰ دَاستقامت علی التوحید دے نو ایت او حدیث موافق دی.

۷۳: په دے کښ اخری بشارت ذکر کوی چه دَخوراک څکاک نه روستو فواکه (میوے) دی. كَثِيْرَةٌ ډیر اقسام او ډیر افراد ئے دی چه نه ختمیږی. مِنْهَا مِن ئے تبعیضیه دے. ( پاتے په بل مخ )

۷۴ ۷۵ ۷۶: دا تخویف اخروی دے او په مقابل دَبشارت کښ دے.

عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿٧٥﴾ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ

دَ دوی نه او دوی به په هغې کښې نا امیداه وی . او ظلم نه دے کړے موږ په دوی باندې

وَلَٰكِن كَانُوا هُمُ الظَّالِمِينَ ﴿٧٦﴾ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ

لیکن وو دوی ظالمان . او آواز به اوکړی دوی اے مالکه

لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ۖ قَالَ إِنَّكُم

فیصله دَ مرګ دِ اوکړی په موږ باندې ستا رب او به وائی یقینًا تاسو به

مَّاكِثُونَ ﴿٧٧﴾ لَقَدْ جِئْنَاكُم بِالْحَقِّ وَلَٰكِنَّ

ایسار یئ . یقینًا راوړے دے موږ تاسو ته حق لیکن

أَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ ﴿٧٨﴾ أَمْ أَبْرَمُوا

ډیر ستاسو نه حق لره بد ګڼړی . ایا محکمه کړے موږ

خو تخویف یٔ په نصف دَ بشارت ذکر کړے دے یعنی په شپږ طریقو سره. اوّل ایت کښې دوه تخویفونه دویم ایت کښې هم دوه دی او په دریم ایت کښې سبب دَعذاب ذکر کړو چه هغه ظلم (شرک وکفر) دے. لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ تفتّر دیته ویلے کیږی چه اراده اوکړے شی دَ کمزورے کولو او فتور عام کمزورے ته ویلے کیږی یعنی کمزور عذاب خو نه دے لیکن الله تعالیٰ به اراده هم نه کوی دَ هغے دَ کمزورے کولو. او بیضاوی ویلے دی چه تفتّر او فتور لږ ضعف ته ویلے کیږی یعنی دا عذاب به لږ هم نه کمزورے کیږی.

۷۷: په دے کښې دوه تخویفونه ذکر کوی. فریادونه کول مالک ته دَ پاره دَ مرګ غوښتلو او جواب په ماکثون سره، مَالِكُ دَ جهنم خازن ملک دَ پاره نوم دے. دَ محمد بن کعب قرظی نه نقل دے چه دوی به اوّل آواز نه لو خازنانو دَ جهنم ملائکو ته اوکړی لکه چه سورة غافر ۴۹ کښې تیر شویدی نو چه دَ هغوی نه نا امیداه شی نو بیا به مالک ته آواز اوکړی. او په حدیث دَ ترمذی کښې راغلے دی چه زر کاله روستو به جواب ورکړی إِنَّكُم مَّاكِثُونَ او مراد دَ مُکث نه همیشه اوسیدل دی لکه چه په باره دَ جنت کښې سورة کهف ۳ کښې تیر شوے دی.

۷۸: په دے کښې ذکر دے سبب دَ عذاب. او په دے خطاب کښې دوه احتمالونه دی اول دا چه دا دَ مالک دَ طرف نه خطاب دے دویم دا چه دا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه

أَمْ أَبْرَمُوا أَمْرًا فَإِنَّا مُبْرِمُونَ ﴿٧٩﴾ أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا

یوه خبره نو یقینًا موږ هم کلکوونکي یو - ایا گمان کوي دوی چه موږ

لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ ۚ بَلَىٰ وَرُسُلُنَا

نه اورو پټې خبرې د دوی او جرگې د دوی هاں (اورو ئې) او ملائک زموږ

لَدَيْهِمْ يَكْتُبُونَ ﴿٨٠﴾ قُلْ إِن كَانَ

د دوی سره دي چه لیکل کوي - ته اوایه که چرې وي

لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ ﴿٨١﴾

د رحمان د پاره ولد نو زه به ووم اول بندگي کوونکي د هغه -

خطاب دے - أَكْثَرَكُمْ (سوال) دوئي خو ټولو د حق نه نفرت کړې دے نو اکثر ئې ولے اُویل؟ جواب دا دے چه مراد د اکثر نه د دوی مشران دي هغوی د حق نه نفرت کاوو او نورو د هغوی تقلید کاوو او د حقیقت نه خبر نه وو.

۷۹، ۸۰:- په دے ایاتو کښ زجر دے. أَمْ أَبْرَمُوا متعلق دے کارهون سره یعنی صرف د حق په بدا کتو لو باندے اکتفاء نه کوی بلکه د حق په مقابله کښ تدبیرونه او چلونه جوړوی د نبی صلی الله علیه وسلم د قتل او د توحید د ختمولو د پاره. أَبْرَام کلکه او قطعی فیصلے کولو ته ویلے کیږی نو هغه داسے تدبیر وی چه په کتره سره ئې اوکړی. فَإِنَّا مُبْرِمُونَ داسے په سورة طور ۴۲ کښ راغی - او هر کله چه دوی د دشمنی د حق سره په زړه کښ پټه ساتی بیا د هغے د پاره د ملگرو سره جرگے کوی نو په هغے باندے زجر ورکوی په دے لفظ د أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ سره نو د دے گمان تردید ئې اوکړو په بَلَىٰ سره بیا د زیات تاکید د پاره ئې لیکل د ملائکو ذکر کړل د دے د پارچه داخلق بیا انکار نه شی کولے د یحیٰی بن معاذ رضی الله عنه نه نقل دے چه څوک د خلقونه گناهونه پټ ساتی او هغه ذات ته ئې ښکاره کوی چه د هغه نه هیڅ څیز په اسمانو نو کښ پټ نه دے نو دا ئې د الله تعالیٰ ډیره بے عزتی او کړه او دا د علاماتو د منافقت نه ده".

۸۱:- په دے ایت کښ رد د عقیدے د ولد دے د الله تعالیٰ د پاره د سورة د اول ۱۵ سره تعلق لری یا د ۱۹ سره متعلق دے یعنی که مشرکان اُوائی چه مجعول اِلٰه نیشته لیکن ولد د الله تعالیٰ شته نو عبادت د هغه جائز شو نو په دے ایت کښ د هغے رد دے. په دے ایت کښ ډیر احتمالات دی (ړانے په بل مخ)

سُبۡحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ رَبِّ الۡعَرۡشِ

پاک دے رب دَ اسمانونو او دَ زمکے رب دَ عرش

عَمَّا يَصِفُوۡنَ ﴿۸۲﴾ فَذَرۡهُمۡ يَخُوۡضُوۡا وَيَلۡعَبُوۡا

دَ هغه خبرو نه چه دوی بیانوی (دَ هغه په باره کښې) - نو پریږده دوی چه ورننوځی په باطلو خبرو کښې او لوبے کوی

اول دا چه اِن شرطیه دے دویم دا چه اِن نافیه دے په اول احتمال باندے فَاَنَا اول جزا ده او په دویم باندے تفریع ده په نفی دَ ولد باندے. او دارنګ عَابِدِیۡنَ کښې اول احتمال دا دے چه په معنیٰ دَ عبادت کوؤنکے دے بیا په دے کښې دوه احتمالونه دی یو دا چه عبادت کوؤنکے دَ ولد او دویم دا چه عبادت کوؤنکے دَ الله تعالیٰ. دویم احتمال دا دے چه عابد دَ عَبِدَ نه ماخوذ دے په معنیٰ دَ نفرت کولو او انکار کوؤلو. او هر کله چه ان شرطیه شی او شرط او جزا وی نو بیا معنیٰ دا ده که چرے بالفرض دَ رحمان دَپاره ولد وی نو زه به اول عبادت کوؤنکے دَ دغه ولد وے وجه دَ ملازمے دا ده چه تعظیم دَ ولد دَ رحمان فرض دے پشان دَ تعظیم دَ رحمان. او دَ فرض په ادا کولو کښې خو زه ستاسو نه مخکښې یم ځکه دَ الله تعالیٰ مقرب رسول یم. لیکن تالی باطل دے یعنی زه خو دَ الله تعالیٰ نه سِوا دَ بل چا عبادت نه کووم نو معلومه شوه چه مقدم باطل دے یعنی ولد دَ الله تعالیٰ نیشته. نو هغه قضیه شرطیه ده چه جزاء دَ اِن محال وی لیکن ملازمه پکښې ښکاره ده لکه چه یو څوک ته اشاره اوکړے شی او اُویلے شی که چرے دا انسان وی نو ناطق به وی لیکن ناطق نه دے نو انسان هم نه دے لیکن ملازمه خو رښتنے ده چه انسان وی نو ناطق به ضروری وی. او دویمه معنیٰ دا ده که چرے دَ رحمان ولد وی نو زهٔ به هم دَ رحمان عبادت کوؤم او دَ ولد ئے نه کوم وجه دَ ملازمے دا ده چه زه عبادت په امر دَ الله تعالیٰ سره کوؤم او الله تعالیٰ مونږ ته دا سے امر نه دے کړے چه فلانے زما ولد دے او دَ دهٔ عبادت به کوئے.

۸۲ :. دا هم تردید دے په اتخاذ الولد باندے په بله طریقے سره هغه دا دے چه دَ صفت دَ ربوبیت دَ عالمینو او اتخاذِ ولد په مینځ کښې تضاد دے ځکه ولد که حقیقتاً شی نو مستلزم دے احتیاج لره او رب العالمین محتاج نشی کیدلے او درے اطراف دَ عالم ئے ذکر کړے دی عرش چه اوچت دے او زمکه چه کوزه ده او اسمانونه چه په مینځ کښې دی یعنی الله تعالیٰ په هیڅ جزء دَ دُنیا کښې ولد (نائب ته) محتاج نه دے.

حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِىْ يُوْعَدُوْنَ ﴿۸۳﴾

ترهغه پورې چه مخامخ به شي هغه ورځ د دوی سره چه دوی سره ئې وعده کیدا یشي -

وَهُوَ الَّذِىْ فِى السَّمَآءِ اِلٰهٌ وَّفِى الْاَرْضِ

او الله تعالیٰ هغه دے چه په اسمان کښ واکدار دے او په زمکه کښ

اِلٰهٌ ؕ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۴﴾ وَتَبٰرَكَ الَّذِىْ

واکدار دے او هغه حکمتونو والا دے پوهه دے په هرڅیز- او برکتونو والا دے هغه ذات

لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۚ

چه د هغه په اختیار کښ بادشاهی د اسمانونو او د زمکے او د مینځ د دے دواړو ده

وَعِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۵﴾

او خاص د هغه سره علم د قیامت دے او خاص هغه ته به او گرځولے شئ تاسو -

ف ۸۳ :- روستو د ذکر د دلیلونو نه زجر دے اعراض کوؤنکو ته چه هغوی مشغول دی په شبهاتو کښ او دے ته خوض ویلے کیږی یا مشغول دی په شهواتو کښ چه هغے ته لعب ویلے کیږی -

ف ۸۴ :- دا هم رد دے په عقیده د اتخاذ الولد باندې او رد د وهم دے وهم دا وو اگرچه الله تعالیٰ رب د عالم دے لیکن امکان شته چه په الوهیت کښ بل چا له حصه ورکړیوی نو هغه ولد یا شریک د الله تعالیٰ به وی نو جواب اوشو په طریقه د رد د شرک فی الالوهیة سره یعنی لکه چه شریک فی الربوبیة نه لری نو شریک فی الالوهیة هم نه لری. اِلٰهٌ په معنیٰ د حقدار د بندګۍ او هغه ذات چه د هغه بندګی په حقه سره کیدے شی هم په اسمانونو کښ او هم په زمکه کښ.

ف ۸۵ :- دا رد دے په شرک فی البرکات باندے او دفع د بل وهم ده وهم دا دے چه واقعی الله تعالیٰ رب دے الله دے لیکن کیدے شی چه د بعض برکاتو او منافعو پیدا کولو اختیار او قدرت ئې بل چا ته سپارلے وی نو هغه به ولد یا شریک شی حاصل د جواب دا دے چه بادشاهی د اسمانونو او زمکے او علم د فنا د دے چه په قیامت کښ به وی او رجوع د ټولو فیصلو الله تعالیٰ ته دا ټول د الله د پاره دی نو معلومه شوه چه برکات پیدا کوؤنکے او ورکوؤنکے هم الله تعالیٰ دے - تفصیل د تبارک په سورة اعراف ف ۵۴ او مومنون ف ۱۴ او فرقان ف ۱ ف ۱۰ ف ۶۱ غافر ف ۶۴ کښ تیر شویدے. (یا تے په بل مخ)

وَلَا يَمْلِكُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ
او وَس نه لري هغه کسان چه دوی ورته رامدد شه وائي سوا د الله تعالیٰ نه

الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَن شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿۸۶﴾
د سفارش کولو مگر هغه څوک چه اقرار ئې کړے وی د حق او هغوی علم لري -

وَعِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ هر کله چه علم په هغه پورے خاص دے نو لازمه خبره ده چه قدرت په هغې باندے هم په الله تعالیٰ پورے خاص دے۔

س۸۶:۔ دا جواب دے د مشهورے شبهے هغه داده چه مشرکان وائي چه موږ خپلو معبودانو ته الٰهه نه وایو رب او خالقان ورته نه وایو صرف داچه زموږ د دُنیا حاجتونه په الله تعالیٰ باندے پوره کوی او اٰخرت کښ به هم موږه د الله تعالیٰ د عذاب نه بچ کوی ځکه چه دوی د الله تعالیٰ محبوبان او محوریز خلق دی الله تعالیٰ مجبوراً د دوی خبره منی جواب او شو په رد د دے عقیدے سره لیکن په دے اٰیت کښ رد د شفاعت د اٰخرت دے مشرکانو لره یا رد د شفاعت دے په اٰخرت کښ د هغه معبودانو نه چه عقیده د توحید پکښ نه وی یعنی مشرکان پیران وی۔

بیا په دے اٰیت کښ احتمالات دی په اَلَّذِينَ يَدْعُونَ کښ دوه احتمالونه دی اول داد ے چه مراد د دے نه معبودان من دون الله دی نو ضمیر د يدعون مشرکانو ته راجع دے او هم ضمیر پکښ پټ دے الذین ته راجع دے۔ دویم احتمال دا دے چه مراد د دوی نه مشرکان دی او مفعول د يدعون پټ دے یعنی يدعون اٰلهة من دون الله۔ په اول احتمال باندے د لا يملك معنیٰ وس او اختیار نه لري معبودان د شفاعت کولو او په دویم احتمال باندے معنیٰ د لا يملك وَس نه لري مشرکان د حصول د شفاعت د خپل ځانونو د پاره۔ اِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ په اِلَّا کښ هم دوه احتمالونه دی اول داچه استثناء متصله ده کله چه الذین يدعون کښ ملائک او عیسیٰ او عزیر علیهم السّلام او اولیاء داخل دی نو په اِلَّا سره په هغوی تر ینه مستثنیٰ شی۔ دویم داچه اِلَّا استثناء منقطع ده کله چه د الذین يدعون نه مراد صرف ناکاره معبودان دی یعنی مشرکان پیران۔ او په مَنْ شَهِدَ کښ هم دوه احتمالونه دی اول داچه مراد په دے سره شفیع دے او روستو دواړه صفتونه د شفیع دی دویم داچه مراد د دے نه مشفوع له دے په تقدیر د مستثنیٰ منه مفرغ سره او لام د حرف مَنْ سره مقدّر دے یعنی الشفاعة لاحد الالمن شهد او روستو دواړه صفتونه د مشفوع له دی۔ وَهُمْ يَعْلَمُونَ کښ

وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُولُنَّ

او که چرے تپوس اوکړے ته ددوی نه چه چا پیدا کړیدی (رد اشفعاء) خامخا دوی به اوائي

اللَّهُ فَأَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٨٧﴾ وَقِيلِهِ يَا رَبِّ إِنَّ

الله تعالیٰ نو څه رنګ اوړیدلے کیږی دوی د توحید نه او قسم دے په وینا دده چه اے ربه یقیناً

هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾ فَاصْفَحْ

دا دلے قوم دے چه ایمان نه راوړی - نو مخ داړوه

هم دوه احتمالونه دی اوّل داچه د شهادت بالحق د ژبے سره عقیده قلبیه هم شرط ده یعنی یعلمون الحق. دوئیم احتمال دادے چه علم لری په حال د مشفوع له چه دے مؤمن دے او که نه دے یعنی شفیع مؤحد به هله شفاعت کوی بل چا لره چه ورته معلومه شی چه دغه انسان مؤحد دے او دا علم په دنیا کښ نه حاصلیږی او اخرت کښ هم هله حاصلیږی چه د مؤمنانو نخے مقرر شی (سپین اندامونه او مخونه) او یا الله تعالیٰ ورته خبر ورکړی چه دا مؤحد دے د دهٔ دپاره شفاعت اوکړه - دا ټول لس احتمالات دی او مفسرینو نقل کړیدی لیکن په ټولو کښ راجح معنیٰ داده چه اختیار نه لری هیڅ معبود من دون الله د شفاعت کولو مګر هغه معبود (من دون الله) چه شهادت د توحید ئے په دنیا کښ کړے دے سرهٔ د علم د توحید نه یا سرهٔ د علم نه په حال د مؤحد یا ندے. وَهُمْ يَعْلَمُونَ قرطبی د دے په تفسیر کښ لیکلی دی چه شهادت بالحق فائده نه ورکوی مګر سرهٔ د علم نه او تقلید فائده نه ورکوی کله چه سړے علم نه لری په دلیل د خبرے باندے.

۸۷:. دا دلیل عقلی دے او په دے کښ هم رد دے په شفاعة قهریه باندے یعنی ستاسو شفعاء خو ستاسو په اقرار سره هم مخلوق دی نو مخلوق څه رنګه شفیع قهری کیږئے؟ مَنْ خَلَقَهُمْ ضمیر د هم معبودانو ته راجع دے یا عابدانو او معبودانو دواړو ته راجع دے.

۸۸:. په دے ایت کښ زجر دے. وَقِيلِهِ واو قسمیه دے او قیل په معنیٰ د قول سره دے او ضمیر راجع دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او يَا رَبِّ دا مقول د قول ده تر اخره پورے او جواب قسم پټ دے (ان هؤلاء لمعاندون) حاصل دا دے چه دا نبی وخت په وخت په دربار د الله تعالیٰ کښ د دے منکرینو نه شکایت پیش کوی په دا سے الفاظو سره چه یا رب ان هؤلاء الخ نو په دے قول (پاتے په بل مخ)

۷ ع ۱۳

عَنْهُمْ وَقُلْ سَلٰمٌ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۹﴾

دَ دوی نه او اوایه سلام دَ جُدائیٔ نو زر ده چه دوی به پوهه شی -

بانِدے قسم دے په طور دَ شهادت سره چه یقیناً دوی عنادیان دی یا دَ قیله دَ پاره مقوله صرف یارَبِّ دے یعنی دا پیغمبر چه وائی یارب (ان قومی اتخذوا هذا القران مهجورًا فرقان ۳۰) او جواب قسم ان هؤلاء قوم لا یؤمنون دے - او ایت کښ دریمه توجیه داده چه وقیله عطف دے په علم الساعة بانِدے یعنی وَعِنْدَهٗ عِلْمُ قِیْلِهٖ او مقوله دَ قوله یارَبِّ اه دے لیکن دَ معطوف علیه او دَ معطوف په مینځ کښ ډیره فاصله ده نو دا توجیه مناسب نه ده۔

۸۹ :. دا تفریع ده په عناد دَ منکرینو بانِدے او حکم دَ معاندینو دے چه هغه براءت او قطع تعلّق دے۔ فَاصْفَحْ مراد دَ صفح نه اعراض کول دی دَ دوی دَ محبت او دوستانے نه یا دَ دوی دَ سب وشتم نه او دا معنیٰ منسوخ نه ده بلکه دا اخلاق دَ مبلغ په وخت دَ دعوت کښ ضروری دی. وَقُلْ سَلٰمٌ دے نه سلام تودیع او متارکه ویلے کیږی سلام تحیه نه دے ځکه چه مشرکانو بانِدے سلام تحیه جائز نه دے. نو معنیٰ داده یعنی زما او ستاسو جدائی ده په سلامتیا سره چه زه تاسو ته کنځل نه کوم او بداخلاقی نه کوم او هم داسے سلام دَ ابراهیم علیه السّلام وُخپل پلار ته لکه سورة مریم ۴۷ ـ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ کښ عذاب ته اشاره ده که دنیوی عذاب وی او که اخروی عذاب وی۔

تفسیر دَ سورة زخرف ختم شو په فضل وکرم دَ الله تعالیٰ سره

---

| رکوعاتها ۳ | ایاتها ۵۹ | بسم الله الرحمن الرحیم | سورة الدخان ۴۴ مکیة ۶۴ |
|---|---|---|---|

حٰمٓ ① وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ② اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ

الله تعالیٰ پوهه دے د دے مراد باندے. قسم دے په کتاب ښکاره بیان کوونکی باندے (چه گواه دے په دے خبره) چه نازل کړے مونږ دا قران

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سورة الدخان

**ربط** د دے سورت د ماقبل سورت سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه داده چه په هغه سورت کښ رد وؤ په دلیلونو د مشرکانو باندے نو په دے سورت کښ ورپه د عذاب دنیوی ذکر کوی. دویمه وجه داده چه په هغه سورت کښ ذکر د قباحت د معرضینو د قران وؤ نو په دے سورت کښ عظمت د قران او مقصد د قران ذکر کوی. دریمه وجه داده په هغه سورت کښ تکبر د فرعون په موسیٰ علیه السلام باندے ذکر کړے وؤ اوس په دے سورت کښ کرامت د موسیٰ علیه السلام او د بنی اسرائیلو ذکر کوی. څلورمه وجه داده چه په هغه سورت کښ اثبات د توحید وؤ په عقلی دلیلونو سره نو په دے سورت کښ اثبات د توحید دے په ذکر د اسماء او صفاتو د الله تعالیٰ سره او هغه ئے نهه ذکر کړے دی.

**دعوی د سورت داده**، تخویف دنیوی منکرینو او معرضینو د قران ته دے په سا او س۵۹ کښ او ذکر د عظمت د قران او ذکر د عظمت د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو د هغه سره.

**خلاصه د سورت**. په دے سورت کښ دوه بابونه دی اول باب تر ستا پورے دے په دے کښ صداقت د قران او ذکر د مقصد د قران چه توحید د اسماؤ او صفاتو دے. بیا تخویف دنیوی دے په ذکر د دخان او د بطشة الکبریٰ سره بیا واقعه د فرعون نمونه ده د پاره د دعوے د سورت او ذکر د نعمتونو په بنی اسرائیلو باندے. بیا زجر او تخویف په سبب د انکار د بعث بعد الموت سره.

## تفسیر

سا سـ۲:- په دے کښ هغه تفسیر دے چه سورة زخرف په اول کښ ذکر شوید دے. المُبِیْنِ په دے سورت کښ ایات په ذکر (پاتے په یل مخ)

فِیْ لَیْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِیْنَ ③

په شپه برکتونو والا کښې یقینًا مونږ ویره ورکوونکی یو۔

دَ عذابونو سره دے او سورة زخرف کښې ابانت په دلیلونو او په جواب دَ شبهاتو سره وو. او دا قسم دے په طریقه دَ شهادت سره په اثبات دَ روستو ذکر شوی مقصد باندے.

س۳: دا جواب قسم دے یعنی ابانت او وضاحت دَ قرآن شاهد دے چه دا منزّل من الله دے او وخت دَ نزول ئې هم مبارک دے او دَ انذار دَ پاره پوره کتاب دے.

لَیْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ مراد دَ دے نه لیلة القدر ده په دلیل دَ سورة قدر سره او لیلة القدر په رمضان کښې ده په دلیل دَ سورة بقره ۱۸۵ سره۔ او دا رنګ سورة قدر چه دَ لیلة القدر په باره کښې من کل امر او سلام ذکر کړے نو دلته ئې فیها یفرق کل امر حکیم او رحمة ذکر کړے دے. بل دا چه په باره دَ فضیلت دَ لیلة القدر کښې ډیر صحیح احادیث نقل کړے شویدی او دا فضیلت دَ هغې شپے په سبب دَ نزول دَ قرآن کریم سره دے۔ بعض مفسرینو مراد دَ لیلة مبارکه نه پنځلسمه شپه دَ شعبان اغستے ده او دَ هغې دَ فضیلت په باره کښې څه احادیث ئې نقل کړے دی لیکن هغه قول صحیح نه دے اهل تحقیق مفسرینو دَ هغې رد کړے دے۔ قرطبی دَ ابن عربی نه نقل کړے دی چه دا قول باطل دے او څوک چه ابتداء دَ نزول دَ قرآن دَ لیلة القدر نه علاوه په بله شپه کښې وائي فَقَدْ اَعْظَمَ الْفِرْیَةَ عَلَى اللّٰهِ نو یقینًا په الله تعالیٰ باندے لویه افتراء کړے ده دا رنګ ابن کثیر وئیلے دی چه چا وئیلے دی چه دا شپه لیلة النصف دَ شعبان ده لکه چه دَ عکرمه نه نقل شویدی فَقَدْ اَبْعَدَ النُّجْعَةَ (یقینًا دَ فائدے نه لرے لاړو)۔ او کوم احادیث چه په باره دَ فضیلت دَ دغه شپے کښې ذکر کړے شویدی نو په هغې کښې حدیث صحیح مرفوع متصل نیشته. قرطبی وئیلے دی چه نیشته په باره دَ لیلة النصف من شعبان کښې حدیث چه اعتبار او کړے شی په هغه باندے نه په باره دَ فضیلت دَ هغې کښې او نه نسخ دَ نیتو کښې نو هغې ته التفات مکوئے. ابن کثیر وئیلے دی چه حدیث عکرمه حدیث مرسل دے دَ نورو نصوصو مقابله نشی کولے۔ ملا علی قاری په مرقات کښې وئیلے دی چه دَیْلمی وغیره په لیلة نصف من شعبان کښې ۱۰۰ رکعتونه مونځ ذکر کړے دے او هغې ته صلوٰة الفیه وائي نو هغه حدیث موضوع دے او دا مونځ اول په بیت المقدس کښې په ۴۴۸ سنه کښې پیدا کړے شوے دے دا رنګ په دے شپه کښې یا دَ دے نه په مخکښې شپو کښې خلق اوُروته بلوی او دَ هغې سره لوبے کوی دا برامکه قوم په اتمه صدے کښې دا رسم ایجاد کړے وو او دا رسم دَ مجوسیانو (او دَ هندوانو) دے. او حدیث

فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ ﴿٤﴾ أَمْرًا

په دے شپه کښې فیصله کیږی (په کتاب د ملائکو کښې) د هر کار چه حکمت والا وی په حکم کولو سره

مِّنْ عِندِنَا ۚ إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ﴿٥﴾ رَحْمَةً

زمونږ د طرف نه یقینًا مونږ لیږونکی د رسول یو - د وجے د رحمت

د ترمذی په فضیلت د دے شپے کښې راغلے دے او مشکوٰة کښې هم ذکر کړے دے نو د هغې په سند کښې دوه انقطاع دی او امام بخاری هغه ته ضعیف ویلے دی او حدیث د معاذ بن جبلؓ ابن ماجه وغیره راوړے دے د هغې په سند کښې ابن لهیعه ضعیف راوی دے او حدیث د علیؓ چه ابن ماجه راوړے دے د هغې په سند کښې ابوبکر بن عبدالله العامری دے - محدثینو ویلے دی چه دا به احادیث وضع کول او متروک دے او بل حدیث د عائشهؓ بیهقی راوړے هغه هم مرسل حدیث دے - إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ داعلت دے د پاره د انا انزلناه یعنی مقصد د انزال قرآن انذار ورکول دی.

ﻫ :- داعلت دے د فی لیلة د پاره یعنی انزال د قرآن ئے په دے شپه پورے د دے وجے نه خاص کړے دے چه په دے شپه کښې د محکمو کارونو فیصلے کیږی نو انزال د قرآن هم محکم کار وؤ نو په دے شپه کښې شروع شو يُفْرَقُ تقدیر د ټولو اشیاؤ د آسمانونو د پیدائش نه پنځوس زره کاله مخکښې شوے دے او دا په صحیح حدیث سره ثابت ده لیکن د هغې نه د یو کال د پاره مقرر شوے څیزونه او کارونه جدا کړی او ملائکو ته ئے اوسپاری او دا جدا کول په لیلة القدر کښې وی د دے وجے نه یفرق ئے اُویل چه دلالت کوی په جدا کولو باندے.

كُلَّ أَمْرٍ حَكِيمٍ د الله تعالیٰ په هر کار کښې حکمت دے د دے وجے نه قید د حکیم احترازی نه دے - او دا امور یعنی پیدا کول او مړه کول، د رزق مقدار او مدد او شکست، کنه او تاوان، عبادتونه کول او ګناهونه کول حج کول سفر کول وغیره دے ټولو ته لفظ د کل امر حکیم شامل دے.

ﻫ :- أَمْرًا تعلق لری د یفرق سره یعنی دغه فیصله د وجے د امر د الله تعالیٰ نه ده یا مفعول دے د فعل محذوف د پاره (انزلنا امرًا) - إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ علت دے د پټ د پاره یعنی د انزلناه سره اِرسال النبیؐ مراد وؤ نو دا علت د دے دے چه انزال د قرآن ئے محمد صلی الله علیه وسلم ته د دے وجے نه اوکړو چه مونږ دهٔ لره رسول جوړ وؤ کے یو - بله توجیه داده چه درے جواب قسم دی اول انا انزلنا. دویم انا کنا منذرین دریم انا کنا مرسلین.

مِّنْ رَّبِّكَ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝۶

ستا د رب د طرف نه يقينًا هغه هرڅه اوري په هرڅه باندے پوهه دے

رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۘ

رب د اسمانونو او د زمکے او د مینځ د دے دواړو دے

اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ ۝۷ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ

که چرے تاسو يقين کوئے . نيشته حق دار د بندگئ سوا د هغه نه ژوندى کوى

وَيُمِيْتُ ۭ رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآىِٕكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ۝۸

او مړه کول کوى رب ستاسو او رب د مشرانو ستاسو مخکنو دے .

ســ :- دا مفعول له متعلق دے د انا کنا مرسلين سره يا د د رے واړو جوابونو سره او ترغيب دے چه نازلول د قرآن او انذار ورکول او رسول رالیږل دا ټول د رب د طرف نه خاص رحمت دے . او هرکله چه طلبګار د رحمت کله طلب کوی په ژبه سره نو د هغه د پاره ئے السميع ذکر کړو او کله طلب کوی په زړه سره نو د هغه د پاره ئے العليم اوويل او دا رنګ دا جمله خلاصه د قرآن او د انذار او د رسالت ده چه چه دا توحيد دے . د دے وجه نه په روستو دوه ايا تونو کښ د تاکيد د دے مسئلے د پاره نور صفتونه په طريقه د استدلال سره ذکر کوی او دا اسماء وصفات ئے تهه ذکر کړے دی .

ک ســ :- مخکښ ئے درے صفتونه ذکر کړے دی او په دے دواړو اياتونو کښ څلور نور ذکر کوی . او مقصود په دے کښ اثبات د توحيد دے او اظهار د عظمت د الله تعالىٰ د پاره د اثبات د عظمت د قرآن د اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ په دے شرط کښ خطاب دے هغه خلقو لره چه يقين کوی چه الله تعالىٰ خالق دے ، او رب دے او جزاء د شرط پټه ده معنىٰ دا ده که چرے تاسو يقين لرئے چه الله تعالىٰ خالق او رب دے نو يقين او لرئے چه دا قرآن او رسول حق دے وجه د ملازمے دا ده چه دا قرآن او رسول هم د اثبات د خالقيت او د ربوبيت او الوهيت د الله تعالىٰ د پاره راليږلے شوے دی . يا دا خطاب عام دے نو معنىٰ دا ده که اراده لرئے د يقين کولو په توحيد د الله تعالىٰ باندے نو ايمان راوړئے په قرآن او په رسول باندے .

بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ يَّلْعَبُوْنَ ﴿۹﴾ فَارْتَقِبْ

بلکه دوی په شک کښې دی په لوبو کښې مشغوله دی. نو انتظار اوکړه

يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۰﴾

د هغه ورځې چه ښکاره به کړی اسمان لوګے ښکاره

يَّغْشَى النَّاسَ ۭ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۱﴾

پټوی به خلقو لره دا عذاب درد ناک دے.

رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲﴾

(روائی به دوی) اے ربه زمونږ لرے کړه زمونږ نه عذاب یقیناً مونږ ایمان راوړو.

اَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ

څه رنګ کیدے شي دوی د پاره نصیحت اغستل او حال دا چه راغلے دے دوی ته رسول

ف۹: دا زجر دے یعنی د دوی یقین په خالقیت او ربوبیت د الله تعالی باندے حقیقی یقین نه دے بلکه په طریقه د تقلید د مشرانو دے نو معلومه شوه چه دوی په شک کښې دی او د دے سره چه دوی په جوم افعال شرکیه او کفریه کښې مشغول دی نو هغه ټول لعب دی چه د هغے هیڅ فائده نیشته او د عمر ضائع کیدل پکښې شته.

ف۱۰ نه ف۱۵ پورے. دا تخویف دنیوی دے په واقعه د دُخان سره. او په دیکښې دوه قولونه د مفسرینو دی اول قول امام بخاری په سند سره د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل کړے دے مضمون ئې دا دے "چه قریشو هر کله د نبی صلی الله علیه وسلم نه سخت مخالفت اوکړو نو هغه ورته دُعاء شر (خیرے) اوکړه چه یا الله په دوی باندے کالونه د قحط راولے پشان د کالونو د قحط په زمانه د یوسف علیه السلام کښې نو په دوی باندے قحط شورو شو تر دے پورے چه دوی به هډوکی خوړل او یو تن به اسمان ته کتل نو داسے به ورته ښکاره کیدل لکه چه دُخان وی نو دا ایاتو نه نازل شول بیا هغوی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل چه یا رسول الله د قبیلے مضر (چه ستا خپلوان وی) د پاره دُعا اوغواړه ځکه چه هغوی هلاک شول نو هغه دُعا د باران اوغوښتله نو باران اوشو او نازل شو چه انکم عائدون". د دے حدیث په بنا مراد د دُخان نه قحط دے (پاتے په بل مخ)

مُّبِيْنٌ ﴿١٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوْا مُعَلَّمٌ

ښکاره پیغمبرے والا بیا دوی مخ گرځولے دے د هغه نه او دوی وائي چه دهٔ ته چاخودنه کړیده

مَّجْنُوْنٌ ﴿١٤﴾ اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا

لیونے دے - یقینًا موږ به لرے کړو عذاب لږه موده

اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ ﴿١٥﴾ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ

یقینًا تاسو بیا راګرزېدُونکي ئی (کفر ته) - نو په هغه ورځ چه نیول اوکړو موږ نیول

وقف لازم

وقف لازم

چه په هغه وخت د دخان په مثل بانډے د زمکے نه بړاس او غبار اوچت شویوؤ او ښکاره کېدلو او د الناس نه مراد صرف مکے والا دی. دویم قول د علی او ابن عباس رضی الله عنهم نه نقل دے او د ابو سعید خدری رضی الله عنه نه مرفوعًا نقل دے "چه دُخان به را اوچت شی په ټولو خلقو بانډے نو په مؤمن بانډے به پشان د زکام وی او د کافر ټول بدن به پړسیږی" او په دے روایت کښ د یوم القیامة نه مراد قریب د ورځ د قیامت دهٔ ځکه په حدیث صحیح د مسلم کښ راغلی دی چه د قیامت نه روانده لس لوئے علامات دی اول ئے په هغے کښ دُخان شمارلے دے او بیا په دے قول دخان به حقیقتًا وی او خوورځ پس به لرے شی او بل علامت به شوروشی. (زهٔ وایم) چه الفاظ د قرآن د دواړو سره موافقت لری لیکن اول قول زیات مناسب دے یعنی دا دُخان په مکه والو بانډے واقع شویدے او بل دُخان به په علاماتِ قیامت کښ په ټولو خلقو بانډے راځي، تَأْتِي السَّمَآءُ اسمان ته نسبت په دے وجه سره دے چه د زمکے نه به هیڅ سبب نه معلومیږی یا مراد د اسمان نه جَو (فضا) د اسمان ده. وَقَالُوْا مُعَلَّمٌ یعنی دوی وبل چه یو بشر دهٔ ته تعلیم ورکوی لکه سورة انعام ۱۰۵ او سورة نحل ۱۰۳ کښ دی یا شیطان دهٔ ته تعلیم ورکوی او دے کاهن دے. د اَنّٰی لَهُمُ الذِّكْرٰى نه تردے پورے حاصل دا دے چه هرکله دوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم توهین او تکذیب اوکړو نو دا سبب دے د محروم کېدلو د ذکر نه او سبب د عذاب دے. اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا بناء په اول قول بانډے وعده د لرکولو د عذاب ده په سبب د دُعا د نبی صلی الله علیه وسلم او په دویم قول بانډے د علاماتِ قیامت په میخ کښ چه لږ لږ وخت فاصله راځي هغه مراد ده. اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ واپس کېدونکی ئے کفر ته د وجے د ضد او عناد نه په طبیعتو نو کښ نو معلومه شوه چه وعده د ایمان راوړلو ستاسو (انا مؤمنون) دروغ ده.

الْكُبْرٰى ۚ إِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ ⑯ وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ

غټ یقینًا موږ بدله اخستونکی یو . او یقینًا ازمائیښت کړے دے موږ مخکښ د دوی نه

قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَآءَهُمْ رَسُوْلٌ كَرِيْمٌ ⑰

په قوم د فرعون باندے او راغلے وو هغوی ته رسول عزت والا

أَنْ أَدُّوْٓا إِلَيَّ عِبَادَ اللّٰهِ ۖ إِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ

(ویلے وو) چه راکړئ ماته بندګان د الله تعالیٰ یقینًا زه تاسو لره رسول

أَمِيْنٌ ⑱ وَّأَنْ لَّا تَعْلُوْا عَلَى اللّٰهِ ۚ إِنِّيْٓ اٰتِيْكُمْ

امانت داریم او لوئی مه کوئ په الله تعالیٰ باندے یقینًا زه راوړونکے یم تاسو ته

سلا ۱۶ :- دا هم تخویف دنیوی دے او مراد دَ دے نه هلاکول دَ مشرکانو وو په ورځ دَ بدر کښ . یا دا تخویف اخروی دے او مراد دَ بطشة نه په ورځ دَ قیامت کښ رانیول دَ مشرکانو دی په سخت عذاب کښ . إِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ مراد دَ انتقام نه سزا ورکول دی او انتقام په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه حد او اندازئے ذکر نه وی۔

سلا ۱۷ :- دا دَ تخویف دنیوی مثال دے په واقعه دَ اهلاک فرعون سره - اشاره ده لکه چه فرعونیانو دَ عذابونو په وخت کښ دَ موسیٰ علیه السّلام سره وعدے دَ ایمان کړے وے په دے شرط سره چه زمونږ نه عذاب لرے کړه لکه سورة زخرف کښ ذکر شول لیکن بیا ئے هغه وعدے ماتے کړے نو الله تعالیٰ په هغوی باندے لوئے عذاب دَ غرق راوستلو نو د غسے حال دَ مکے دَ مشرکانو دے وَلَقَدْ فَتَنَّا مراد دَ فتنے نه امتحان کول دی په رالیږلو دَ رسول او په امر بالطاعة سره یا مراد دَ فتنے نه عذاب دے . كَرِيْمٌ دا په مقابله دَ قولِ فرعون کښ دے (مهین) چه په سورة زخرف کښ تیر شو . یعنی الله تعالیٰ کرامت او عزت او شرافت ورکړے وو په مختلفو طریقو سره په ښائسته اخلاقو او په اشراف نسب او په نبوت او رسالت سره۔

سلا ۱۸ :- دَ دے دوه توجیه دی اوله توجیه دا ده دَ أَدُّوْٓا مفعول حذف دے دَ طاعة الله او عباد الله منادیٰ ده او حرف ندا پټ دے او مراد دَ اداء نه اطاعت او تابعداری کول دی دویمه دا چه عباد الله مفعول دے دَ أَدُّوْٓا یعنی آزاد کړئ ما سره بنی اسرائیلو لره او دا دواړه مقصدونه دَ هغهٔ په کلام کښ په سورة اعراف سلا ۱۰۴ سلا ۱۰۵ کښ موجود دی . أَمِيْنٌ امانت دار دَ وحی دَ الله تعالیٰ دا صفت دَ (پاتے په یل مخ)

بِسُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ ﴿١٩﴾ وَاِنِّیْ عُذْتُ بِرَبِّیْ وَرَبِّکُمْ

دلیل ښکاره . او یقیناً پناهی غواړم په رب خپل او په رب ستاسو سره

اَنْ تَرْجُمُوْنِ ﴿٢٠﴾ وَاِنْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا لِیْ

د دے نه چه تاسو ما سنګسار کړئ . او که ، خبره نه منئ زما

فَاعْتَزِلُوْنِ ﴿٢١﴾ فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ

نو په د ده شئ زمانه . نو دُعا ئے او غوختله د رب خپل نه چه یقیناً دا خلق قوم دے

خپل ځان انبیاء علیهم السّلام د خلقو د ترغیب د پاره کولے شی لکه سورة اعراف ۶۸ کښ تیر شوید ی لیکن د کریم صفت ذکر کول پخپله د ځان د پاره مناسب نه دی نو الله تعالیٰ هغه صفت ورله د خپل طرف نه ذکر کړو.

۱۹:۔ مخکښ امر بالمعروف ذکر شو او دا نهی عن المنکر ده او علو شامل دے تکبر کول د طاعت نه او افتراء او بغاوت کول او هر کله چه د بادشاهانو په اخلاقو کښ لوئی او تکبر وی د دے وجے هغوی نه په دعوت ورکولو کښ نهی د علو نه ذکر کیږی لکه سورة نمل ۳۱ کښ او په دے دواړه ایاتونو کښ جامع دعوت ذکر دے توحید رسالت رد د شرک او کفر، معجزات پیش کول، د موحدینو حق ادا کول.

۲۰:۔ هر کله چه فرعون اراده د هغه د قتل کړے وه لکه سورة غافر ۲۶ کښ ذکر دی نو موسیٰ علیه السّلام د هغے نه د بچ کیدلو د پاره تعوذ ذکر کړو لکه سورة غافر ۲۷ کښ دی او فعل ماضی (عذت) په معنیٰ د مضارع دے. اَنْ تَرْجُمُوْنِ رجم په کاڼرو سره ویشتل دی یا په کنځلو او طعنو سره بد نامول دی.

۲۱:۔ د دے نه مخکښ عبارت کښ تقدیر دے یعنی فان امنتم لی افلحتم وان لم تؤمنوا لی رکه تاسو ایمان راوړو نو کامیاب به شئ او که ایمان نه راوړے۔ لِیْ ایمان نه مراد معنیٰ لغوی ده نو په صله کښ لام راغیٔ یا ایمان شرعی دے او لام اجلیه دے د وج د بیان او د دلیل زمانه فَاعْتَزِلُوْنِ مراد دا دے چه په د ده شئ زمانه یعنی ماته د تکلیف را کولو نه یا مراد دا دے جدا شئ زمانه یعنی زما قوم بنی اسرائیل ماته راجدا کړئ۔

مُّجْرِمُوْنَ ﴿۲۲﴾ فَاَسْرِ بِعِبَادِیْ لَیْلًا اِنَّکُمْ

مجرمان - نو ته بوځه بندګان زما د شپې یقینًا تاسو پسې به

مُّتَّبَعُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا ؕ اِنَّهُمْ

درتلل کیدیشي او پریږده دریاب اولاړ یقینًا دوی

جُنْدٌ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۲۴﴾ كَمْ تَرَكُوْا مِنْ جَنّٰتٍ

لښکر دے غرق کړے شوے - ډیر پریخودل دوی د باغونو نه

۲۲ :- دا تفریع ده په پټ عبارت باندے یعنی فکفروا وکذبوا (دوی کفر او تکذیب اوکړو) نو هغه دُعاءِ شر اوکړه او تفصیل د هغے دُعا په سورة یونس ۸۸ کښ تیر شویدے او سبب د دے دُعا دادے اَنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُوْنَ جرم ښکاره ګناهونه او فسق وفجور او ظلم ته ویلے کیږی او دا تعدی ده په کفر کښ او دا تعدی په اصل کښ سبب د عذاب دنیوی دے د دے وجے نه کافرانو ته ئے مجرمان اُویل:

۲۳ :- دا استجابت د دُعا دے نو عبارت کښ تقدیر دے یعنی قلنا له بعد الاجابة (اُوویل مونږ هغه ته روستو د قبولولو د دُعا د هغهٔ نه) او د نجات د پاره سیر فی اللیل بهتره ذریعه ده یو د دے وجے نه چه فاسقان فاجران په هغه وخت کښ غافل او اوده وی دویم په مزل د شپے کښ خیر او برکت وی دریم ذکر مئے د لاړے نه ـ پټ کیدل دی. نو دارنګ سیر فی اللیل یعنی د شپے تهجد کول هم سبب د نجات دے د عذاب د الله تعالیٰ نه اګرچه دلته اوله معنیٰ مراد ده ـ اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ په دے کښ هغوی ته تنبیه ده چه په مزل کولو او په ذکر د الله تعالیٰ کښ سُستی اونکړئ ځکه چه دشمنان درپسے در روان دی.

۲۴ :. په دے کښ اشاره ده ذریعے د نجات د بنی اسرائیلو او طریقه د عذاب د فرعونیانو ته ـ او اختصار دے په عبارت کښ یعنی امرئے ورته اوکړو چه دریاب په عصا سره اُوهه نو په هغے کښ دولس لارے کولاؤ کولاؤ جوړے شوے او اوبه په خپل ځایونو باندے اودریدلے ـ هرکله چه بنی اسرائیل پورے لاړل نو موسیٰ علیه السلام اراده اوکړه دا دریاب ډ اوس په خپله روان شی د دے د پاره چه فرعونیان په مونږ پسے رانشی نو الله تعالیٰ حکم اوکړو واترك البحر ـ رَهْوًا په ځائے ولاړ یا فراخ لارے او علت د هغے ئے ذکر کړو په دے قول سره انهم جندٌ مغرقون.

وَّعُیُوْنٍ ﴿۲۵﴾ وَّزُرُوْعٍ وَّمَقَامٍ کَرِیْمٍ ﴿۲۶﴾

او د چینو نه - او فصلونه او ځایونه عزت والا

وَّنَعْمَةٍ کَانُوْا فِیْهَا فٰکِهِیْنَ ﴿۲۷﴾ کَذٰلِکَ قف

او د خوشحالئ سامان چه دوی په هغې کښې مزے کوونکے وو. دغه شان او شو

وَاَوْرَثْنٰهَا قَوْمًا اٰخَرِیْنَ ﴿۲۸﴾ فَمَا بَکَتْ عَلَیْهِمُ

او پاتے کړو مونږ دغه (باغونه وغیره) قوم بل ته - نو ژړا او نکړه په دوی پاندے

السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ وَمَا کَانُوْا مُنْظَرِیْنَ ﴿۲۹﴾ ع

اسمان او زمکے او نه وو دوی مهلت ورکړے شوی -

س ۲۵ س ۲۶ س ۲۷ س ۲۸ روستو د غرق کیدلو نه د هغوی د مالونو حال ذکر کوی او په دے کښې اشاره ده چه هغوی ټول غرق شول او دا رنګ اشاره ده چه غرق د دوی په معنیٰ حقیقی سره وؤ په معنیٰ مجازی سره (تاوان) نه دے وَنَعْمَةٍ دا لفظ شامل دے ټول د دنیا هغه مالونو ته چه سبب وی د خوشحالئ او د مستئ او د تکبر. فٰکِهِیْنَ خوشحالی او تکبر او مزے اغستونکی وو.- او دا رنګ سورة شعراء س ۵۷ س ۵۸ کښې تیر شویدی.

**فائده:**- سورة شعراء کښې ئے کنوز ذکر کړے وؤ اشاره ده چه فرعونیانو په دغه خزانو سره د موسیٰ علیه السّلام مقابله کوله ساحرانو ته ئے ویلے وو چه تاسوله به ډیر اجرت درکړم او په دے سورت کښې دغه واقعه نه ده ذکر کړے دا رنګ په دے سورت کښې نَعْمَةٍ ذکر دے او په سورة شعراء کښې نه وؤ ذکر کړے د دے وجه ته چه په دے سورت کښې د فرعونیانو علو او اراده د قتل د موسیٰ علیه السّلام ذکر ده او دا دواړه کارونه د وجه د نعمة نه وؤ. کَذٰلِکَ په حالت د رفع کښې دے یعنی الامر کذالک. یا په حالت د نصب کښې دے افعل کذالک بمن عصانی، کوؤم دا سے کار د هغه چا سره چه نافرمانی کوی. قَوْمًا اٰخَرِیْنَ مراد هغه کمزوری خلق دی چه د لښکر د فرعون نه په مصر کښې روستو پاتے شوے وؤ. یا مراد تربینه بنی اسرائیل دی چه بنی اسرائیل په زمانه د داؤد علیه السلام کښې دغه ملک ته واپس راغلل او د هغې مالونو وارثان شول لکه سورة اعراف س ۱۳۷ کښې دیته اشاره ده.

س ۲۹ :- په دے کښې مقصد سپکولے د شان د فرعونیانو دے. ژړا د اسمان او زمکے په حقیقت باندے حمل ده لکه روایت دے د انس رضی الله عنه نه مرفوعًا "چه مؤمن د پاره په اسمان کښې دوه دروازے دی د یوے دروازے نه رزق نازلیږی

وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ مِنَ الْعَذَابِ

او یقیناً نجات ورکړو موږ بنی اسرائیلو ته دَ عذاب

الْمُهِينِ ﴿٣٠﴾ مِن فِرْعَوْنَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ عَالِيًا

ذلیلوونکی نه دَ فرعون نه یقیناً هغه لوئی کوله

مِّنَ الْمُسْرِفِينَ ﴿٣١﴾ وَلَقَدِ اخْتَرْنَٰهُمْ عَلَىٰ

دَ حد نه د زیاتی کوونکو نه وو. او یقیناً غوره کړے وو موږ دوی سره

عِلْمٍ عَلَى الْعَٰلَمِينَ ﴿٣٢﴾ وَءَاتَيْنَٰهُم مِّنَ الْءَايَٰتِ

دَ علم نه په ټولو عالمو باندے. او ورکړے دی موږ دوی ته دَ نعمتونو نه

او دَ بلے دروازے نه عمل ورخیژی نوکله چه دے مرشی نو دا دواړه دروازے دَ اسمان په دهٔ پسے ژاړی او بیا ئے دا ایت اولوستلو۔ او دارنګ دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه څوک په زمکه باندے رکوع او سجده او نور اعمال دَ خیر کوی نو روستو دَ مرګ دَ دهٔ نه هغه زمکه هم په دے مؤمن پسے ژاړی" نو مطلب دَ ایت دا دے چه دَ فرعونیانو هیڅ نیک عمل نه وو چه اسمان ته ختلے وَے او نه په زمکه باندے دَ هغوی نیک عمل وو نو روستو دَ مرګ دَ دوی نه اسمان او زمکے په دوی پسے ژړا اونکړه. یا مراد دَ دے نه اهلِ السّماء واهل الارض دی یعنی ملائکو دَ اسمان او مؤمنانو دَ زمکے په دوی پسے هیڅ ژړا اونکړه۔

۳۰ تا ۳۱:۔ روستو دَ عذاب دَ فرعونیانو نه چه ذکر دے په طریقه دَ تخویف دنیوی مشرکینو دَ پاره اوس انعامات په بنی اسرائیلو ذکر کوی په طریقه دَ بشارت سره دَ مؤحدینو دَ پاره۔ الْعَذَابِ الْمُهِينِ چه هغه سورة بقره ۴۹ کښ ذکر دی۔

مِن فِرْعَوْنَ دا بدل دے دَ من العذاب نه په دے کښ مبالغه ده چه وجود دَ فرعون نفس عذاب وو۔ یا حال دے دَ العذاب نه یعنی دا عذاب صادر او واقع وو دَ طرف دَ فرعون نه۔ عَالِيًا سرکش چه دَ چا قانون په ځان باندے نه منی دا سے په سورة قصص ۴ کښ هم دی۔

۳۲:۔ دا ذکر دَ دویم انعام دے په بنی اسرائیلو باندے دا فضیلت په ټولو خلقو باندے فضیلت جزئیه دے چه ډیر انبیاء ئے په بنی اسرائیلو کښ رالیږلے دی یا مراد ترے دَ هغه زمانے خلق دی او په دے امت باندے دَ هغوی فضیلت نیشته په دلیل دَ دے ایت سره کنتم خیر امةٍ اُخرجت للناس۔ (پاتے په بل مخ)

مَا فِيهِ بَلٰٓؤٌا مُّبِينٌ ﴿۳۳﴾ إِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَيَقُولُونَ ﴿۳۴﴾

هغه چه په هغې کښې ازمیښت ښکاره وُ . یقیناً دا خلق خامخا وائي

إِنْ هِيَ إِلَّا مَوْتَتُنَا الْأُولٰى وَمَا نَحْنُ

نه دے دا مګر مرګ زمونږ ړومبے دے او نه یُو مونږ

بِمُنشَرِينَ ﴿۳۵﴾ فَأْتُوا بِآبَآئِنَآ إِنْ كُنتُمْ

دوباره پورته کړے شوی . نو راولے تاسو پلاران زمونږ که چرے تاسو

عَلٰى عِلْمٍ یعنی الله تعالیٰ عالم دے چه دوی په دغه وخت حق دار د فضیلت وو یا سره د علم د الله تعالیٰ نه د دوی په نقصانا تو باندے۔

۳۳:۔ دا ذکر د بل انعام دے او مراد د آیات نه هغه معجزات او نا اشنا انعامات دی چه بعض د هغې نه ذکر شویدی په سورة بقره کښ۔ بلاء نه مراد امتحان دے یا په معنیٰ د نعمت سره لکه په سورة انفال ۱۷ کښ۔

۳۴ ۳۵ ۳۶ :۔ دا متعلق د ۹ سره دے یعنی څه رنګ چه دوی په شک کښ دی د توحید او رسالت نو دا رنګ دوی منکر دی د بعث بعد الموت نه او په دے کښ زجر دے د دوی په انکار من البعث باندے۔ إِنْ هِيَ إِلَّا مَوْتَتُنَا الْأُولٰى اقوال د انکار د دوی ډیر وو د دے وجه نه په لیقولون باندے وقف او شو لیکن غټ قول ئے دا دے۔ په دے جمله کښ اشکال دے په دوه وجهو سره اول دا چه ضمیر د هِيَ ژوند ته راجع دے او که مرګ ته راجع دے که ژوند ته راجع وی نو د موت استثناء تری نه صحیح کیږی، او که مرګ ته راجع وی نو په مرګ کښ خو کلام نیشته دویم دا چه اولیٰ ئے اُویل نو معلومه شوه چه دویم مرګ خو شته او دویم مرګ خو هله کیدے شی چه په مینځ کښ ژوند وی نو معلومه شوه چه دوی دویم ژوند منی نو بیا خو تناقض راځئ د دے روستو قول سره چه وما نحن بمنشرین؟ جواب دا دے چه ضمیر د هی حالت او صفت عاقبت ته راجع دے نو معنیٰ دا ده چه نه دے زمونږ حال او صفت یا عاقبت مګر ړومبے مرګ دے او بیا وروسته ژوند نیشته او لفظ د اولیٰ مستلزم نه دے چه دویم موت دے وی استوی په تمهید کښ ویلے دی چه اول په لغت کښ ابتداء د څیز او کار ته ویلے کیږی که وروسته دویم وی او که نه وی لکه ویلے کیږی چه فلانی اول حج او کړو او بیا مړ شو دا ذکر کړیدے نیشاپوری او آلوسی په تفسیرونو خپلو کښ۔ دویم جواب دا دے چه دوی

صٰدِقِيْنَ ﴿۳۶﴾ اَهُمْ خَيْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ ۙ وَّالَّذِيْنَ

رشتني يئ . آیا دوی غوره دي یا قوم دَ تبع او هغه کسان

مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ اَهْلَكْنٰهُمْ ۫ اِنَّهُمْ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ ﴿۳۷﴾

چه دَ دوی نه مخکښ وو هلاک کړل مونږ هغوی یقیناً هغوی وو مجرمان .

ته اُویلې شول چه تاسو به مړه کیږئ په داسې مرګ سره چه ورپسې ژوند وی لکه چه په تاسو تیر شویدے داسې مرګ چه په هغې پسې ژوندی شوی یئ لکه په سورة بقره ۲۸ کښ نو دوی په جواب کښ اُویل چه نه دے هغه مرګ چه په هغې پسې ژوند راځی مګر اولنی مرګ دے، بنا په دے توجیه ضمیر دَ مرګ ته راجع دے لیکن مقید په دے قید چه ورپسې ژوند وی یعنی مَا الْمَوْتَةُ الَّتِيْ تَتَعَقَّبُهَا الْحَيٰوةُ اِلَّا الْمَوْتَةُ الْاُوْلٰى. اول توجیه ته قصر افراد ویلے کیږی او دویم ته قصر قلب ویلے کیږی. فَاْتُوْا بِاٰبَآئِنَا دا حجت دَ منکرینو دے او دَ دے دوه توجیه دی یو دا چه زمونږ مړه شوی پلاران راژوندی کړے لکه سورة جاثیه ۲۵ کښ راځی دویمه توجیه دا ده چه دَ مشرانو ته قول او دلیل پیش کړئ په دوباره ژوند باندے مونږ دَ مشرانو قول په دلیل نه منو. ۳۷ دا رد دے دَ دوی په انکار باندے په طریقه دَ تخویف سره. او مثال دَ تخویف ئے شوروکړے دے دَ قوم تبّع ته اشاره ده چه آخری قوم چه هلاک شویدے هغه قوم تبّع وؤ. یا دَ دے وجے نه چه دوی مشرکین عرب ته ډیر نزدے وو. اَهُمْ خَيْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ خیریت په ډیروالی دَ مال او دَ قوم او دَ نورو نعمتونو او عزتونو دنیوی دے. یعنی هغوی دَ دے موجوده مشرکانو نه په دغه صفاتو کښ غوره وو لیکن په سبب دَ جرمونو سره هلاک کړے شوے دی نو دا موجوده به څنګه بچ شی؟ دَ تبّع په باره کښ دَ مفسرینو دوه قولونه دی اول دا چه ټول بادشاهان دَ یمن مراد دی هر یو ته به تُبَّع ویلے کیدلو لکه چه اسلامی بادشاه ته خلیفه ویلے کیږی او دویم قول دا دے چه دا په هغوی کښ یو خاص بادشاه وؤ چه هغه ته اسعد ابو کریب الحمیری ویلے کیدلو دَ قتاده نه نقل دے چه دهٔ به دَ اُور عبادت کاوؤ او دا رنګ قوم دَ دهٔ هم. لیکن دهٔ اسلام راوړلو او خپل قوم ئے اسلام ته راوبلل لیکن هغوی مخالفت اوکړو نو هغوی باندے عذاب راغے او دے بچ شو او دَ دهٔ دوه لونړه هم وے چه توحید ئے قبول کړے وؤ هغوی هم بچ شوے او یو روایت کښ دی چه دَ دهٔ وخت دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه اووه سوه کاله وړاندے وؤ. فراء په معالم التنزیل کښ دَ دهٔ په مدینه باندے دَ حملے اراده کول

( پاتے په بل مخ )

وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا

او نه دي پیدا کړي موږ اسمانو ته او زمکه او هغه چه په مینځ د دغو کښې دي

لٰعِبِيْنَ ﴿۳۸﴾ مَا خَلَقْنٰهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ

چه لوبې کوونکي یو . نه دي پیدا کړي موږ دا مګر د حق سره کولو د پاره لیکن

اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۹﴾ اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ

ډیر د دوی نه نه پو هیږي . یقینًا ورځ د فیصلې

مِيْقَاتُهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۴۰﴾ يَوْمَ لَا يُغْنِيْ مَوْلًى

مقرر وخت د دې ټولو دې . دا سې ورځ چه نه به شي دفع کولې یو دوست

او بیا د هغې نه روستو کیدل او اوس وخزرج ته د نبي اخر الزمان په باره کښې خط ورکول او هغوی ته وصیت کول چه زما سلام ورته او رسوئې دا ټوله واقعه ذکر کړې ده.

۳۸ – ۳۹:- دا هم رد دے په انکار د بعث بعد الموت باندے په طریقه د استدلال سره. یعني که چرے داسے وی چه خلق په یو بل ظلمونه کوی او د الله تعالیٰ سره شرک کوی او د هغه د نعمتونو ناشکري کوی او د دوی د سزا ورکولو د پاره څه مستقله ورځ نه وی دا رنګ څوک مصلحان وی او څوک مفسدان وی او د دوی د فرق د جزا او سزا یو ورځ او جنت او جهنم نه وی نو معلومه به شي چه د عالم خلقت بره او مینځ الله تعالیٰ بے فائدے پیدا کړے دے لیکن الله تعالیٰ د عبث او د لعب کولو نه پاک دے نو دویم ایت کښې د هغې نتیجه ذکر کړے ده چه دا عالم د حق د پاره پیدا شویدے بِالْحَقِّ حال دے د فاعل نه یعني محقين في خلقهما یا با په معنیٰ د لام ده یعني لاظهار الحق او لاقامة الحق او حق نه مراد توحید دے یا د حق نه مراد حکمت دے چه جزا او سزا ورکول دی. په دے دویم ایت کښې ضمیر تثنیه راوړو او ما بينهما ئې تابع کړو د دواړو طرفینو د اختصار د کلام د پاره. په نتیجه کښې او په دلیل کښې خو تفصیل پکار وی نو د دے وجه نه په اول کښې ئې ما بينهما مستقل ذکر کړے وو.

۴۰ :- د دے ایت نه تر اخره د سورت پورے دویم باب دے په دے باب کښې تخویف اخروی تفصیلي مشتمل دے په دیارلس امورو باندے او بیا بشارت اخرویه تفصیله هغه هم مشتمل دے په دیارلس امورو باندے اختتام د سورت دے په

عَنْ مَّوْلًى شَيْـًٔا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿٤١﴾ اِلَّا

دَ بل دوست نه هیڅ مصیبت او نه به دوی سره مدد کیدیشی مگر

مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿٤٢﴾

هغه څوک چه رحم کړے وی په هغه باندے الله تعالیٰ یقیناً الله تعالیٰ زور اور رحم والا دے۔

اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ ﴿٤٣﴾ طَعَامُ الْاَثِيْمِ ﴿٤٤﴾

یقیناً ونه دَ زقوم خوراک دَ گناهګار دے۔

كَالْمُهْلِ ۚ يَغْلِيْ فِي الْبُطُوْنِ ﴿٤٥﴾ كَغَلْيِ

پشان دَ ویلے کړے شوے تانبے خوټکیږی به په خیټو کښ پشان دَ خوټکیدو

الْحَمِيْمِ ﴿٤٦﴾ خُذُوْهُ فَاعْتِلُوْهُ اِلٰى سَوَآءِ الْجَحِيْمِ ﴿٤٧﴾

دَ یشیدلو اوبو ۔ اونیسئ دے نو راکاږئ دے مینځ دَ دوزخ ته۔

ترغیب الے القرآن او تخویف دنیوی باندے۔ په دے (سے۴۰) کښ دَ قیامت نوم یوم الفصل ذکر کړے دے لکه په سورة مرسلات سے۳۸ کښ او نبا سے۱۷ کښ چه ذکر دے یعنی جدائی به راولی په مینځ دَ مؤمن او کافر کښ اشاره ده چه په دنیائی عذاب کښ کله مؤمنان او کافران شریک وی لیکن دَ قیامت په ورځ کښ به بالکل جدا جدا وی۔

سے۴۱ سے۴۲ په اول ایت کښ دَ یوم الفصل هیبت ئے ذکر کړے دے په دوه طریقو سره چه دوست به دَ دوست پکار نه راځی او دَ دوی سره به دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه مدد نشی کیدے دویم ایت کښ استثناء ده۔ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ مراد دے نه مؤمنان دی دوی دَ یو بل دَ پاره شفاعت کولے شی په اذن دَ الله تعالیٰ او الله تعالیٰ به یخیله هم بغیر دَ شفاعت دَ شافعینو نه دَ بعضو سره امداد کوی۔

سے۴۳ سے۴۴ سے۴۵ سے۴۶ په دے ایاتونو کښ ذکر دَ یو قسم عذاب دے په جهنم کښ چه هغه دَ خوراک په صورت کښ دے او دَ دے اونے ذکر په سورة اسراء سے۶۰ او سورة صافات سے۶۲ کښ تیر شویدے الْاَثِيْمِ مبالغه کوونکے په گناه کښ یعنی غټ گنهګار او هغه مشرک او کافر دے یعنی كَالْمُهْلِ هر هغه خیز و نه چه په اور کښ ویلے کیږی سره، سپین، او سپنه، تانبه وغیره یا مراد ترینه خیرے دَ تیلو ایشولو شوې دے او په یو حدیث کښ راغلی دی چه دَ شجرة الزقوم یو قطره په دنیا کښ راوسیکی نو ټولے دُنیا والو باندے به دَ هغوی ژوند برباد کړی نو څومره بدحال به وی دَ هغه چا چه دا به ئے خوراک وی۔ الله تبارک وتعالیٰ دِ ترینه مونږ او ټول مسلمانان ساتی۔

سے۴۷ سے۴۸: په اول ایت کښ یوه طریقه دَ عذاب ده یعنی دَ کاږلو دَ ر پاتے په یل مخ)

ثُمَّ صُبُّوْا فَوْقَ رَاْسِهٖ مِنْ عَذَابِ الْحَمِيْمِ ﴿۴۸﴾

بیا واړوئ د سر د پاسه یې د عذاب د یشیدلو اوبو نه.

ذُقْ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْكَرِيْمُ ﴿۴۹﴾ اِنَّ هٰذَا

اوڅکه یقیناً ته زوراور سپین روږے وے. یقیناً دا

مَا كُنْتُمْ بِهٖ تَمْتَرُوْنَ ﴿۵۰﴾ اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ

هغه څیز دے چه تاسو په دے کښ شک کوؤ. یقیناً متقیان به په

مَقَامٍ اَمِيْنٍ ﴿۵۱﴾ فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿۵۲﴾

ځائے امن والا کښ وی په باغونو او چینو کښ به وی.

خوراک ته مینځ د اورته به یئے په ډیرو سختو راخکلو سره بوځی او په دویم ایت کښ بله طریقه د عذاب ده داسے په سورة حج ۱۹ کښ هم تیر شویدی او فوق راسه کښ زیاته مبالغه ده په نسبت د من فوق راسه. سورة حج کښ ثیاب یئے ذکر کړے وؤ چه دلالت کوی په احاطه د عذاب په ټول بدن باندے نو هلته مِنْ کافی وؤ او دے سورت کښ د احاطے د پاره بل لفظ نه وؤ نو فوق یئے بغیر د من نه راوړو چه دلالت اوکړی په احاطه د ټول بدن باندے.

۴۹ تا ۵۰:- العزیز الکریم په ګمان د کافر کښ مراد دے یعنی کافر ګمان کوی چه زما پشان عزتمند او شریف په دنیا کښ بل څوک نیشته نو هغه ته به استهزاءً په ورځ د قیامت کښ دا اویلے شی اشاره ده که چرے ته عزیز او کریم وے نو تا ته به ولے د ذُقْ خطاب د ذلت کیدیشی. تَمْتَرُوْنَ باب افتعال دلالت کوی په مبالغه باندے په مریه (شک) کښ یعنی هغه مسئله چه په عقلی نقلی دلیلونو سره ثابت وی او بیا انسان په هغے کښ شک کوی نو دا ډیر جهل والا دے.

۵۱ نه تر ۵۵ پورے په دے ایاتونو کښ بشارتِ اخرویه دے په تفصیل سره مَقَامٍ هغه ځائے د اقامت چه بل طرف ته تربیه تبدیلی نه غواړی. مقام په زور او پیښ د میم سره کله په یو معنٰی سره مستعملیږی او کله پکښ فرق وی دلته یو معنٰی ده. كَذٰلِكَ خبر د مبتدا محذوف دے یعنی الامر کذلك دا جمله د پاره د تاکید ده یا منصوب ده په فعل مقدر سره اَكْرَمْنَاهُمْ مِثْلَ ذٰلِكَ وَ زَوَّجْنٰهُمْ مراد دے نه یوځائے کول او جوړے کول دی پشان د ښځه او خاوند یا مراد د دے نه عقد د نکاح دے د الله تعالٰی د طرف نه اِلَّا الْمَوْتَةَ الْاُوْلٰى (سوال) د تیر شوی

يَلْبَسُونَ مِنْ سُنْدُسٍ وَّإِسْتَبْرَقٍ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴿٥٣﴾

اغوندی په د نرو ریښمو او غټو ریښمو نه یو بل ته به مخامخ وی

كَذَٰلِكَ وَزَوَّجْنَٰهُم بِحُورٍ عِينٍ ﴿٥٤﴾ يَدْعُونَ

دغه شان به وی او په نکاح سره به ورکړو موږ دوی ته حورې ښائسته سترګو والا۔ راغواړی به دوی

فِيهَا بِكُلِّ فَٰكِهَةٍ ءَامِنِينَ ﴿٥٥﴾ لَا يَذُوقُونَ

په هغې کښ هر قسم میوې په داسې حال چه په امن به وی د هر مصیبت نه. نه به څکی دوی

فِيهَا ٱلْمَوْتَ إِلَّا ٱلْمَوْتَةَ ٱلْأُولَىٰ وَوَقَىٰهُمْ عَذَابَ

په هغې کښ مرګ لیکن مرګ مخکنی (خو دوی څکلے دے) او بچ ساتی به الله تعالیٰ دوی له د عذاب

ٱلْجَحِيمِ ﴿٥٦﴾ فَضْلًا مِّن رَّبِّكَ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ

د دوزخ نه د وجې د فضل ستا د رب د طرف نه دا کامیابی

ٱلْعَظِيمُ ﴿٥٧﴾ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ

لویه ده۔ نو یقیناً اسان کړیدے موږ دا قرآن ستا په ژبه باندے د دے د پاره

موت استثناء د راتلونکی حالت نه نه صحیح کیږی؟ جواب په ډیرو طریقو سره دے اوله طریقه دا ده چه استثناء منقطع ده یعنی لکن الموتة الاولی قد ذاقوها (اول مرګ خو دوی څکلے دے) دویمه طریقه إِلَّا په معنیٰ د بعد سره دے یعنی روستو د مرګ مخکښی نه۔ دریمه طریقه دیته تعلیق بالمحال ویلے کیږی د پاره د تاکید یعنی که چرته تیر شوے مرګ دوی په راتلونکی وخت کښ څکلے شوے نو څکلے به ئے وے نو معلومه شوه چه هیڅ مرګ به نه څکی۔

سوال:۔ په جهنم کښ خو هم مرګ نیشته نو د جنت په دے کښ څهٔ فضیلت دے؟

جواب:۔ مقصد دا دے چه په جنت کښ حیات کامله دے او په جهنم کښ ژوند هم په ژوند باندے حساب نه دے سورة اعلیٰ کښ فرمائیلے دی لا یموت فیها ولا یحییٰ۔

فَضْلًا مِّن رَّبِّكَ دا دلیل دے چه ثواب د عملونو په الله تعالیٰ باندے واجب نه دے بلکه د هغه فضل دے۔

يَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾ فَارْتَقِبْ إِنَّهُم مُّرْتَقِبُونَ ﴿٥٩﴾

چه دوی نصیحت واخلی - تو انتظار اوکړه یقیناً دوی انتظار کوونکی دی -

۵۸:- دا متعلق دے د ابتدا د سورت سره. ترغیب دے قران ته او تشجیع ده پیغمبر ته په بیا نولو د قران د پاره د دے چه دا خلق په تذکر د قران سره د عذاب د دنیا او د اخرت نه بچ شی. بِلِسَانِكَ په لغت ستا چه عربی ده او ژبه عربی د بولو ژبو نه اسانه ده یا مراد دا دے چه ستا په ژبه باندے په اسانه طریقه سره قران چلوؤم په تا باندے لوستل او بیا تول گران نه دی -

۵۹:- دا هم متعلق دے د سورت د دعوے سره چه په ستا کښ وه او مطلب ئے دا دے که چرے دے خلقو د قران د بیان نه تذکر او عبرت حاصل نه کړو نو بیا د دوی د عذاب انتظار اوکړه. یا مراد دا چه انتظار کوه د نصرت د الله تعالیٰ ستا سره او دوی انتظار کوی په تا باندے د تکلیفو نو د راتللو او د مرګ -

ختم شو تفسیر د دے سورت په فضل د الله تعالیٰ -

| سُوْرَةُ الْجَاثِیَةِ ۴۵ مَکِّیَّةٌ ۶۵ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیَاتُهَا ۳۷ رُکُوْعَاتُهَا ۴ |
|---|---|---|

حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنْزِیْلُ الْکِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِیْزِ الْحَکِیْمِ ﴿۲﴾

الله تعالیٰ دَ دے په مراد ښه پوهیږی. نازلول دَ دے کتاب دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دی زوراور حکمتونو والا دے.

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورة الجاثیة او دَ دے بل نوم سورة الشریعه دے

**ربط** دَ دے دَ مخکښ سورت سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه داده چه تیر شوی سورت کښ تخویف وُو په عذاب سره نو په دے سورت کښ ذکر دَ طریقے دَ نجات دے دَ دغه عذاب نه. دویمه وجه داده چه په هغه سورت کښ ذکر دَ نعمتونو وُو په بنی اسرائیلو باندے نو په دے سورت کښ ذکر دَ ناشکرئ دَ هغوی دے دریمه وجه داده چه په سورة دخان کښ ذکر دَ عظمت دَ قرآن وُو نو په دے سورت کښ سخت زجر دے دَ پاره دَ مخالفت کوونکو دَ قرآن نه او دَ هغوی قبائح ذکر کوی.

**دعویٰ دَ دے سورت** :- اَمر دے په اتباع دَ شریعت سره او نهی ده دَ تابعدارے دَ هویٰ نه په سـ۱۸ کښ او ورسره اثبات دَ توحید دے په اٰیات عقلیه او وحییه سره او په ذکر دَ پنځه اسماءِ حسنیٰ سره او دعویٰ دَ توحید ذکر ده په سـ۳۶ سـ۳۷ کښ او دا رنګ جواب دَ شبهے دَ مشرکینو دے هغه داده چه دوی وائی غیر الله ته رامدد شه وایو دَ هغوی بندګی کوو ځکه چه زمونږ مشرانو داسے کول جواب اوشو

**خلاصه دَ سورت داده** - دا سورت تقسیم دے دوه بابونو ته اول باب تر سـ۲۲ پورے دے په دے کښ ترغیب دے قرآن ته او هغه ته اٰیات وحییه ویلے کیږی چه سـ۲ سـ۶ سـ۱۱ سـ۲۰ دی او اٰیات عقلیه سـ۳ سـ۴ سـ۵ سـ۱۲ سـ۱۳ دی او زجر او تخویف دے دَ منکرینو دَ دے اٰیاتونو ته او متبعینو دَ خواهشاتو ته په سـ۷ سـ۸ سـ۹ سـ۱۰ سـ۱۹ سـ۲۱ کښ او تمثیل دے په ذکر دَ حال دَ بنی اسرائیلو سره او خطاب دے نبی صلّی الله علیه وسلّم ته په سـ۱۴ سـ۱۵ کښ او دعویٰ دَ سورت ده سـ۱۸ کښ.

چه تابعداری دَ شریعت فرض ده او مشرانو خو تابعداری دَ خواهشاتو کړے ده.

توحید او دَ شریعت دَ پاره.

## تفسیر

سـ۱ :- په دے کښ بحث مخکښ تیر شوید ے.

سـ۲ :- دا ترغیب دے قرآن ته یعنی په قرآن کښ اٰیاتِ وحییه دی دَ تعلیم او دَ اثبات د

إِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿۳﴾

یقینًا په اسمانونو کښې او زمکه کښې ډیر دلیلونه دی دپاره دَ ایمان والو۔

وَفِي خَلْقِكُمْ وَمَا يَبُثُّ مِن دَآبَّةٍ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ

او ستاسو په پیدائش کښې او هغه چه خواره کړیږی ژندہ سر دلیلونه دی دپاره دَ هغه قوم

يُوقِنُونَ ﴿۴﴾ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ

چه یقین کوی او په تلوراتلو دَ شپه او دَ ورځ کښې

وَمَا أَنزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِن رِّزْقٍ

او په هغه کښې چه راوړولے دی الله تعالیٰ دَ اسمان نه څه (سبب) دَ رزق نه

فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيفِ الرِّيٰحِ

نو تازه کړیده په هغه سره زمکه روستو دَ وچوالی دَ هغه نه او په ګرځیدلو دَ هواګانو کښې

اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿۵﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ

دلیلونه دی دَپاره دَ هغه قوم چه عقل نه کار اخلی۔ دا ایاتونه دَ الله تعالیٰ دی

ف۳:۔ دا دَ دلیلونو عقلیه نه اول دے په دے کښې ایاتِ افاقیه علویه او سفلیه ذکر کوی فِي السَّمٰوٰتِ لفظ دَ خلق ئې نه دے ذکر کړے دَپاره دَ دے چه عموم فائده کړی یعنی په ذوات دَ اسمانونو کښې چه نمر، سپوږمۍ او ستوری وغیره دی او په ذات دَ زمکه کښې چه معدنیات نباتات او نور اسباب دَ معاش دی په دے ټولو کښې جدا جدا هم دلالت دے په توحید باندے او هغه بے شماره دی دَ دے وجے نه ایات ئې جمع ذکر کړیدے. لِلْمُؤْمِنِينَ اشاره ده چه ایمان په حقیقت کښې سبب دَ عبرت او دَ استدلال دے. ضدی منکر ته خو هیڅ فائده نه ورکوی۔

ف۴:۔ په دے کښې دویم دلیل عقلی په ذکر دَ ایاتِ انفسیه سره ذکر کوی وَمَا يَبُثُّ ئې په صیغه دَ مضارع سره ذکر کړو دَپاره دَ دلالت کولو په نوے نوے دلیلونو باندے او چه څومره دلیلونه ډیریږی نو دومره شک او ګمانونه زائله کیږی او درجه دَ یقین حاصلیږی نو دَ دے ایت په اخر کښې يُوقِنُونَ ذکر کړے دے.

ف۵:۔ په دے کښې دریم دلیل عقلی دے په ذکر دَ ایات متوسطه سره مِن رِّزْقٍ ذکر دَ مسبب او مراد ترینه سبب دے یعنی باران۔ او هر کله چه په دے سورت کښې په دلیلو تو سره دَ نعمتونو تذکیر هم مقصد دے او ښکاره نعمت خو رزق دے

نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۚ فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَ اللّٰهِ

لولو موتږدا پہ تا باندے د پاره د حق ښکاره کولو نو په کومه خبره پس روستو د کتاب د الله تعالیٰ

وَاٰيٰتِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۶﴾ وَيْلٌ لِّكُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيْمٍ ﴿۷﴾

او دلیلونو د هغه نه دوی ایمان راوړی. تباهی ده هر پیر دروغژن سخت گنهگار لره

يَّسْمَعُ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُتْلٰى عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا

چه اوری ایاتونه د الله تعالیٰ لوستلے کیدشی په هغه باندے بیا کلک شی په کفر باندے لوئی کوونکی وی

كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا ۚ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۸﴾

گویا چه نه وی اوریدلی هغه نو زیرے ورکره ده لره په عذاب دردناک سره.

نو د دے وجه نه په دے باندے تصریح اوکړه او هر کله چه دا دلیلونه ډیر واضح دی هر عقل والا پرے پوهیږی د دے وجه نه په یعقلون سره ختم کړو.

**فائده:** په دے ترتیب کښ یو حکمت دے هغه دا دے چه فرمائی که چرے تاسو مؤمنان یئے نو په دے دلیلونو باندے پوهه شئ او که چرے طلب گار د حق او د یقین یئے نو فکر اوکړئ په دے دلیلونو کښ او که چرے نه مؤمنان او نه یقین والا یئے نو کم از کم د عاقلانو نه خو یئے نو کوشش اوکړئ په معرفت د دے دلیلونو کښ دوېم حکمت دا دے چه په ۳ کښ ذکر د احوالو فلکیو دے او هغه لرے دی په هغے کښ صرف تصدیق کافی دے او په ۴ کښ انفسی دلیلونه دی چه هغه ډیر نژدے دی نو په هغے کښ یقین استعمال کړے دے او په ۵ کښ اثار دی بره او کوز او انقلابات دی نو د هغے د پاره صرف عقل هم پوره دے.

۶:- دا ترغیب دے دغه ایاتو عقلیو او قرآن ته بَعْدَ اللّٰهِ لفظ د حدیث پټ دے یعنی بعد حدیث الله تعالیٰ او هغه قرآن دے لکه چه په سورة مرسلات ۵ کښ ذکر دی او اٰيٰتِهٖ نه مراد عقلی دلیلونه دی چه کوم مخکښ تیر شول.

۷ ۸:- په دے کښ زجر او تخویف دے منکرینو د ایاتونو ته په ذکر د پنځه صفات قبیحه د هغه سره اَفَّاكٍ هغه څوک چه خبره د حق ته په اړولو کښ مبالغه او کوشش کوی په دروغ ویلو دهوکه کولو تحریف کولو سره. اَثِيْمٍ غټ گنهگار کافر او مشرک ته ویلے کیږی. يَسْمَعُ اٰيٰتِ اللّٰهِ ایات وحییه او عقلیه دواړو ته شامل دے او په دے کښ اشاره ده چه دے نا خبره او بے علمه نه دے بلکه خبر دے بیا هم خلاف کوی ثُمَّ يُصِرُّ. اصرار نه مراد کلکیدل ( پاتے په بل مخ )

وَإِذَا عَلِمَ مِنْ آيٰتِنَا شَيْـًٔا اتَّخَذَهَا هُزُوًا ۭ

او کله چه پوهه شی د ایاتونو زموږ نه په یو څیز اونیسی هغه لره توقے

أُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٩﴾ مِنْ وَّرَآئِهِمْ

دغه کسان دوی لره عذاب ذلیلوونکے دے ۔ مخ د دوی ته

جَهَنَّمُ ۚ وَلَا يُغْنِي عَنْهُم مَّا كَسَبُوا شَيْـًٔا وَّ

جهنم دے او نشی اړولے د دوی نه هغه عملونه چه دوی کړیدی هیڅ عذاب او

لَا مَا اتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللّٰهِ أَوْلِيَآءَ ۚ وَلَهُمْ

نه هغه معبودان چه دوی نیولے دی سوا د الله تعالیٰ نه مددګاران او دوی لره

عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٠﴾ هٰذَا هُدًى ۚ وَالَّذِينَ كَفَرُوا

عذاب دے لوے شان والا ۔ دا هدایت دے او هغه کسان چه کفر ئے کړیدے

په ګناه یاتلے په دوه طریقو سره اوله داچه ګناه ته ګناه نه وائی یعنی مبتدع وی دویم داچه ضدی عنادی وی ګناه ګڼړی لیکن د ضد د وجې نه ئے کوی او دا سے ایت په سورۃ لقمان ے کښ ذکر کړے شوے دے۔

ف۹:۔ په دے ایت کښ زجر او تخویف او شپږم وصف قبیحه دے۔ إِذَا عَلِمَ د دے دوه توجیه دی اول داچه کله پوهه شی چه دا د قرآن ایت دے نو په هغے پورے توقے کوی د ضد او عناد او د جهل د وجې نه۔ دویمه داچه کله چه د یو ایت په مقصد یاتلے پوهه شی مثلاً ایت کښ رد د شرک دے نو په هغے پورے توقے کوی۔ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ دائے جمع ذکر کړو اشاره ده چه کل افاکٍ کښ یو شخص مراد نه دے بلکه ډیر کسان دی۔

ف۱۰:۔ په دے ایت کښ پوره تخویف دے دغه شخص ته چه په هغه کښ دا شپږ قبیح صفتونه دی۔ مِنْ وَّرَآئِهِمْ وراء لفظ د اضدادو نه دے یعنی د دے معنیٰ مخکښ او روستو دواړه راځی۔ دلته (مخکښ) معنیٰ مراد ده یعنی اوس په دنیا کښ دوی په عزت او تکبر کښ دی لیکن مخې ته (قیامت کښ) دوی لره جهنم دے وَلَا يُغْنِي عَنْهُمْ هر کله چه مخالفت کوونکی د حق دوه قسمونه دی یو دنیا پرست سرمایه داران، نو د هغوی خیال دا دے چه په مالونو ګټلو سره د عذاب نه بچاؤ حاصلیګی او دویم پیر پرست، قبر پرست، بُت پرست د هغوی عقیده دا وی چه زموږ پیران

بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ لَهُمْ عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ﴿١١﴾

په ایاتونو د رب خپل دوی لره عذاب دے د سخت عذاب نه دردناک.

اَللّٰهُ الَّذِىْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ لِتَجْرِىَ الْفُلْكُ

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه ستاسو په خدمت کښ لګولے ئے دریاب د پاره د دے چه روانے وی کشتئ

فِيْهِ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ

په هغے کښ په حکم د هغه سره او د دے د پاره چه اولټوئے د فضل د الله تعالیٰ نه او د دے د پاره

تَشْكُرُوْنَ ﴿١٢﴾ وَسَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِى السَّمٰوٰتِ

چه شکر اوکړئے تاسو. او خدمت کښ لګولے ئے تاسو لره هغه څه چه په اسمانونو کښ دی

بزرګان په مونږه بچ کوی نو په دے جمله کښ د اول قسم خلقو تردید ئے اوکړو او په دویمه جمله کښ (ولا ماتخذوا من دونه اولیاء) کښ د دویم قسم تردید ئے اوکړو.

**فائده:** په دے ایاتونو کښ شپږ اوصاف قبیحه او شپږ عذابونه ئے ذکر کړے دی. او د عذاب په صفت کښ اول اَلِيْمٌ ذکر کړو ځکه چه د دغه سړی په دنیا کښ په اصرار او تکبر کولو سره په وخت د اوریدلو کښ د قرآن بیانوونکی زړه ته ډیر درد رسولے دے او دویم د عذاب په صفت کښ ئے مُهِيْنٌ ذکر کړو ځکه چه په استهزاء کولو سره د قرآن او د قرآن والا اهانت ئے کړیدے نو د دهٔ سزا به اهانت وی او دریم صفت ئے عَظِيْمٌ ذکر کړیدے اشاره ده چه دا عذاب به دوی باندے د هر جهت نه په هره زمانه کښ په هر اندام د دوی باندے احاطه کوونکے دے.

س۱۱:- په دے کښ ترغیب دے قرآن ته او تخویف دے منکرینو ته. هٰذَا اشاره ده قرآن ته چه مشتمل دے په ایاتو وحییو او عقلیو باندے هُدًى تنکیر د پاره د تعظیم دے. مِنْ رِّجْزٍ دا په اصل کښ ګنده عذاب ته ویلے کیږی چه د هغے نه نفرت کیدے شی لکه په دنیا کښ طاعون وبا او په اخرت کښ ماءِ صدید او غسلین.

س۱۲ س۱۳:- په دے ایاتونو کښ بیا عقلی دلیلونه دی. تیر شوی دلیلونه صرف په طریقه د ایات باندے وو او دا دلیلونه په طریقه د انعاماتو باندے دی د دے وجه نه سَخَّرَ لفظ ئے په کښ ذکر کړے دے او د تسخیر د بحر نه مراد دا دے چه په هغے کښ ئے داسے صفات پیدا کړے دی چه تاسو پکښ کشتئ چلولے شئ لکه نرم والے او هموارى، درمیانه هوا کانے، موجونه په رپاتے په بل مخ)

وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِّنْهُ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ

او هغه څه چه په زمکه کښې دی دا ټول د الله تعالیٰ د طرف نه دی یقیناً په دے کښې

لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿١٣﴾ قُل لِّلَّذِينَ

ډیر دلیلونه دی هغه قوم لره چه فکر کوی. ته اوایه هغه کسانو ته

آمَنُوا يَغْفِرُوا لِلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ أَيَّامَ اللَّهِ

چه ایمان ئے راوړے دے بخنه دِ کوی (د خپل حق) هغه کسانو ته چه عقیده نه لری د ورځو د الله تعالیٰ

لِيَجْزِيَ قَوْمًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٤﴾ مَنْ

دِ دے د پاره چه جزا ورکړی قوم ته په سبب د هغه عملونو چه دوی کول. چا چه

عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ أَسَاءَ فَعَلَيْهَا ۖ

عمل اوکړو برابر د سنت نو د هغه د فائدے د پاره دے او چا چه بد عمل اوکړو نو وبال به په هغه باندې وی

ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴿١٥﴾ وَلَقَدْ آتَيْنَا

بیا ستاسو رب ته به ورا وګرځولے شئ. او یقیناً ورکړی وو موږ

اندازے سره او د کشتو جهازونو ځان ته ته جذب کول وغیره حالات او دا ټول په قدرت د الله تعالیٰ سره دی د هیڅ مخلوق په هغے کښې هیڅ دخل نیشته. د ارنګ تسخیر د ما فی السموٰت وما فی الارض نه مراد دا دے چه په آسمانونو کښې ملائک او په دغه طرف کښې نمر، سپوږمئ، ستوری او په زمکه کښې زنده سر اونے بوټی نهرونه غرونه وغیره ټول د انسان د فائدے او د خدمت د پاره پیدا کړیدی او د هغے نه د فائدے اغستلو د پاره الله تعالیٰ اسان اسباب پیدا کړیدی. او جَمِيعًا مِّنْهُ کښې تصریح ده چه په دے کښې د هیڅ مخلوق دخل او اختیار نیشته صرف احسان د الله تعالیٰ د طرف نه دے او جَمِيعًا حال دے د ما فی السموٰت اه نه یا فعل پټ دے د اعتقدوا جمیعًا منه او من په منه کښې د پاره د ابتدا دے نه د پاره د تبعیض.

س ۱۴ ۱۵ :- روستو د دعوت نه په دلیلونو سره تعلیم د ادب او د حسن اخلاق دے د دعوت (تبلیغ) کوونکو ته يَغْفِرُوا لِلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ أَيَّامَ اللَّهِ یعنی کوم خلق (منکرین) چه موحدینو ته تکالیف ورکوی او بے عزتی او تمخل کوی هغوی په حقیقت کښې د عذابونو د الله تعالیٰ (چه په منکرینو باندے نازل شویدی) او نعمتونو د الله تعالیٰ (چه موحدینو ته ورکړے شوے دی) عقیده نه لری د دے وجے نه دوی داسے

بَنِیٓ اِسۡرَآءِیۡلَ الۡکِتٰبَ وَالۡحُکۡمَ وَالنُّبُوَّۃَ

بنی اسرائیلو ته کتاب او پوهه دَ دین او پیغمبری

وَرَزَقۡنٰہُمۡ مِّنَ الطَّیِّبٰتِ وَفَضَّلۡنٰہُمۡ عَلَی الۡعٰلَمِیۡنَ ﴿۱۶﴾

او ورکړے وو مونږ دوی ته دَ پاک خوراکونو نه او غوره والے ورکړے وُ مونږ دوی ته په ټولو خلقو باندے.

وَاٰتَیۡنٰہُمۡ بَیِّنٰتٍ مِّنَ الۡاَمۡرِ ۚ فَمَا اخۡتَلَفُوۡۤا اِلَّا

او ورکړے وو مونږ دوی ته ښکاره حکمونه دَ دین نو اختلاف اونه کړو دوی مګر

مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَہُمُ الۡعِلۡمُ ۙ بَغۡیًۢا بَیۡنَہُمۡ ؕ

روستو دَ هغې نه چه راغے دوی ته علم دَ وجے دَ ضد کولو نه په مینځ خپل کښې

اِنَّ رَبَّکَ یَقۡضِیۡ بَیۡنَہُمۡ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ فِیۡمَا

یقیناً ستا رب به فیصله اوکړی په مینځ دَ دوی کښې په ورځ دَ قیامت په هغه څیز کښې

کَانُوۡا فِیۡہِ یَخۡتَلِفُوۡنَ ﴿۱۷﴾ ثُمَّ جَعَلۡنٰکَ عَلٰی

چه دوی پکښې اختلاف کوی. بیا ئے او ګرځولے ته په

بداخلاقی کوی. یَغۡفِرُوۡا دَ دے نه مراد دَ هغوی نه بے پرواهی کول او دَ کنځلو وغیره دَ جواب نه چُپ کیدل او صبر کول دی. او دا اخلاق حسنه که دَ قتال دَ فرضیت نه مخکښې وی او که روستو وی نو منسوخ نه دی بلکه داعی له په دے باندے هر وخت عمل پکار دے. لِیَجۡزِیَ قَوۡمًا دا عام دے مؤمنانو او کافرانو ته او بیا په دویم ایت کښې تفصیل دَ دغے جزا ذکر شوے دے.

۱۶ تا ۱۷:۔ دا تمثیل دے دَ ماقبل دَ پاره یعنی لکه چه مخاطبینو دَ قرآن ته ایاتِ بینات ئے ورکړل او اخری نبی ئے ورته رالیږلو لیکن دوی مخالفت اوکړو نو الله تعالیٰ به دوی له دَ دوی مناسب جزاء ورکوی نو دارنګ ئے بنی اسرائیلو ته ایات او نبوت او نعمتونه ورکړے دی او هغوی هم سرهٔ دَ علم نه اختلاف اوکړو. او هر کله چه دَ دواړو مضمونو نه یو بل سره موافق دی دَ دے وجے نه حرف دَ عطف (واؤ) ئے ذکر کړے دے. بیا په دے ایتونو کښې شپږ نعمتونه ئے په هغوی باندے ذکر کړل پنځه په اول ایت کښې او یو په دویم ایت کښې. وَالۡحُکۡمَ علم او فهم دَ کتاب الله چه هغه په اصل کښې سنّت (حدیث) دَ انبیاؤ دے. بَیِّنٰتٍ مِّنَ الۡاَمۡرِ مراد دَ دے نه احکام دَ حلال او حرام او شرائع دَ دوی وو. یا پیدا کیدل (پاتے په بل مخ)

شَرِيْعَةٍ مِّنَ الْاَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ

ښکاره لاره بانديے دَ دین نو تابعداری کوه دَ هغے او تابعداری مه کوه دَ خواهشاتو

الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٨﴾ اِنَّهُمْ لَنْ يُّغْنُوْا

دَ هغه کسانو چه نه پوهیږي . یقینًا دوی نشی لرے کولے

عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بَعْضُهُمْ

ستانه دَ (عذاب) دَ الله تعالیٰ نه هیڅ څیز او یقینًا ظالمان بعض دَ دوی

اشاره ده ښکاره صفتونو او حالاتو دَ خاتم الانبیاء صلّی الله علیه وسلّم ته چه دَ دوی په کتاب کښ ذکر شوی وو. بَغْيًا بَيْنَهُمْ یعنی کورنۍ کښ بعضو دَ دوی دَ بعضو سره ضد او عناد او حسد شورو کړو په طلب دَ ریاست او دَ مشرئے سره. او په دے کښ اشاره ده چه دَ اختلاف منشا علماء دی او سبب دَ هغے بغی (ضد او عناد دے) او دغه اختلاف بیا متعدی شی عوامو خلقو ته او دا رنګ تیر شویدی په سورة بقره س ۲۱۳ آل عمران س ۱۹ شوریٰ س ۱۴ کښ.

س ۱۸ :- په دے آیت کښ دعویٰ دَ سورت ده. او هر کله چه مخکښ ذکر شو چه بنی اسرائیلو خپل دین دَ وجے دَ بغی او دَ اختلاف نه برباد کړے دے او دَ عوامو مشرکانو حال هم ذکر کړے شو چه هغوی افاک او اثیم وغیره دی نو معلومه شوه چه دَ دغه دواړه ډلو تابع داری کول نه دی جائز نو دَ دے وجے نه تاله مستقل شریعت در کړے شوے دے (چه هغه قرآن او سنّت دے) نو دَ دے تابعداری کول فرض دی. شَرِيْعَةٍ په عام اصطلاح کښ هغه لارے ته ویلے کیږی چه فراخه نیغه آسانه او مقصد ته رسوونکے وی او په اصطلاح دَ شرع کښ هغه احکام اوامر نواهی حدود فرائض وغیرها ته ویلے شی چه الله تعالیٰ بندګانو ته دَ رسول په واسطه رالیږلے وی. مِنَ الْاَمْرِ مراد دے نه مطلق دین دے او لفظ دَ جَعَلْنٰكَ کښ بو فائده دا ده چه شریعت په وحی سره ثابتیګی دویمه فائده دا چه دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ نبوت نه روستو ټول شریعت دے الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ دا مخکښ تیر شوے دواړو ډلو ته شامل دے که امیان جاهلان دی او که اهل کتاب دی خو چه په علم باندے عمل پرے نخودلے دے. او په دے کښ اشاره ده چه مخالف دَ شریعت (وحی) نه دَ هیچا قول منل جائز نه دی ځکه چه بے علمه بے دلیله ته ویلے کیږی.

أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿١٩﴾ هٰذَا

ملګری د بعضو دی او الله تعالیٰ ملګرے د متقیانو دے. دا قرآن

بَصَآئِرُ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ

دلیلونه د رڼا دی زړونو د خلقو لره او هدایت او رحمت دے هغه قوم لره

يُّوْقِنُوْنَ ﴿٢٠﴾ أَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ اجْتَرَحُوا

چه یقین لری. ایا ګمان کوی هغه کسان چه کوی

السَّيِّاٰتِ أَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

بدکارئ داچه ګرځوو مونږ دوی لره پشان د هغه کسانو چه ایمان ئے راوړے دے

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ ۚ

او عملونه ئے کړیدی د سنت موافق چه برابر وی ژوند د دوی او مرګ د دوی

سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿٢١﴾ وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ

بداه ده هغه فیصله چه دوی کوی. او پیدا کړیدی الله تعالیٰ اسمانونه

---

۱۹: دا علت د لا تتبع اهواء ده دے لن یغنوا عنک د دے دوه مطلبه دی یو داچه که د دوی تابعداری کوئے نو د هغ په وجه سره د عذاب د الله تعالیٰ نه په دنیا او اخرت کښ نشے بچ کیدلے. دویم داچه د دوی تابعداری د حق د ثابتولو په باره کښ تا ته هیڅ فائده نشی درکولے یعنی د دوی اهواء دلیل د اثبات د حق نشی کیدلے.

بعضهم اولیاء بعض مراد د ولایت نه تابعداری د کشرانو د ه مشرانو لره او مشابهت دے د یو بل سره په شرک او خرافاتو کښ او د یو بل سره په باطل کښ مدد کول. مراد د دے نه دوستانه کول نه دی ځکه چه د دوی په مینځ کښ کله دشمنی هم وی لکه سورة مائده ۱۴ کښ تیر شویدی.

۲۰: دا ترغیب دے قرآن ته او علت دے د فاتبعها د پاره یعنی د شریعت تابعداری د دے وجے نه واجب ده چه په هغ کښ دا درے اوصاف عالیه دی. بصائر، هدیٰ، رحمت. اول کښ قرانی دلیلونو ته اشاره ده په دویم کښ د قرآن دعاوی او مقاصدو ته اشاره ده او په دریم کښ د دے فائدے او ثمرے ته اشاره ده.

۲۱: په دے ایت کښ زجر او رد دے په منکرینو د شریعت باندے او وائی چه شریعت او غیر شریعت یو شے دے. الذین اجترحوا السیاٰت یعنی (رباتے په بل مخ)

وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَلِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ

او زمکه دَ حق دَ پاره او دِ دے دَ پاره چه جزا درکړشي هر یو تن ته

بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۲۲﴾ اَفَرَءَيْتَ

دَ هغه عمل چه کړے وی او په دوی باندے به ظلم نشی کیدے. ایا بوهه یے ته په حال دَ هغه

مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ

چا چه جوړ کړے دے معبود خواهش خپل لره او بے لارے کړے دے دَه لره الله تعالیٰ په علم باندے

وَّخَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ

او مُهر یے وهلے دے په غوږ دَده او زړهٔ دَدهٔ او اچولے دی په سترګو دَ هغه باندے

شرک او کفر بدعات او نور ګناهونه کوی او دَ شریعت نه خلاف کوی سَوَآءً په دَے باندے زور پناودے په دِے چه دا حال دے دَ کَالَّذِیْنَ نه، او محیاهم ومماتهم ضمیر دواړه دلوته راجع دے او استفهام په ام حسب کښ استفهام انکاری دے. حاصل داد دے چه کافران داګمان کوی چه زموږ او دَ مؤمنانو په ژوند او په مرګ کښ هیڅ فرق نیشته نو داګمان یے غلط دے بلکه ژوند دَ مؤمنانو په طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے دے او ژوند دَ مشرکانو په معصیت او په ګناهونو کښ دے دَ مؤمنانو په زړونو کښ اطمینان او تسلی ده او کافران همیشه پریشان دی او مرګ دَ مؤمنانو په بشارت سره دے ملائک ورله زیری ورکوی او مرګ دَ کافرانو په ذلت او په رسوائی او په سختے سره دے او دا ایت په نیزدَ مفسرینو مسمّٰی دے په مبکاة العابدین سره ځکه چه ډیرو صالحینو نه نقل دے چه دَ شپے په مانځه کښ دے ایت لره او رسیدل نو بار بار به یے لوستلو او ژړل به یے.

۲۲ :. دَ دے ایت نه تر اٰخره پورے دویم باب دے په دے کښ نور اٰیاتِ عقلیه ذکر کوی او زجر دے په اتباع دَ هویٰ او په انکار دَ قیامت سره. بیا بشارت دے تابعدارانو دَ شریعت ته او تخویف دے تابعدارانو دَ هویٰ ته. په دے رس۲۲ کښ دلیل عقلی دے او دا رنګ دا رد دے په مخکښ ګمان دَ کافرانو باندے چه مساوات دے دَ حال. حاصل د رد داد دے یعنی ایجاد دَ دے عالَم دلالت کوی په عدل او په اتصاق باندے او هغه فرق کول دی په جزا دَ فریقینو کښ. بِالْحَقِّ مراد دَ حق نه توحید دے یا عدل دے او بآء سببیه ده نو وَلِتُجْزٰى په دے باندے عطف دے.

غِشٰوَةً ؕ فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ

پردے نو څوک به هدایت ورکړي دهٔ ته روستو د بې لارے کولو د الله تعالیٰ نه

اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَقَالُوْا مَا هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا

آیا نو نصیحت نه اخلی دوی . او دوی وائي نه دے دا ژوند مگر ژوند زمونږ

الدُّنْيَا نَمُوْتُ وَنَحْيَا وَمَا يُهْلِكُنَآ اِلَّا الدَّهْرُ ۚ

نزدے مړه کېږو او ژوندي کېږو او نه مړه کوي مونږ لره مگر زمانه

۲۳:۔ دا زجر دے او رد دے په مخکښ گمان د کافرانو باندے چه د کافرانو حال څه رنگ د مؤمنانو سره برابر کیدیشی او حال دا چه دوی د هویٰ نه اِلٰه جوړ کړے دی او مهر زده گمراهان دی۔ الٰهه هواه په دے کښ دوه توجیه دی اوله دا ده چه الٰهه مفعول اول دے او هواه مفعول ثاني دے یعنی اِلٰه ئے د خپل خواهش په تقاضا جوړ کړے دے د چا خواهش دے چه بُت اِلٰه دے او د چا خواهش دے چه قبر الله دے او د چا پیر الله دے او د چا شیخ الله دے وغیره او دلیل ورسره نیشته او حال دا چه اِلٰهه صرف الله تعالیٰ دے چه د هغه په الوهیت باندے ښکاره آیات او دلیلونه شته دے . دویمه توجیه دا ده چه الٰهه مفعول ثاني دے مقدم کړے دے د اهتمام د وجے نه او هواه مفعول اول دے یعنی د هویٰ (خواهش د نفس) دا سے تابعداري کوی لکه د الله چه تابعداري کیږي یعني په خپل خواهش باندے حلال او حرام جوړوی جائز او ناجائز جوړوی او په هغے پسے روان وی او تفسیر قرطبی کښ د اتباع هویٰ په قباحت ډیر احادیث او اقوال د صالحینو نقل کړیدی۔

**فائده:**۔ دا سے آیت په سورة فرقان ۴۳ کښ هم تیر شویدے نو فرق دا دے چه په هغه سورت کښ اوله توجیه راجح ده او په دے سورت کښ بحث دے په اتباع الهویٰ باندے نو دلته دویمه توجیه راجح ده . واضله الله علیٰ علم دا عطف د مسبب دے په سبب باندے او علیٰ علمٍ حال دے د مفعول نه یعنی دا گمراه بوهه دے په گمراهئ خپله باندے یا حال دے د فاعل نه یعنی الله تعالیٰ عالم دے د دهٔ په گمراهئ باندے یا د دهٔ په حال باندے چه دے لائق د گمراهئ دے۔ وَخَتَمَ عَلٰی سَمْعِهٖ دا هم عطف د مسبب دے په سبب باندے . هر کله چه په دے سورت کښ آیات وحیه او عقلیه بیان شول (پاتے په بل مخ)

وَمَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۚ إِنْ هُمْ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴿۲۴﴾

او نیشته دوی لره په دے باندے هیڅ دلیل دوی نه دی مګر ګمانونه کوی.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ مَّا كَانَ

او کله چه لوستلے کیږی په دوی باندے ایاتو نه زمونږ ښکاره نه دی

حُجَّتَهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا ائْتُوا بِآبَائِنَا إِنْ كُنْتُمْ

دلیل دَ دوی مګر داچه وائی راوړے مشران زمونږ که یئ تاسو

صٰدِقِينَ ﴿۲۵﴾ قُلِ اللَّهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ

رښتني - ته اوایه الله تعالیٰ تاسو ژوندی کوی بیا به مو مړه کوی

او دَ ایاتِ وحییه دَپاره سمع ضروری ده او دَ ایاتِ عقلیه دَپاره عقل اولیدل پکار دی نو درے واړه یئ په ترتیب سره ذکر کړل.

۲۴ :- دا زجر دے په انکار دَ قیامت سره او عطف دَ مسبب دے په سبب باندے نَمُوتُ وَنَحْيَا (سوال) دَ مخکښ جملے نه معلومه شوه چه دَ مرګ نه پس دَ دوباره ژوند نه دوی منکر دی او په دے جمله کښ روستو دَ مرګ نه ژوند ذکر کړے دے نو دا په ظاهر کښ تعارض دے دَ دے جوابات دی اول جواب زجاج ویلے دی چه مړه کیږو بعض او ژوندی (پیدا) کیږو بعض. دویم جواب موت نه مراد نطفه کیدل په ارحامو دَ مائیندو کښ او دَ حیات نه مراد دنیوی ژوند دے دریم جواب مړه کیږو مونږ او ژوندی یو په بقاء دَ اولاد سره څلورم جواب نموت په معنیٰ دَ ماضی دے مړه شویدی بعض زمونږ او بعض ژوندی پاتے یو (تر یو وخت پورے) پنځم جواب دَ حیات نه مراد حیاة دَ روح دے په عقیده دَ تناسخ سره چه روح دَ بدن نه اوځی نو منتقل شی بل انسان یا حیوان ته.

وَمَا يُهْلِكُنَا إِلَّا الدَّهْرُ دا رد دے په عقیده دَ بعض عرب جاهلانو چه دَ هغوی عقیده داوه چه حوادث، تکالیف، او مرګ دَ دے فاعل دهر دے او دَ دے وجے نه دوی به دَ مصیبت په وخت کښ دهر ته ناکاره الفاظ ویل (یا خیبة الدهر) او حدیث صحیح کښ وارد دی چه "لا تسبوا الدهر (نسبت دَ مصیبتونو راوستلو دهر ته مکوئے) فان الله هو الدهر" او قرطبی ویلے دی چه صحیح دا ده چه دهر دَ الله تعالیٰ نوم نه دے بلکه په دے حدیث کښ معنیٰ وصفی مراد ده یعنی: الفاعل والمتصرف. دَ دے نه معلومه شوه چه څوک دَ بعض حوادثو نسبت زمانے ته کوی یا دَ ټولو حوادثو نو دا قول کافر دی او دوی ته دهریان هم ویلے کیږی. او دا قتنه په دے وخت کښ ډیره

۲۵ :- دا زجر دے په انکار دَ ایاتونو دَ بعث بعد الموت سره او طلب دَ داسے دلیل دے چه هغه

ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ

بیا به جمع کوی تاسو ورځ دَ قیامت ته چه شک نیشته په هغې کښ

وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾ وَلِلَّهِ

لیکن ډیر خلق پوهه نه لری . او خاص الله تعالیٰ لره

مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ

ده بادشاهی دَ اسمانونو او دَ زمکې او په هغه ورځ چه قائم شی قیامت

يَوْمَئِذٍ يَخْسَرُ الْمُبْطِلُونَ ﴿٢٧﴾ وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٍ

نو په دغه ورځ به تاوان ښکاره شی دَ باطل پرستو خلقو . او ته به وینې هر اُمت

په حقیقت کښ دلیل نه دے هغه داد ے ائتوا بآبائنا یعنی زمونږ پلاران ژوندی کړے نو مونږ ته په په مشاهده سره ثابت شی چه دوباره ژوندشته یا مراد دادے چه زمونږ مشران دِ مونږ ته اُواتئ چه بعث بعد الموت حق دے مونږ صرف دَ خپلو مشرانو خبره منو. دا خو هیڅ حجت نه دے نو معلومه شوه چه دیته ئې حجت مجازاً ویلے دے یا حجت په معنیٰ دَ بهانې دے لکه سورة نساء سـ۱۶۵ کښ .

سـ۲۶ :- دا جواب دے دَ دعوی دَ شبهې او اشاره ده چه کوم ذات چه ستاسو په اول حیات بانددے قادر دے نو په دوباره ژوند خو ضرور قادر دے . ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ دَ دوباره ژوند نه ئې تعبیر په جمع سره دَ دے وجې نه او کړو چه دوی په اصل کښ دَ جمع کولو دَ هډوکو او غوښو دَ هر یو بدن نه تعجب کاوو لکه سورة القیامة سـ۳ کښ دی.

سـ۲۷ :- دا هم دلیل عقلی دے دَ توحید او دَ بعث بعد الموت دَپاره وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ دا يَوْمَئِذٍ دَ دے تاکید دے او دَ دے نه نوے مقصد شروع شو چه هغه تخویف اخروی دے یا دا عطف دے په ماقبل باندے په تقدیر سره یعنی ولله ملك السموات والارض اليوم ويوم تقوم الساعة . يَخْسَرُ خسران په اصل کښ په دنیا کښ دے لیکن ښکاره کیدل ئې په آخرت کښ دی. او وجه دَ خسران داده چه دوی خپل حیات او عقل او صحت او فراغ چه په شان دَ راس المال وو خرچ کړیدی او ځان ئې ستړے کړے دے په دے اراده سره چه مونږ ته گټه حاصله شی لیکن دَ قیامت په ورځ به دوی ته شرمندگی ذلت او عذابونه حاصل شی او دے ته نهایت خسران او تاوان ویلے کیږی.

جَاثِيَةً ۚ كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَىٰ إِلَىٰ كِتَابِهَا ۖ الْيَوْمَ

جمع کړے شوے هر اُمت به راوبللے شي کتاب خپل ته نن ورځ

تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٨﴾ هَٰذَا كِتَابُنَا يَنطِقُ

بدله درکیدے شی تاسو ته د هغه عملونو چه تاسو کول. دا کتاب زمونږ دے خبرے به کوی

عَلَيْكُم بِالْحَقِّ ۚ إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ مَا كُنتُمْ

په تاسو باندے په حق سره یقیناً مونږ لیکل په ملائکو باندے هغه عملونه چه تاسو

تَعْمَلُونَ ﴿٢٩﴾ فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

کول. نو هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے او عملونه ئے د سنت برابر کړے دی

فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِي رَحْمَتِهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ

نو داخل به کړی دوی رب د دوی په خاص رحمت خپل کښې دا کامیابی

الْمُبِينُ ﴿٣٠﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا أَفَلَمْ تَكُنْ

ښکاره ده. او هغه کسان چه کفر ئے کړے دے (او به ویلے شی) آیا نه وے تاسو

سـ۲۸: دا هم تخویف اخروی دے. جَاثِيَةً جتوة جمع کیدلو ته ویلے کیږی تو کل امة عام دے مؤمنانو او کافرانو ته یعنی په قیامت کښې به ټول خلق راجمع وی او هرچا ته به د هغوی عملنامه ورکیدلے شی او بیا روستو فاما الذین آمنوا اه تفصیل دے. یاجاثیة په معنیٰ د (جلوس علی الرکب) دے په زنګنانو باندے کیناستل د وجے د رعب نه، نو ظاهر دا ده چه د کل امة نه مراد کافران مشرکان دی هغوی به په داسے حالت کښې وی. اِلَىٰ كِتَابِهَا مراد د دے نه هغه عملنامه ده چه ملائکو لیکلے ده لکه سورة اسراء سـ۱۳ کښې یا مراد د دے نه هغه کتاب نازل کړے شوے دے چه دوی اوګوری چه دوی په هغې باندے په کوم ځائے باندے عمل کړے دے. اوله توجیه غوره ده ځکه چه د هغې په تائید کښې نور آیاتونه هم دی.

سـ۲۹: دا قول د ملائکو یا د الله تعالیٰ دے او يَنطِقُ یعنی هغه کتاب به په خپله شهادت ورکړی په دلیل د حٰم سجده سـ۲۱ سره یا دا چه دوی ئے اوګوری او د دوی عملونه پکښې لیکلے شوے وی نو داسے شوه ګویا که هغه کتاب ناطق شو لکه سورة مؤمنون سـ۶۲ او سورة کهف سـ۴۹ کښې. نَسْتَنسِخُ په صیغه د استفعال سره ذکر شو یعنی الله تعالیٰ امر کاوه ملائکوته د لیکلو د هغه عملونو لکه سورة ق سـ۱۸ او سورة انفطار سـ۱۰ کښې.

سـ۳۰ سـ۳۱: په اول آیت کښې بشارت دے او مراد د رحمت نه جنت دے. هر کله چه د

اٰیٰتِیْ تُتْلٰی عَلَیْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنْتُمْ

ایاتونه زما چه لوستلے کیدل په تاسو باندے نو لوئي کوله تاسو او وئے تاسو

قَوْمًا مُّجْرِمِیْنَ ﴿۳۱﴾ وَاِذَا قِیْلَ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ

قوم جرم کوونکی. او کله به چه اُوییلے شول یقینًا وعده دَ الله تعالٰی

حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ لَا رَیْبَ فِیْهَا قُلْتُمْ مَّا نَدْرِیْ

حقه ده او قیامت چه هیڅ شک نیشته په هغې کښ تاسو به ویل موږ نه پوهیږو

مَا السَّاعَةُ اِنْ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا وَّمَا نَحْنُ

قیامت څه دے گمان نه کوو موږ مگر معمولی گمان او نه یو موږ

بِمُسْتَیْقِنِیْنَ ﴿۳۲﴾ وَبَدَا لَهُمْ سَیِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا

یقین کوونکی. او ښکاره به شی دوی ته ناکارهٔ (عقوبتونه) دَ عملونو دَدوی

مبطلینو خسران ئے ذکر کړے وؤ نو دَ هغې مقابله کښ ئے دَ مؤمنانو فوزِ مبین ذکر کړو. او په دویم ایت کښ تخویف دے او ذکر دَ اسبابو دَ عذاب دے اول استکبار دَ ایاتونه هغه ایات وحییه او عقلیه چه په دے سورت کښ ذکر شوی دی دَ هغې نه دوی لوئي کوله لکه چه دَ دے سورت ابتداء کښ ثم یصر مستکبرًا ذکر شوی دے دویم سبب دَ عذاب جرمونه کول یعنی دَ کفر او دَ شرک عملونه کول.

۳۲:- دا دریم سبب دَ عذاب دے یعنی انکار کول دَ بعث بعد الموت نه. قُلْتُمْ مَّا نَدْرِیْ دا اقرار دے په لوے جهل خپل سره ځکه چه نفی دَ درایت په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه دَ علم حاصلولو دَپاره هیڅ ذریعه نه وی. اِنْ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا.

سوال:- په دے کښ استثناء دَ ظن ده دَ ظن نه او دا سے استثناء خو صحیح نه وی؟

جواب:- اوله توجیه دا ده چه مصدر نکره (ظنا) کښ تحقیر او تقلیل مراد دے یعنی الا ظنا حقیرًا او قلیلًا (مگر گمان سپک او لږ) دویمه:- دا ده چه په اصل کښ ان نحن الا نظن ظنا دا مبرد ویلے دی (نه یو موږ مگر گمان کوو گمان)- دریمه توجیه دا ده ان تظن (علیکم) الا تظنون ظنا (گمان نه کوو موږ په تاسو باندے اے مؤمنانو مگر دا چه گمان کوئے تاسو گمان په باره دَ قیامت) څلورمه توجیه شربینی ویلے دی چه نظن په معنیٰ دَ نعتقد دے ان نعتقد ما تخبرونا به الا ظنا (موږ عقیده نه لرله دَ هغې خبر چه تاسو موږ ته راکوؤ مگر گمانی څیز). وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَیْقِنِیْنَ (پاتے به یل مخ)

وَحَاقَ بِهِمۡ مَّا كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿۳۳﴾

او راګير به کړي دوی لره هغه څيز چه دوی په هغې پورې ټوقې کولې.

وَقِيۡلَ الۡيَوۡمَ نَنۡسٰكُمۡ كَمَا نَسِيۡتُمۡ لِقَآءَ

او وبه ويلے شي چه تن پريږدو، موږ تاسو لره لکه چه پريښودلے وو تاسو ملاقات

يَوۡمِكُمۡ هٰذَا وَمَاۡوٰٮكُمُ النَّارُ وَمَا لَـكُمۡ

د ورځې ستاسو چه داده او ځائے د اوسيدلو ستاسو اُور دے او نيشته تاسو لره

مِّنۡ نّٰصِرِيۡنَ ﴿۳۴﴾ ذٰلِكُمۡ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذۡتُمۡ

هيڅ مددګاران . دا د دے دِ جه نه چه نيولے وو تاسو

اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا وَّغَرَّتۡكُمُ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا‌ ۚ

اياتونه د الله تعالیٰ ټوقې او دهوکه کړی وُے تاسو ژوند دُنيوی

فَالۡيَوۡمَ لَا يُخۡرَجُوۡنَ مِنۡهَا وَلَا هُمۡ يُسۡتَعۡتَبُوۡنَ ﴿۳۵﴾

نو نن به نشی ويستلے کيدلے دوی د اُورنه او نه به د دوی توبه قبوله کړے شی۔

دا تاکيد د مخکښ د پاره دے۔

**فائده** :۔ منکرين د قيامت دوه ډلے وے يو ډله هغه وه چه هغوی د قيامت نه صريح انکار کوؤ د هغوی ذکر په ۳۲ کښ تير شو او دويمه ډله هغه وو چه هر کله دليلونه ئے واوريدل د بعث بعد الموت نو په شک کښ پريوتل په دے ايت کښ داخلق مراد دی۔

۳۳ :۔ داهم تخويف کښ داخل دے او دا عطف دے په پټ باندے يعنی واما الذين كفروا فيقال لهم اه وبدالهم۔ يَسۡتَهۡزِءُوۡن معلومه شوه چه دوی ويل ان نظن الا ظنا اه دا د شک په طور باندے نه وؤ بلکه د استهزاء په طريقه باندے وؤ د دے وجه نه دوی د عامو منکرينو نه ډير ناکاره دی۔

۳۴ :۔ داهم داخل دے په تخويف کښ او دا عطف دے په بدا او حاق باندے او ننساكم اشاره ده هميشه والی د عذاب ته يعنی لکه څنګ چه منکرينو ايمان په بعث باندے بالکل هير کړے وؤ او که د دوی ژوند بالفرض هميشه وے نو د دوی دا انکار او هيروَل به هم هميشه وے نو د دے وجه نه عذاب به ئے هم هميشه وی۔

۳۵ :۔ دا سببونه ذکر کوی د پاره د ماقبل يعنی مَا لَكُمۡ مِّنۡ نّٰصِرِيۡنَ يو سبب استهزاء په اياتونو وحييه او عقليه پورے کوم چه په دے سورت کښ ذکر شول او دويم

فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَرَبِّ الْاَرْضِ

نو خاص الله تعالیٰ لره ستائینه دَ خدائیتوب ده رب دَ اسمانونو او رب دَ زمکے دے

رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۳۶﴾ وَلَهُ الْكِبْرِیَآءُ فِی السَّمٰوٰتِ

رب دَ ټولو عالمینو دے۔ او خاص هغه لره لوئي ده په اسمانونو

وَالْاَرْضِ ۪ وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۳۷﴾ ع

او زمکه کښ او خاص هغه زور اور حکمتونو والا دے۔

رکوع ۲۶

غفلت په سبب دَ حرص او محبت دَ دُنیا چه دَ هغې دَ وجے نه قیامت ئې هیر کړو
لَا یُخْرَجُوْنَ یعنی الله تعالیٰ ئې هم نه اوباسی او نور شفعاء شرکاء ئې هم نشی ویستلے

وَلَا هُمْ یُسْتَعْتَبُوْنَ دَ عتاب نه ماخوذ دے مراد ترینه ازاله دَ عتاب ده دَ الله تعالیٰ سره په عذر قبلولو سره یا دَ عتبیٰ نه ماخوذ دے رجوع کول یعنی طلب دَ توبے به ترینه نشی کیدے.
سے ۳۶ ۳۷ :. داهم دلیلونه عقلیه دی سرهٔ دَ دعوے دَ توحید نه۔ او دا رنګ دا تفریع ده په مضمون دَ ټول سورت باندے یعنی الله تعالیٰ په آیاتِ وحییه او عقلیه سره شریعت واضح کړے دے نو دَ الله تعالیٰ حمد واجب دے په مخلوق باندے۔
رَبِّ السَّمٰوٰتِ اه اشاره ده چه اسمانونه زمکه او ټول مخلوق باندے دَ ربوبیت انعام دے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نو په ټولو باندے حمد دَ الله تعالیٰ واجب دے۔ وَلَهُ الْكِبْرِیَآءُ په دے سره وهم دَ شرکت دفع کوی چه دَ الله تعالیٰ په حمد کښ څوک شریک نشی کیدے ځکه چه کبریاء په الله تعالیٰ پورے خاص ده یعنی عظمت، جلال، بقاء، سلطان، قدرت ټول په الله تعالیٰ پورے خاص دی نو بل څوک دَ هغه سره په حمد او صفاتو کښ شریک نشی کیدے رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی۔ اَلْكِبْرِیَآءُ رِدَائِیْ وَالْعَظْمَةُ اِزَارِیْ فَمَنْ نَازَعَنِیْ وَاحِدًا مِّنْهُمَا اَدْخَلْتُهُ النَّارَ وَفِیْ رِوَایَةٍ عَذَّبْتُهٗ وَفِیْ رِوَایَةٍ قَصَمْتُهٗ (لوئي زما څادر دے او عظمتِ شان زما لنګ دے نو چا چه ما سره په دے یو کښ جګړه اوکړه یعنی ځان ته ئې راکاګری نو زهٔ به ئې اور ته داخل کړم بل روایت کښ دی عذاب به ورکړم بل روایت کښ دی ست به ئې مات کړم۔ (والحمد لله حمدًا کثیرًا طیبًا مبارکًا فیه)

ختم شو تفسیر دَ سورت جاثیه بحمده تعالیٰ وَتوفیقه۔

اوخلورم جلد اختتام ته اورسیدو۔ ۱۵/ صفر ۱۴۱۶ھ